الْأُنْثَيَيْنِ ۗ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمْ أَنْ تَضِلُّوا ۗ وَاللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿١٧٦﴾

دَ دوو ښځو | بيانوی | الله | تاسو ته | چه تاسو بے لارے نه شئ | او الله | په هر څیز باندِ | پوهه دے

دے ، الله تعالیٰ تاسو ته خپل حکمونه (حُکم) واضحه کوی چه دَ لارے نه بے لارے نه شئ او الله تعالیٰ په هر څه ډیر ښه پوهه دے

سُورَةُ الْمَآئِدَةِ مَدَنِيَّةٌ وَهِيَ مِائَةٌ وَعِشْرُونَ آيَةً وَسِتَّةَ عَشَرَ رُكُوعًا

سورهٔ مائده مدنی دے او په دے کښے ۱۲۰ آیتونه او ۱۶ رکوع گانے دی

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

شروع کوم په نامه دَ الله چه لوئے مهربان زیات رحم کوونکے دے

شروع کوم دَ الله په نوم چه ډیر مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے۔

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَوْفُوا بِالْعُقُودِ ۚ أُحِلَّتْ لَكُمْ بَهِيمَةُ

اے دَ ایمان خاوندانو! | پوره کوئ | وعدے | حلال کړے شوی دی | تاسو دَ پاره | چارپایان

اے مؤمنانو ! خپلے وعدے پوره کوئ ، تاسو دَ پاره څاروی څناور حلال کړے

الْأَنْعَامِ إِلَّا مَا يُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ غَيْرَ مُحِلِّي الصَّيْدِ

څاروی | سوا دَ هغو نه چه | اَوروله به شی | تاسو ته | مگر حلال مه گنړئ | ښکار

شوی دی ، مگر دَ کوم بیان چه مخکښے راتلونکے دے خو ښکار څان له حلال مه گنړئ ، هر کله چه دَ احرام په

وَأَنْتُمْ حُرُمٌ ۗ إِنَّ اللَّهَ يَحْكُمُ مَا يُرِيدُ ﴿١﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا

چه یئ تاسو دَ احرام په حالت کښے | بیشکه | الله | حکم کوی | څه چه وغواړی | اے دَ ایمان خاوندانو!

حالت کښے یئ ۔ بیشکه الله تعالیٰ چه څه غواړی هغسے کوی ۔ اے مؤمنانو !

لَا تُحِلُّوا شَعَائِرَ اللَّهِ وَلَا الشَّهْرَ الْحَرَامَ وَلَا الْهَدْيَ وَلَا

سپکاوے مه کوئ | دَ نخښو دَ الله | او نه | دَ میاشتے | دَ عزت | او نه | دَ قربانئ دَ څاروی | او نه

دَ الله تعالیٰ دَ نخښو بے حرمتی مه کوئ ، او نه دَ عزتمندو میاشتو ، او نه په حرم کښے دَ قربانئ دَ ځناورو او

الْقَلَائِدَ وَلَا آمِّينَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ يَبْتَغُونَ فَضْلًا

دَ پټے دار ځناورو | او نه | هغه چه تلونکی وی | بیت الحرام (کعبے) ته | هغوی غواړی | فضل

نه دَ مخکښے دَ هغه ځناورو دَ کوم دَ نښانئ دَ پاره چه په غاړو کښے وړ پټے اچولے شی او نه دَ بیت الحرام دَ قصد کوونکو کوم چه دَ خپل رب

مِنْ رَبِّهِمْ وَرِضْوَانًا ۚ وَإِذَا حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوا ۚ وَ

دَ خپل رب | او رضا مندی | او هر کله چه | تاسو احرام پرانیزئ | نو ښکار وکړئ | او

فضل او رضامندی غواړی ، او هر کله چه دَ احرام دَ حالت نه بهر وځئ نو بیا ښکار کولے شئ ،

لَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَآنُ قَوْمٍ أَنْ صَدُّوكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ

تیار دِ نه کړی تاسو | دُښمنی | (دَ یو) قوم | په دے وجه چه دوی منع کړی وُ تاسو | دَ مسجد حرام نه

او (خیال ساتئ) چه یو ډلے چه تاسو دَ مسجد حرام نه منع کړی وُ دَ هغوی سره دښمنی چرته تاسو دے ته تیار نه کړی چه

أَنْ تَعْتَدُوا ۘ وَتَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوَىٰ

په دے خبره چه تاسو زیاتے وکړئ | او مدد کوئ یو بل سره | په نیکئ کښے | او پرهیز گارئ کښے

زیاتے پرے وکړئ ، او دَ نیکئ او پرهیز گارئ په کارونو کښے یو بل سره امداد کوئ ، او

وَلَا تَعَاوَنُوْا عَلَى الْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ ۖ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ؕ

اومه مه کوئ د یو بل سره | په ګناه | او په ظلم | او ډو ډیریږئ | د الله نه

د ګناه او د سرکشئ په کارونو کښے هیڅاسره تعاون مه کوئ ، او د الله تعالیٰ نه ویره کوئ

الربع

اِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ (٢) حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ وَالدَّمُ

بیشکه الله | سخت عذاب ورکوونکے دے | حرام کړے شوه | په تاسو | مرداره | او وینه

بیشکه الله تعالیٰ په سزا ورکولو کښے ډیر سخت دے. په تاسو باندے حرام کړے شوی دی مرداره او وینه

وَلَحْمُ الْخِنْزِيْرِ وَمَآ اُهِلَّ لِغَيْرِ اللّٰهِ بِهٖ وَالْمُنْخَنِقَةُ

او غوښه | د خنزیر | او هغه (ځناور) چه پرے ویلے شوے وی د غیر الله (نوم) | او چه مړ شوے وی په مړئ خپه کولو سره

او د خنزیر غوښه او هغه چه د الله تعالیٰ نه سوا د بل چا په نوم حلال شوے وی او چه مړئ ئے خپه شی

وَالْمَوْقُوْذَةُ وَالْمُتَرَدِّيَةُ وَالنَّطِيْحَةُ وَمَآ اَكَلَ السَّبُعُ اِلَّا مَا

او چه مړ شوے وی په ویشتلو سره | او چه غورزیدلے وی له پاسه | او په وهلو د ښکر | او هغه چه خوړلے وی | درنده | مګر | هغه چه

او چه د ګذار نه مړ شوے وی او چه را وغورزیږی او چه په ډغره خوړ مړشی او چه درنده ترے نه خوړلی وی، بغیر د دے

ذَكَّيْتُمْ ۟ وَمَا ذُبِحَ عَلَى النُّصُبِ وَاَنْ تَسْتَقْسِمُوْا

تاسو ذبح کړو | او هغه چه | ذبح کړے شوے وی | (د بتانو) په قربان ګاه باندے | او دا چه | تاسو تقسیم کړئ (غوښه)

نه چه تاسو (ژوندۍ موندے او) حلال کړے وی او هغه چه په بُت خانو حلال شوے وی او هغه چه د جوارئ په غشوئے ویش

بِالْاَزْلَامِ ؕ ذٰلِكُمْ فِسْقٌ ؕ اَلْيَوْمَ يَئِسَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

د جوارئ په غشو سره | دا تاسو د پاره | سخته ګناه ده | نن | نا امیده شول | کافران خلق

ؤ کړئ. دا فتول د ګناه کارونه دی. نن ورځ کافران ستاسو د دین (بربادولو) نه یوره

مِنْ دِيْنِكُمْ فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِ ؕ اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ

ستاسو له دین نه | پس مه | ویریږئ له هغوئ نه | او و ویریږئ له مانه | نن ورځ | ما پوره کړو

مایوسه شوی دی نو د هغوئ نه مه ویریږئ او زمانه ویره کوئ ، نن ما ستاسو دین تاسو

لَكُمْ دِيْنَكُمْ وَاَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِيْ وَرَضِيْتُ

تاسو د پاره | ستاسو دین | او ما پوره کړو | په تاسو باندے | خپل نعمت | او خوښ م کړو

له کامل کړو ، او خپل نعمتونه م در باندے تمام کړل ، او اسلام م درله

لَكُمُ الْاِسْلَامَ دِيْنًا ؕ فَمَنِ اضْطُرَّ فِيْ مَخْمَصَةٍ

تاسو له | د اسلام | دین | پس څوک چه | مجبور کا شو | د لوږے نه

دین غوره کړو ، نو څوک چه د لوږے نه مجبور شی

غَيْرَ مُتَجَانِفٍ لِّاِثْمٍ ۙ فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ (٣)

چه نه وی مائله | ګناه ته | نو بیشکه | الله | بخښونکے | مهربان دے.

(او هغه) ګناه طرف ته مائل نه وی (او حرام خیز وخوری) نو الله تعالیٰ بخښونکے مهربان دے.

يَسْـَٔلُوْنَكَ مَاذَآ اُحِلَّ لَهُمْ ؕ قُلْ اُحِلَّ لَكُمُ

دوی پښتنه کوی له تانه | چه څه څیز | حلال دے | دوی د پاره | ووایه | حلال دی | تاسو د پاره

(اے نبی ﷺ!) خلق تانه پښتنه کوی چه کوم کوم څیزونه تاسو د پاره حلال دی، ورته ووایه چه ټول پاکیزه څیزونه

الطَّيِّبٰتُ ۙ وَمَا عَلَّمْتُمْ مِّنَ الْجَوَارِحِ مُكَلِّبِيْنَ تُعَلِّمُوْنَهُنَّ

پاکیزه څیزونه | او څه چه | تاسو ښودلی دی | ښکاری څناورو ته | ښکار باندې وراچولو د پاره | (چه) تاسو ښایئ دوی ته

درله حلال دی، او کوم ښکاری څناور چه تاسو عادت کړی دی او بیا تاسوئے په ښکار پسے پریږدئ او دا تعلیم ورته

مِمَّا عَلَّمَكُمُ اللّٰهُ ؗ فَكُلُوْا مِمَّآ اَمْسَكْنَ عَلَيْكُمْ

له هغه نه | چه ښودلی دی تاسو ته | الله | نو خورئ | له هغه نه کوم چه | دوی ونیسی | تاسو د پاره

ورکوئ لکه چه الله تعالیٰ تاسوله درکړے دے، نو کوم ښکار چه دوی تاسو د پاره راونیسی هغه خوړے شئ او د

وَاذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهِ ۪ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ

او یاد کړئ (د پریښودو په وخت) | نوم د الله | په هغه باندې | او ووېرېږئ د الله نه | بیشکه | الله

پریښودو په وخت) د الله تعالیٰ نوم پرے اخلئ او د الله تعالیٰ نه ویره کوئ، الله تعالیٰ چیرزه

سَرِيْعُ الْحِسَابِ ④ اَلْيَوْمَ اُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبٰتُ ؕ وَطَعَامُ

زر حساب اخستونکے دے | نن ورځ | حلال کړے شوی دی | تاسو د پاره | پاکیزه څیزونه | او خوراک

حساب اخستونکے دے. نن تاسوله ټول پاکیزه څیزونه حلال کړے شول، او د

الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ حِلٌّ لَّكُمْ ۪ وَطَعَامُكُمْ حِلٌّ لَّهُمْ

د هغو خلقو | کوم ته چه ورکړے شوے دے | کتاب | حلال دے | تاسو د پاره | او خوراک ستاسو | حلال دے | هغوی د پاره

اهل کتابو خوراک تاسو د پاره حلال دے او ستاسو خوراک د دوی د پاره حلال دے

وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ الْمُؤْمِنٰتِ وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا

او (حلالے دی) پاکدامنے | مسلمانے ښځے | او پاکدامنے ښځے | د هغو خلقو نه | کوم ته چه ورکړے شوے دے

او پاکدامنے مسلمانانے ښځے او د هغو خلقو نه پاکدامنے ښځے کوم ته چه تاسو نه

الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ اِذَآ اٰتَيْتُمُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ مُحْصِنِيْنَ

کتاب | له تاسو نه وړاندې | هر کله چه تاسو ورکړئ دوی ته | د دوی مهر | چه نکاح کوونکی یئ

وړاندې کتاب ورکړے شوے دے (تاسو د پاره حلالے دی) هر کله چه تاسو دوی ته د دوی مهر ورکړئ او ستاسو

غَيْرَ مُسٰفِحِيْنَ وَلَا مُتَّخِذِيْٓ اَخْدَانٍ ؕ وَمَنْ يَّكْفُرْ بِالْاِيْمَانِ

نه زنا کوونکی یئ | او نه په پټه آشنایانے نیوونکی یئ | او څوک چه انکار وکړی | د ایمان

اراده د دوئ په نکاح کښے د راوستلو وی نه چه د بدکارئ کولو او نه پټ په پټه د آشنایئ او څوک چه د ایمان (د دِے خبرو) نه

فَقَدْ حَبِطَ عَمَلُهٗ ؗ وَهُوَ فِى الْاٰخِرَةِ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ⑤ ع

نو ضائع شو | د هغه عمل | او هغه به | په آخرت کښے | د نقصان مونډونکو څخه دی

انکار وکړی نو بیشکه د هغه عملونه ضائع شول او هغه به په آخرت کښے تاوانی شي.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا قُمْتُمْ اِلَى الصَّلٰوةِ فَاغْسِلُوْا وُجُوْهَكُمْ

اے مؤمنانو ! | هرکله چه تاسو ودریږئ | مونځ دَ پاره | نو ووینځئ | خپل مخونه

اے مسلمانانو ! کوم وخت چه مونځ ته پاڅئ ، نو خپل مخونه او ترڅنګلو

وَاَيْدِيَكُمْ اِلَى الْمَرَافِقِ وَامْسَحُوْا بِرُءُوْسِكُمْ وَاَرْجُلَكُمْ

او خپل لاسونه | ترڅنګلو پورې | او مسح کوئ | دَ خپلو سرونو | او (وینځئ) خپلې ښپې

پورې خپل لاسونه وینځئ ، او په سرونو مسح کوئ ، او ترګیټو پورې

اِلَى الْكَعْبَيْنِ ؕ وَاِنْ كُنْتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوْا ؕ وَاِنْ كُنْتُمْ

ترګیټو پورې | او که چرې | یئ تاسو | په حالت دَ جنابت کښې | نو غسل کوئ | او که چرې یئ تاسو

ښپې وینځئ ، او که په غسل کښې یئ نو خپل ځانونه په ښه شان پاکوئ ، او که ناجوړه

مَّرْضٰٓى اَوْ عَلٰى سَفَرٍ اَوْ جَآءَ اَحَدٌ مِّنْكُمْ مِّنَ الْغَآئِطِ

مریضان | یا په سفر یئ | یا راشی | یو | له تاسو نه | له ځائے دَ حاجت نه

یئ یا بیا په سفر یئ یا په تاسو کښې یو تن دَ اودس ماتی نه راشی ،

اَوْ لٰمَسْتُمُ النِّسَآءَ فَلَمْ تَجِدُوْا مَآءً فَتَيَمَّمُوْا صَعِيْدًا

یا صحبت کړے وی تاسو | دَ ښځو سره | پس تاسو بیا نهٔ مومئ | اوبهٔ | نو تیمم وکړئ | خاوړے

یا دَ ښځو سره صحبت وکړئ ، او اوبهٔ نهٔ مومئ ، نو دَ پاکے خاوړے نه کار واخلئ

طَيِّبًا فَامْسَحُوْا بِوُجُوْهِكُمْ وَاَيْدِيْكُمْ مِّنْهُ ؕ مَا يُرِيْدُ اللّٰهُ

پاکے سره | بیا مسح وکړئ | دَ خپلو مخونو | او دَ خپلو لاسونو | دَ هغے نه | نهٔ غواړی الله

او په خپلو مخونو او لاسونو باندې دَ خاوړے مسح وکړئ ۔ الله تعالیٰ نهٔ غواړی

لِيَجْعَلَ عَلَيْكُمْ مِّنْ حَرَجٍ وَّلٰكِنْ يُّرِيْدُ لِيُطَهِّرَكُمْ

چه وکړی | په تاسو باندې | تنګی | لیکن | هغه غواړی | چه تاسو پاک صفا کړی

چه په تاسو تنګسیا راولی ، هغه خو دا غواړی چه تاسو پاک کړی ،

وَلِيُتِمَّ نِعْمَتَهٗ عَلَيْكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ۞٦ وَاذْكُرُوْا نِعْمَةَ

او چه پوره کړی | خپل نعمت | په تاسو باندې | دَ پاره دَ دے چه تاسو | شکر ګزار شئ ۔ | او یاد کړئ | احسان

او خپل نعمتونه در باندې تمام کړی چه تاسو دَ هغهٔ شکر ادا کړئ ۔ او الله تعالیٰ چه کوم نعمتونه

اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَمِيْثَاقَهُ الَّذِيْ وَاثَقَكُمْ بِهٖٓ ۙ اِذْ قُلْتُمْ سَمِعْنَا

دَ الله | په خپل ځان باندې | او دَ هغهٔ وعده | کومه چه | هغهٔ تاسو سره محکمه کړه | هرکله چه تاسو ووئیل | چه مونږ واورېدل

درکړی دی هغه یاد ساتئ او کومه پخه وعده چه ئے درنه اخستے ده (هغه مهٔ هیروئ) کوم وخت چه تاسو ووئیل چه مونږ

وَاَطَعْنَا ۫ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌ ۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ۞٧

او مونږ ومنله | او ویریږئ | دَ الله نه | بیشکه الله | ښهٔ پیژنی | راز دَ سینو

واورېدل او ومومنل او دَ الله تعالیٰ نه ویره کوئ ، الله تعالیٰ دَ زړونو په پټو خبرو هم ښهٔ واقف دے ۔

یٰۤاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا كُوْنُوْا قَوّٰمِیْنَ لِلّٰهِ شُهَدَآءَ بِالْقِسْطِ
اے مؤمنانو ! | قائم وُسیږئ | دَ اللہ دَپارہ | گواهی ورکوونکی | پہ انصاف سرہ
اے مؤمنانو ! دَ اللہ تعالیٰ دَ پارہ پہ سمہ لار قائم وُسئ ، پہ انصاف سرہ

وَلَا یَجْرِمَنَّكُمْ شَنَاٰنُ قَوْمٍ عَلٰۤى اَلَّا تَعْدِلُوْا ؕ اِعْدِلُوْا ۫ هُوَ
او تیار دِ نۂ کړی تاسو | دُښمنی | دَ یو قوم | پہ دے | چہ تاسو عدل ونۂ کړئ | عدل کوئ | هغہ
گواهی ادا کوئ او دَ یوے ډلے دُښمنی دِ تاسو دے تہ نۂ تیاروی چہ دَ انصاف نہ لاس واخلئ تل انصاف کوئ

اَقْرَبُ لِلتَّقْوٰى ۫ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ خَبِیْرٌۢ بِمَا
زیات نزدے دے | پرهیزګارئ تہ | او ویریږئ | دَ اللہ نہ | بیشکہ | اللہ | بنۂ واقف دے | دَ هغہ څہ نہ
دا کار پرهیزګارئ تہ ډیر نزدے دے، او دَ اللہ تعالیٰ نہ ویرہ کوئ، بیشکہ اللہ تعالیٰ ستاسو دَ ټولو کاروونو نہ

تَعْمَلُوْنَ ۸ وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ۙ
چہ تاسو ئے کوئ | وعدہ وکړہ | اللہ | هغو خلقو سرہ | چہ ایمان ئے راوړو | او کارونہ ئے وکړل | نیک
خبر دے ۔ چاچہ ایمان راوړے دے او نیک کاروںہ کوی ، اللہ تعالیٰ هغوی سرہ دَ بخښنے

لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّاَجْرٌ عَظِیْمٌ ۹ وَالَّذِیْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا
(چہ) هغوی لہ | بخښنہ دہ | او اجر | ډیر لوئے | او کومو خلقو چہ | انکار وکړو | او دروغ ئے کړل
او دَ ډیر لوئے اجر ورکولو وعدہ کړے دہ ۔ او چاچہ انکار کړے دے او زمونږ ایتونہ

بِاٰیٰتِنَاۤ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَحِیْمِ ۱۰ یٰۤاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوا
زمونږ ایتونہ | هم دوی دی | اهل | دَ دوزخ | اے مؤمنانو
ئے دروغ ګڼړلی دی ، هغوی بہ پہ دوزخ کښے اوسیږی ۔ اے مؤمنانو

اذْكُرُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ عَلَیْكُمْ اِذْ هَمَّ قَوْمٌ اَنْ یَّبْسُطُوْۤا
یاد کړئ | نعمت | دَ اللہ | پہ خپل ځان | کلہ چہ ارادہ وکړہ | یو قوم | چہ را اوږد کړی
دَ اللہ تعالیٰ هغہ مهربانی را یادہ کړئ چہ یو ټولی تاسو تہ دَ لاس اچولو ارادہ کړے وہ نو

اِلَیْكُمْ اَیْدِیَهُمْ فَكَفَّ اَیْدِیَهُمْ عَنْكُمْ ۚ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ؕ
تاسو تہ | خپل لاسونہ | نو هغۂ منع کړل | دَ هغوی لاسونہ | لہ تاسو نہ | او ویریږئ | دَ اللہ نہ
اللہ تعالیٰ دَ هغوئ لاسونہ تاسو نہ بند کړل ، او دَ اللہ تعالیٰ نہ ویرہ کوئ

وَعَلَى اللّٰهِ فَلْیَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ۱۱ وَلَقَدْ اَخَذَ اللّٰهُ مِیْثَاقَ ع ۲
او پہ اللہ باندِ | پکار دی چہ توکل وکړی | مؤمنان | او بیشکہ اخستے دہ | اللہ | پخہ وعدہ
او مسلمانانو لہ بس پہ اللہ تعالیٰ باندِ بهروسہ پکار دہ ۔ او اللہ تعالیٰ دَ بنی اسرائیلو نہ پخہ

بَنِیْۤ اِسْرَآءِیْلَ ۚ وَبَعَثْنَا مِنْهُمُ اثْنَیْ عَشَرَ نَقِیْبًا ؕ
دَ بنی اسرائیلو نہ | او مونږ مقرر کړی وُو | لہ هغوی نہ | دولس [12] | سرداران
وعدہ اخستے وہ ، او مونږ پہ دوی کښے دولس [12] سرداران مقرر کړی وو

وَقَالَ اللّٰهُ اِنِّيْ مَعَكُمْ ۭ لَىِٕنْ اَقَمْتُمُ الصَّلٰوةَ
او فرمائیلی وو | اللہ | چہ زۂ | تاسو سره یم | کۂ چرے | تاسو قائم کړو | مونځ
او اللہ تعالیٰ ورته وئیلی وو چہ زۂ ستاسو ملګرے یم کۂ تاسو مونځونه قائم وُساتل او

وَاٰتَيْتُمُ الزَّكٰوةَ وَاٰمَنْتُمْ بِرُسُلِيْ وَعَزَّرْتُمُوْهُمْ وَ
او ادا کړو تاسو | زکوٰة | او ایمان راوړو تاسو | زما په رسولانو | او دَ هغوی مدد موو کړو | او
او زکوٰة مو ادا کړو او زما په پیغمبرانو مو ایمان راوړو ، او دَ هغوی مدد مو کولو او

اَقْرَضْتُمُ اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا لَّاُكَفِّرَنَّ عَنْكُمْ سَيِّاٰتِكُمْ
قرض ورکړو تاسو | اللہ ته | قرض | ښۂ | نو زۂ به ضرور لرے کړم | له تاسو نه | ستاسو ګناهونه
او اللہ تعالیٰ له مو قرض حسنه ورکولو نو مونږ به یقینًا ستاسو ګناهونه تاسو نه لرے کړو

وَلَاُدْخِلَنَّكُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ۚ فَمَنْ
او خامخا به داخل کړم تاسو | جنتونو کښے | چہ بهیږی به | لاندِ دَ هغے نه | نهرونه | بیا چا چہ
او یقینًا تاسو به داسے باغونو ته داخل کړو چہ دَ هغے لاندِ به نهرونه بهیږی ، او څوک چہ

كَفَرَ بَعْدَ ذٰلِكَ مِنْكُمْ فَقَدْ ضَلَّ سَوَاۗءَ السَّبِيْلِ ۝۱۲
انکار وُکړو | پس له دے نه | له تاسو نه | نو هغۂ ورکه کړه | نیغه | لاره
پس له دے نه هم کفر وُکړی ، نو بیشکه هغه دَ سمے لارے نه بے لارے شو۔

فَبِمَا نَقْضِهِمْ مِّيْثَاقَهُمْ لَعَنّٰهُمْ وَجَعَلْنَا قُلُوْبَهُمْ
پس په وجه دَ ماتولو دَ دوی | خپله پخه وعده | مونږ لعنت وکړو په دوی | او جوړ کړل مونږ | زړونه دَ دوی
پس دَ دوی دَ پخے وعدے دَ ماتولو په وجه مونږ په دوی لعنت وکړو ، او دَ دوی زړونه مو سخت

قٰسِيَةً ۚ يُحَرِّفُوْنَ الْكَلِمَ عَنْ مَّوَاضِعِهٖ ۙ وَنَسُوْا
سخت | چہ دوی بدلوی | کلام | دَ هغے دَ اصل ځایونو نه | او دوی هیره کړه
کړل ، (اوس ئے دا حال دے چہ) دا خلق کلمے دَ خپل (اصلی) ځائے نه لرے کوی ، او چہ کوم نصیحت

حَظًّا مِّمَّا ذُكِّرُوْا بِهٖ ۚ وَلَا تَزَالُ تَطَّلِعُ عَلٰي خَاۗىِٕنَةٍ
لویه برخه | له هغه څۂ نه | چہ نصیحت ورکړ شوے وو دوی ته په هغے سره | او ته به همیشه | خبردارېږے | په څۂ خیانت بانډِ
ورته شوے وو دَ هغے لویه برخه ئے هیره کړے ده ، او تل به درته دَ دوی دَ رنګ رنګ خیانتونو پته لګی مګر

مِّنْهُمْ اِلَّا قَلِيْلًا مِّنْهُمْ فَاعْفُ عَنْهُمْ وَاصْفَحْ ۭ
له دوی نه | سوا | دَ لږو خلقو | له دوی نه | پس معاف کړه | دوی | او مخ وګرځوه
لږ کسان په کښے داسے دی چہ (دَ دے عیبه) بچ دی نو دوی معاف کړه او سترګے پرے پټے کړه

اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ ۝۱۳ وَمِنَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّا
بیشکه | اللہ | خوښوی | نیکان | او له هغو خلقو نه | چہ وائی | مونږه
بیشکه چہ نیکان خلق دَ اللہ تعالیٰ خوښ وی ۔ او هغه خلق کوم چہ وائی چہ مونږ

نَصٰرٰٓی اَخَذْنَا مِیْثَاقَهُمْ فَنَسُوْا حَظًّا مِّمَّا ذُكِّرُوْا بِهٖ

نصارٰی یُو | مونږ واخستله | دَ دوئی نه کلکه وعدہ | پس هیرہ کړہ دوئ | یوہ برخه | له هغه څه نه | چه نصیحت شوے وو دوئ ته په هغے

نصارٰی یُو مونږ دَ هغوی نه هم وعدہ اخستے وہ نو هغوی هم دَ هغو نصیحتونو لویه حصه هیرہ کړہ چه هغوئ ته شوی وو

فَاَغْرَیْنَا بَیْنَهُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَآءَ اِلٰی یَوْمِ الْقِیٰمَةِ

نو مونږ واچوله | په دوی کښے | دُښمنی | او کینه | تر ورځے | دَ قیامت پورے

نو مونږہ قیامته پورے دَ دوی په مینځ کښے دُښمنی او کینه وغورځوله .

وَسَوْفَ یُنَبِّئُهُمُ اللّٰهُ بِمَا كَانُوْا یَصْنَعُوْنَ ۝١٤ یٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ

او زر دہ چه وُبه ښائی دوی ته | الله | هغه څه چه | دوی به کول ، | اے اهلِ کتابو!

او ډیر زر به ئے الله تعالیٰ خبرکړی چه دوئ په دُنیا کښے څه څه کارونه کول ، اے اهل کتابو!

قَدْ جَآءَكُمْ رَسُوْلُنَا یُبَیِّنُ لَكُمْ كَثِیْرًا مِّمَّا

بیشکه راغے تاسو ته | پیغمبر زمونږ | چه بیانوی | تاسو ته | ډیر | له هغه څه نه

یقینًا تاسو ته زمونږ رسول راغلے دے ، او دَ کتاب هغه ډیرے خبرے چه تاسو به پټولے دَ هغے اکثرہ

كُنْتُمْ تُخْفُوْنَ مِنَ الْكِتٰبِ وَیَعْفُوْا عَنْ كَثِیْرٍ ۝ قَدْ جَآءَكُمْ

چه پټول تاسو | له کتاب نه | او عفوہ کوی | دَ ډیرو (خبرو) نه | راغلے دے تاسو ته

برخه هغه تاسو دَ پارہ څرګندوی او دَ ډیرو خبرونه درته عفوہ هم کوی ، بیشکه تاسو ته

مِّنَ اللّٰهِ نُوْرٌ وَّكِتٰبٌ مُّبِیْنٌ ۝١٥ یَّهْدِیْ بِهِ اللّٰهُ مَنِ اتَّبَعَ

دَ الله دَ طرف نه | نور | او کتاب | واضح | هدایت کوی | په هغے سرہ | الله | هغه چاته چه پیروی کوی

دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه نور او یو واضح کتاب راغلے دے ، دَ دے په ذریعه الله تعالیٰ هغه خلقو ته دَ سلامتیٔ

رِضْوَانَهٗ سُبُلَ السَّلٰمِ وَیُخْرِجُهُمْ مِّنَ الظُّلُمٰتِ اِلَی النُّوْرِ

دَ هغهٔ دَ رضا | لارے | دَ سلامتیٔ | او راوُباسی دوی | دَ تیارو نه | رڼا طرف ته

لارہ ښائی کوم چه دَ هغهٔ رضامندی غواړی او په خپل حکم سرہ هغوی (دَ کفر دَ) تیارونه (دَ هدایت)

بِاِذْنِهٖ وَیَهْدِیْهِمْ اِلٰی صِرَاطٍ مُّسْتَقِیْمٍ ۝١٦ لَقَدْ كَفَرَ الَّذِیْنَ

په خپل حکم سرہ | او هدایت کوی دوی ته | سمے لارے طرف ته | بیشکه | کافر شول | هغه خلق

رڼا ته راوباسی او هغوی ته سمه لار ښائی ۔ یقینًا هغه خلق کافران شول چه

قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْمَسِیْحُ ابْنُ مَرْیَمَ ؕ قُلْ فَمَنْ یَّمْلِكُ

چه وائی | بیشکه الله | هم دا مسیح ځوئے دَ مریم دے | ووایه | پس څوک مالک دے

وائی چه الله هم دغه مسیح دَ مریم ځوئے دے ، ته ورته ووایه چه څوک دلته شته

مِنَ اللّٰهِ شَیْـًٔا اِنْ اَرَادَ اَنْ یُّهْلِكَ الْمَسِیْحَ ابْنَ مَرْیَمَ وَاُمَّهٗ

دَ الله مخکښے | دَ څهٔ خیز | که چرے هغه وغواړی | چه هلاک کړی | مسیح ځوئے دَ مریم | او دَ هغهٔ مور

چه دَ الله مخکښے اختیار ولری که الله تعالیٰ دغواړی چه مسیح ځوئے دَ مریم او دَ هغهٔ مور او دَ زمکے ټول

وَمَنْ فِی الْاَرْضِ جَمِیْعًا ؕ وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ

او هغه ټول چه په زمکه کښے دی - | او هم الله لره ده | بادشاهي | دَ اسمانونو | او دَ زمکے

استونکی خلق هلاک کړی ، او دَ اسمانونو او دَ زمکے او دَ دے دواړو ترمینځه دَ ټولو څیزونو اختیار

وَمَا بَیْنَهُمَا ؕ یَخْلُقُ مَا یَشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ عَلٰی كُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ ⑰

او څۀ چه | دَ دے دواړو په مینځ کښے دی | هغه پیدا کوی | څۀ چه ئے غواړی | او الله | په هر څیز باندے | قادر دے -

صرف دَ الله تعالیٰ دے ، هر څۀ چه غواړی هغه پیدا کوی او الله تعالیٰ په هر څیز باندے قدرت لرونکے دے

وَقَالَتِ الْیَهُوْدُ وَالنَّصٰرٰی نَحْنُ اَبْنٰٓؤُا اللّٰهِ وَاَحِبَّآؤُهٗ ؕ قُلْ

او وائی | یهود | او نصاراٰی | مونږ (خو) | دَ الله ځامن | او دَ هغه دوستان یو | ووایه

او یهود او نصاراٰی وائی چه مونږ دَ الله تعالیٰ ځامن او زړۀ پورے یو - ورته ووایه چه

فَلِمَ یُعَذِّبُكُمْ بِذُنُوْبِكُمْ ؕ بَلْ اَنْتُمْ بَشَرٌ مِّمَّنْ خَلَقَ ؕ

بیا ولے | هغه تاسو ته عذاب درکوی | ستاسو په ګناهونو | بلکه | تاسو (هم) | انسانان یئ | دَ هغه چا نه چه | هغه پیدا کړی دی

بیا ولے تاسو ته په ګناهونو باندے سزا ګانے درکوی ؟ بلکه تاسو هم هغسے بنیادم یئ څنګه چه الله نور بنیادم پیدا کړی دی

یَغْفِرُ لِمَنْ یَّشَآءُ وَیُعَذِّبُ مَنْ یَّشَآءُ ؕ وَلِلّٰهِ مُلْكُ

بخښنه کوی | چا ته چه غواړی | او عذاب ورکوی | چا له چه غواړی | او هم الله دَ پاره ده | بادشاهي

چا ته چه ئے خوښه وی بخښنه کوی او چا ته چه ئے خوښه وی سزا ورکوی ، او دَ اسمانونو او دَ زمکے او دَ دواړو

السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَیْنَهُمَا ؗ وَاِلَیْهِ الْمَصِیْرُ ⑱ یٰۤاَهْلَ

دَ اسمانونو | او دَ زمکے | او څۀ چه دَ دے دواړو په مینځ کښے دی | او دَ هغه طرف ته | واپس تلل دی | اے اهلِ

ترمینځه دَ ټولو څیزونو اختیار یوازے دَ الله تعالیٰ دے ، او هغۀ ته واپس تلل دی اے اهلِ

الْكِتٰبِ قَدْ جَآءَكُمْ رَسُوْلُنَا یُبَیِّنُ لَكُمْ عَلٰی

کتابو ! | بیشکه راغلے دے تاسو ته | زمونږ رسول | بیانوی | تاسو دَ پاره | هر کله چه

کتابو ! تاسو ته زمونږ پیغمبر راغلے دے چه (دَ الله حکمونه) تاسو ته صفا صفا بیانوی ، په داسے وخت کښے

فَتْرَةٍ مِّنَ الرُّسُلِ اَنْ تَقُوْلُوْا مَا جَآءَنَا مِنْۢ بَشِیْرٍ وَّلَا

بند شوی وو دَ پیغمبرانو راتلل | چه تاسو دا ونۀ وایئ | (چه) نۀ وو راغلے مونږ ته | څوک زیرے ورکوونکے | او نۀ

چه دَ یو موده راسے دَ پیغمبرانو راتلل موقوف وو چه تاسو دا ونۀ وېلے شئ چه مونږ ته څوک زیرے راکوونکے (یا دَ عذابونه)

نَذِیْرٍ ؗ فَقَدْ جَآءَكُمْ بَشِیْرٌ وَّنَذِیْرٌ ؕ وَاللّٰهُ

ویرونکے | پس بیشکه راغے تاسو ته | زیرے درکوونکے | او ویرونکے | او الله

ویرونکے نۀ وو راغلے ، اوس بیشکه تاسو ته زیرے درکوونکے او ویرونکے (پیغمبر) راغلے دے ، او الله تعالیٰ په

عَلٰی كُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ ⑲ ع وَاِذْ قَالَ مُوْسٰی لِقَوْمِهٖ یٰقَوْمِ

ع ۳/۸

په هر څیز باند | قادر دے | او هر کله چه ووئیل | موسیٰ | خپل قوم ته | اے زما قومه

هر څۀ باندِ قدرت لری - او هغه وخت را یاد کړئ چه موسیٰ علیه السلام خپل قوم ته ووئیل چه اے زما قومه !

اذْكُرُوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ اِذْ جَعَلَ فِيْكُمْ اَنْبِيَآءَ

یاد کړئ | دَ الله احسان | (چه هغهٔ) په تاسو (وکړو) | هرکله چه هغهٔ پیدا کړل | په تاسو کښې | پیغمبران

الله چه تاسو له کوم نعمتونه درکړی دی هغه را یاد کړئ چه په تاسو کښې ئې پیغمبران راالیږلی دی ، او

وَجَعَلَكُمْ مُّلُوْكًا ۖ وَّاٰتٰىكُمْ مَّا لَمْ يُؤْتِ اَحَدًا

او جوړ ئې کړئ تاسو | بادشاهان | او درئې کړل تاسو ته | هغه څهٔ | چه نه ئې ؤو درکړی | بل چا ته

تاسو ئې بادشاهان کړی یئ ، او تاسو له ئې هغه څهٔ درکړی دی چه په نوړ مخلوق کښې ئې هیچا له نهٔ

مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٢٠﴾ يٰقَوْمِ ادْخُلُوا الْاَرْضَ الْمُقَدَّسَةَ

په ټول جهان کښې | اے زما قومه! | داخل شئ تاسو | زمکے | پاکے ته

دی ورکړی ، اے زما قومه! دے پاکیزه علاقے (شام) ته ورننوځئ چه الله تعالیٰ

الَّتِيْ كَتَبَ اللّٰهُ لَكُمْ وَلَا تَرْتَدُّوْا عَلٰٓى اَدْبَارِكُمْ فَتَنْقَلِبُوْا

چه لیکلے ده | الله | تاسو دَ پاره | او مهٔ راګرځئ | خپلو شاګانو طرف ته | کېنی شئ به تاسو

ستاسو په برخه کښې لیکلے ده ، او مخ په شا مهٔ تښتئ کېنی نامراد به پاتے

خٰسِرِيْنَ ﴿٢١﴾ قَالُوْا يٰمُوْسٰٓى اِنَّ فِيْهَا قَوْمًا جَبَّارِيْنَ ۖ وَاِنَّا

نقصان موندونکی | دوی وُوئیل | اے موسیٰ! | بیشکه | په هغې کښې | قوم دے | زبردست | او مونږ خو

شئ ۔ هغوی وؤئیل چه اے موسیٰ! په دغه ملک کښې یو ډیر جابر قوم اوسیږی او مونږ خو به

لَنْ نَّدْخُلَهَا حَتّٰى يَخْرُجُوْا مِنْهَا ۚ فَاِنْ يَّخْرُجُوْا مِنْهَا فَاِنَّا

به هیڅ کله داخل نهٔ شو هغه ځائے ته | ترهغې چه | دوی وُځی | له هغې نه | بیا کهٔ چرے | دوی په خپله وُځی | له هغې نه | نو مونږ ضرور

هلته هیڅ کله داخل نهٔ شو ترڅو چه هغوی دَ هغه ځائے نه وتلی نهٔ وی، هو! کهٔ هغوی دَ هغه ځائے نه وُځی نو بیا مونږ

دٰخِلُوْنَ ﴿٢٢﴾ قَالَ رَجُلٰنِ مِنَ الَّذِيْنَ يَخَافُوْنَ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمَا

به داخل شو | ووئیل | دوؤ سړو | له هغو خلقو نه | چه (الله نه) ویریدل | احسان کړے وو الله | په هغو دواړو باندې

ورننوتو ته تیار یو ۔ (په دے باندې) دَ الله نه ویره لرونکو نه دوؤ سړو وُوئیل ، په کومو چه الله تعالیٰ مهربانی کړے

ادْخُلُوْا عَلَيْهِمُ الْبَابَ ۚ فَاِذَا دَخَلْتُمُوْهُ فَاِنَّكُمْ

(چه) تاسو داخل شئ | په دوی باندې | (دَ ښار) دروازے نه | بیا هرکله چه | تاسو په هغې کښې داخل شئ | پس بیشکه تاسو به

وه چه (په دوی حمله وکړئ او دَ ښار په) دروازه کښې داخل شئ ، بیا چه کله په هغې کښې داخل شئ ، نو یقیناً هم تاسو

غٰلِبُوْنَ ۚ وَعَلَى اللّٰهِ فَتَوَكَّلُوْٓا اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿٢٣﴾

غالب یئ | او خاص په الله باندې | توکل وکړئ تاسو | کهٔ چرے یئ تاسو | مؤمنان

به غالب یئ ، او په الله تعالیٰ توکل ساتئ ، کهٔ تاسو مؤمنان یئ

قَالُوْا يٰمُوْسٰٓى اِنَّا لَنْ نَّدْخُلَهَآ اَبَدًا مَّا دَامُوْا فِيْهَا

دوی وُوئیل | اے موسیٰ! | مونږ خو به | هیڅ کله داخل نهٔ شو په هغې کښې | چرے هم | ترڅو چه هغوی په هغې کښې موجود دی

هغوی وُوئیل اے موسیٰ! مونږ به هیڅ کله په دغه ښار کښې قدم نه ږدو ترڅو چه هغوی په کښې موجود دی

فَاذْهَبْ اَنْتَ وَرَبُّكَ فَقَاتِلَآ اِنَّا هٰهُنَا قٰعِدُوْنَ ﴿٢٤﴾

پس لاړ شه | ته | او ستا رب | پس جنګ وکړئ دواړه | بیشکه مونږ به دلته | ناست یُو ۔

نو بس ته او ستا رب دواړه لاړ شئ او جنګ وکړئ ، مونږ به دلته ناست یُو

قَالَ رَبِّ اِنِّیْ لَآ اَمْلِكُ اِلَّا نَفْسِیْ وَاَخِیْ فَافْرُقْ

هغهٔ ووئیل | اے زما ربه ! | بیشکه زهٔ | څه اختیار نهٔ لرم | مګر | په خپل ځان | او په خپل ورور | پس فیصله وکړه

(په دے بانډې) حضرت موسٰی علیه السلام ووئیل اے زما ربه ! زما په اختیار کښے هیڅوک نشته خو یوزهٔ په خپله یم او بل م ورور دے

بَیْنَنَا وَبَیْنَ الْقَوْمِ الْفٰسِقِیْنَ ﴿٢٥﴾ قَالَ فَاِنَّهَا مُحَرَّمَةٌ عَلَیْهِمْ

په مینځ زمونږ | او په مینځ | دَ فاسقانو خلقو | وفرمائیل پس بیشکه هغه (زمکه) | حرام کړے شوے ده | په دوی بانډې

نو ته زمونږ او دَ دے نافرمانه قوم په مینځ کښے فیصله وکړه ۔ الله ورته وفرمائیل شبه ده نو دغه ملک تر څلوېښتو کالو

اَرْبَعِیْنَ سَنَةً ۚ یَتِیْهُوْنَ فِی الْاَرْضِ ؕ فَلَا تَاْسَ

څلوېښت | کاله | سرګردانه به وی دوی | په زمکه کښے | پس ته مهٔ غمژن کیږه

په دوی حرام دے ، په زمکه به سرو هلی ګرځی ، نو ته دَ دے نافرمانه

عَلَی الْقَوْمِ الْفٰسِقِیْنَ ﴿٢٦﴾ وَاتْلُ عَلَیْهِمْ نَبَاَ ابْنَیْ اٰدَمَ

په قوم | نافرمانه بانډې | او واوروه | دوی ته | حال | دَ دوو ځامنو دَ آدم

قوم په حال بانډې افسوس مهٔ کوه ، او (اے پیغمبره !) خلقو ته دَ آدم علیه السلام دَ دواړو ځامنو رښتونے

بِالْحَقِّ ۘ اِذْ قَرَّبَا قُرْبَانًا فَتُقُبِّلَ مِنْ اَحَدِهِمَا وَلَمْ یُتَقَبَّلْ

رښتونے | هرکله چه | دواړو قربانی وکړه | نو قبوله شوه | دَ یو له هغوی نه | او قبوله نهٔ شوه

واقعه واوروه ، هرکله چه دواړو یو یو قربانی پیش کړه نو په دوی کښے دَ یو قربانی قبوله کړے شوه او دَ بل قبوله

مِنَ الْاٰخَرِ ؕ قَالَ لَاَقْتُلَنَّكَ ؕ قَالَ اِنَّمَا یَتَقَبَّلُ اللّٰهُ

له بل نه | هغهٔ ووئیل | زهٔ به خامخا تا ووژنم | هغهٔ ووئیل | بیشکه چه | قبلوی | الله

نه شوه ۔ (په دے بانډې) دویم ووئیل چه زهٔ به تا ضرور ووژنم ، هغهٔ په جواب کښے ووئیل چه الله تعالیٰ خو بس دَ

مِنَ الْمُتَّقِیْنَ ﴿٢٧﴾ لَئِنْۢ بَسَطْتَّ اِلَیَّ یَدَكَ لِتَقْتُلَنِیْ

له پرهیزګارانو نه | که چرے | رااوږده کړه تا | ما ته | خپل لاس | چه ته قتل کړے ما

دَ پرهیزګاراتو نذرانے قبلوی ، که ته په ما بانډې دَ وژلو دَ پاره لاس اُوچت کړے ، نو زهٔ

مَآ اَنَا بِبَاسِطٍ یَّدِیَ اِلَیْكَ لِاَقْتُلَكَ ۚ اِنِّیْٓ اَخَافُ اللّٰهَ

نو زهٔ به دراوږد نهٔ کړم | خپل لاس | تا ته | چه زهٔ ووژنم تا | بیشکه زهٔ | ویریږم | دَ الله نه

به بیا هم ستا په وژلو پسے خپل لاس اوږد نهٔ کړم ، زهٔ دَ الله تعالیٰ نه ډیر ویریږم

رَبَّ الْعٰلَمِیْنَ ﴿٢٨﴾ اِنِّیْٓ اُرِیْدُ اَنْ تَبُوْٓاَ بِاِثْمِیْ وَاِثْمِكَ

(چه) رب دے | دَ ټولو جهانونو | بیشکه زهٔ | غواړم | چه هم ته یوسے | زما ګناه | او خپله ګناه (هم)

چه دَ ټول مخلوق پروردګار دے ۔ زهٔ غواړم (چه زیاتے زما دَ طرف نه نهٔ وی بلکه) هم ته زما او خپل ګناهونه ټول په



ربع ٧ وقف لازم النصف

فَتَكُونَ مِنْ أَصْحٰبِ النَّارِ ۚ وَذٰلِكَ جَزٰٓؤُا الظّٰلِمِينَ ﴿٢٩﴾

پس چه ته شې | له دوزخیانو نه | او داده | سزا | دَ ظالمانو

په خپله ذمه واخلې او دوزخي شې ، او دَ ظالمانو هم دا سزا ده ،

فَطَوَّعَتْ لَهُ نَفْسُهُ قَتْلَ أَخِيهِ فَقَتَلَهُ فَأَصْبَحَ

بیا تیار کړو | هغه | دَ هغهٔ نفس | په وژلو دَ خپل ورور | پس وُ یې وژلو هغه | او هغه شو

نو خپل نفس دے دَ خپل ورور وژلو ته تیار کړو ، نو هغه یې وُوژلو نو په زیان کارانو کښې

مِنَ الْخٰسِرِينَ ﴿٣٠﴾ فَبَعَثَ اللّٰهُ غُرَابًا يَبْحَثُ فِي الْأَرْضِ

دَ نقصان مونده وکونه | پس راولیږلو | الله | یو کارغهٔ | چه کنستله یې | زمکه

شامل شو ، بیا الله تعالیٰ یو کارغهٔ راولیږلو ، چه زمکه یې کنستله

لِيُرِيَهُ كَيْفَ يُوَارِي سَوْءَةَ أَخِيهِ ۚ قَالَ يٰوَيْلَتٰٓى

چه وُښائی دے ده ته | چه څنګه | دے پټ کړی | کالبوت | دَ خپل ورور | ده وُوئیل | اے افسوس ماله

چه چل ورته وښائی چه دَ خپل ورور کالبوت به څنګه پټوی (چه دائے ولیدل نو) هغهٔ ووئیل اے کاش

أَعَجَزْتُ أَنْ أَكُونَ مِثْلَ هٰذَا الْغُرَابِ فَأُوَارِيَ سَوْءَةَ

ایا عاجزه شوم زهٔ | له دے نه چه شم زه | په شان | ددے | کارغهٔ | پس چه پټ کړم زهٔ | کالبوت

چه زهٔ دَ دے کارغهٔ په شان (هوښیار) وے او دَ خپل ورور دَ کالبوت پټولو بند وبست م

أَخِي ۚ فَأَصْبَحَ مِنَ النّٰدِمِينَ ﴿٣١﴾ مِنْ أَجْلِ ذٰلِكَ ۚ

دَ خپل ورور | پس شو هغه | له پښیمانو نه | په دے وجه

کړے وے ، نو هغه په خپلو کړو ډیر پښیمانه شو ، په دے وجه

كَتَبْنَا عَلٰى بَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ أَنَّهُ مَنْ قَتَلَ نَفْسًا

مونږ وُلیکل (تورات کښې) | بنی اسرائیلو باندِ | چه | څوک | قتل کړی | یو نفس

مونږ بنی اسرائیلو ته دا حکم ورکړے وو ، چه چا یو نفس دَ بل نفس دَ بدلے نه

بِغَيْرِ نَفْسٍ أَوْ فَسَادٍ فِي الْأَرْضِ فَكَأَنَّمَا قَتَلَ

بے له عوض دَ نفس نه | یا بے له فساد کولو نه | په زمکه کښې | پس داسے ده لکه چه | وُوژل ده

بغیر یا دَ زمکے په مخ دَ فساد کولو نه بغیر ووژلو نو ګویا هغهٔ ټول بنیادم

النَّاسَ جَمِيعًا ۚ وَمَنْ أَحْيَاهَا فَكَأَنَّمَآ أَحْيَا النَّاسَ جَمِيعًا ۚ

ټول خلق | او چا چه دَ یو نفس ژوند بچ کړو | نو ګویا | دهٔ ژوندی کړل | ټول خلق

ووژل ، او چا چه دَ یو نفس ژوند بچ کړو نو ګویا هغهٔ دَ ټولو خلقو ژوند بچ کړو

وَلَقَدْ جَآءَتْهُمْ رُسُلُنَا بِالْبَيِّنٰتِ ثُمَّ إِنَّ كَثِيرًا مِّنْهُمْ

او بیشکه | راغلل دوی ته | پیغمبران زمونږ | په روښانه نخښو سره | بیا | بیشکه | ډیر | له دوی نه

او زمونږ پیغمبرانو دوی ته څرګندے نخښے راوړے ، سره دَ دے بیا هم په دوی کښے ډیر خلق

معانقہ وقف النبی صلی اللہ علیہ وسلم

بَعْدَ ذٰلِكَ فِى الْاَرْضِ لَمُسْرِفُوْنَ ﴿٣٢﴾ اِنَّمَا جَزٰٓؤُا الَّذِيْنَ

پس | له دے نه | په زمکه کښے | له حد نه وتونکی دی | بیشکه | سزا | دَ هغے خلقو

دَ زمکے په مخ زیاتے کوی ۔ څوک چه دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسول سره

يُحَارِبُوْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَيَسْعَوْنَ فِى الْاَرْضِ فَسَادًا

کوم چه جنګ کوی | الله | او دَ هغهٔ رسول سره | او کوشش کوی | په زمکه کښے | دَ فساد (خوروولو)

جنګیږی او دَ زمکے په مخ دَ فساد کولو کوشش کوی دَ هغوی سزا دا ده چه

اَنْ يُّقَتَّلُوْٓا اَوْ يُصَلَّبُوْٓا اَوْ تُقَطَّعَ اَيْدِيْهِمْ وَاَرْجُلُهُمْ

چه قتل دِ کړے شی | یا په سولئ دِ کړے شی | یا دِ پرېکړے شی | دَ دوی لاسونه | او دَ دوی ښپے

ووژلے شی یا په سولئ کړے شی یا دَ هغوی لاسونه او ښپے دَ مخالف طرفونو نه پرېکړے

مِّنْ خِلَافٍ اَوْ يُنْفَوْا مِنَ الْاَرْضِ ۭ ذٰلِكَ لَهُمْ خِزْيٌ فِى الدُّنْيَا

له مخالف طرف نه | یا دِ ووېستلے شی دوی | له ملک نه | دا | دَ دوی | ذلت (دے) | په دُنیا کښے

شی ، او یا دَ وطن نه وشړلے شی ، دا شرمندګی خو دوی له په دنیا کښے مقرر ده

وَلَهُمْ فِى الْاٰخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ﴿٣٣﴾ اِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا مِنْ قَبْلِ

او دَ دوی دَ پاره | په آخرت کښے | عذاب دے | ډیر لوئے | مګر هغه خلق | چه توبه وکړی | له دے نه وړاندِ

او په آخرت کښے ورله ډیر لوئے عذاب تیار دے ۔ البته کوم خلق چه ستاسو په قابو کښے دَ راتلو

اَنْ تَقْدِرُوْا عَلَيْهِمْ ۚ فَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿٣٤﴾

چه تاسو قابو بیا مومئ | په هغوی باندِ | پس پوهه شئ | چه | الله | بخښونکے | مهربان دے ۔

نه وړاندِ توبه وکړی (نو هغوی پریږدئ) ، نو پوهه شئ چه الله تعالیٰ بخښونکے مهربانه دے ۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَابْتَغُوْٓا اِلَيْهِ الْوَسِيْلَةَ

اے مؤمنانو ! | ووېرېږئ | له الله نه | او لټوئ | دَ هغهٔ طرف ته | وسیله

اے مؤمنانو ! دَ الله تعالیٰ نه ووېرېږئ او دَ هغهٔ په دلیار کښے دَ کامیابئ ذریعه ولټوئ

وَجَاهِدُوْا فِىْ سَبِيْلِهٖ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿٣٥﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

او جهاد کوئ | دَ هغهٔ په لاره کښے | دَ پاره دَ دے چه تاسو | کامیاب شئ ۔ | بیشکه | کوم خلق چه | کافران دی

او دَ هغهٔ په لار کښے جهاد کوئ چه کامیاب شئ ۔ بیشکه چا چه دَ کفر لار غوره

لَوْ اَنَّ لَهُمْ مَّا فِى الْاَرْضِ جَمِيْعًا وَّمِثْلَهٗ مَعَهٗ

که چرے | وی دوی سره | هغه څه چه | په زمکه کښے دی | ټول | او هم دومره | دَ هغے سره (نور هم)

کړے ده که هغوی ته دَ زمکے ټول دولت په لاس ورشی او دَ دے هومره نور هم (ورته غواړی)

لِيَفْتَدُوْا بِهٖ مِنْ عَذَابِ يَوْمِ الْقِيٰمَةِ مَا تُقُبِّلَ مِنْهُمْ ۚ وَلَهُمْ

چه هغوی خپله فدیه ورکړی (او خلاص شی) | له عذاب نه | په ورځ دَ قیامت | نو هم به قبول نه کړے شی | له دوی نه | او دوی له دے

چه دَ قیامت دَ عذاب په بدله کښے ئے ورکړی نو دَ هغوی نه به دا فدیه هیڅ کله قبوله نه شی او دوی

عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿٣٦﴾ يُرِيْدُوْنَ اَنْ يَّخْرُجُوْا مِنَ النَّارِ وَمَا هُمْ بِخٰرِجِيْنَ

عذاب | دردناک | دوی به غواړی | چه | راووځی | له دوزخ نه | او نه به دوی | وتونکی

له دردناک عذاب تیار دے. دوی به غواړی چه د دوزخ نه ووځی لیکن د هغه ځائے نه به وتلے نهٔ شی

مِنْهَا ۫ وَلَهُمْ عَذَابٌ مُّقِيْمٌ ﴿٣٧﴾ وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ

له هٔغه نه | او دوی له | عذاب دے | همیشه قائم پاتے کیدونکے | او غل سړے | او غله ښځه

او دوی له د همیشه عذاب مقرر دے او غل که سړے وی او که ښځه وی

فَاقْطَعُوْۤا اَيْدِيَهُمَا جَزَآءًۢ بِمَا كَسَبَا نَكَالًا مِّنَ اللّٰهِ ؕ

پرېکړئ | لاسونه د دواړو | په طور د سزا | د دوی د جرم | عبرت | د الله له طرف نه

نو د دواړو نه لاسونه پرېکوئ، دا د هغوئ د عمل بدل له دے او د الله تعالیٰ د طرف نه مقرره سزا ده

وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿٣٨﴾ فَمَنْ تَابَ مِنْۢ بَعْدِ ظُلْمِهٖ وَاَصْلَحَ

او الله | زبردست | خاوند د حکمت دے | بیا څوک چه | توبه وکړی | پس له خپل ظلم نه | او عمل ښهٔ کړی

او الله تعالیٰ غالب دے په هر حکمت واقف دے. نو څوک چه د زیاتی کولو نه پس توبه وباسی، او خپل ځان سم

فَاِنَّ اللّٰهَ يَتُوْبُ عَلَيْهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿٣٩﴾

نو بیشکه | الله | قبلوی توبه د هغهٔ | بیشکه | الله | بخښونکے | مهربان دے

کړی نو الله تعالیٰ د هغهٔ توبه قبلوی، بیشکه الله تعالیٰ بخښونکے مهربان دے.

اَلَمْ تَعْلَمْ اَنَّ اللّٰهَ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ يُعَذِّبُ

آیا تهٔ نهٔ پوهیږے | چه هم د الله دے | حکومت | د آسمانونو | او د زمکے | هغه عذاب ورکوی

آیا تا ته معلومه نهٔ ده چه د آسمانونو او د زمکے بادشاهی بوازے د الله تعالیٰ ده چا له چه غواړی

مَنْ يَّشَآءُ وَيَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿٤٠﴾

چا ته چه غواړی | او هغه بخښنه کوی | چا ته چه غواړی | او الله | په هر څیز باندے | قادر دے.

سزا ورکوی او چا له چه غواړی هغه بخښی، او الله تعالیٰ په هر څهٔ پوره پوره قدرت لری.

يٰۤاَيُّهَا الرَّسُوْلُ لَا يَحْزُنْكَ الَّذِيْنَ يُسَارِعُوْنَ فِى الْكُفْرِ

اے پیغمبره! | غمژن دِ نه کړی تا | هغه خلق | چه په تیزئ سره (شریک) شی | په کفر کښے

اے پیغمبره! تهٔ دِ هیڅکله د هغه خلقو په کارونو غمژن نهٔ شے، چه کفر ته په منډو منډو ور پریوځی

مِنَ الَّذِيْنَ قَالُوْۤا اٰمَنَّا بِاَفْوَاهِهِمْ وَلَمْ تُؤْمِنْ قُلُوْبُهُمْ ۛۚ

له هغو خلقو نه | چه وائی | مونږ ایمان راوړو | په خپلو خولو | او ایمان نهٔ دے راوړے | د هغوی زړونو

دا په هغو (منافقو) خلقو کښے دی چه په خپلو خولو وائی چه مونږ ایمان راوړے دے او د هغوی په زړونو کښے ایمان موجود نه دے

وَمِنَ الَّذِيْنَ هَادُوْا ۛۚ سَمّٰعُوْنَ لِلْكَذِبِ سَمّٰعُوْنَ

او له هغو خلقو نه | چه یهودیان دی | اورېدونکی دی | د دروغ خبرو | اورېدونکی دی

او د هغو خلقو نه چه یهودیان شوی دی، د دوئ دا حال دے چه د دروغو سره عادت دی او د هغه نورو خلقو د پاره

الوقف علی الأول اجوز ۱۱ ۞

لِقَوْمٍ اٰخَرِيْنَ ۙ لَمْ يَأْتُوْكَ ؕ يُحَرِّفُوْنَ الْكَلِمَ
دَ نورو خلقو دَ پاره | چه نهٔ دی راغلی تا ته | هغوی بدلوی | کلام
چه تاسوله چرے راغلی نهٔ دی جاسوسی هم کوی . دا خلق صحيح خبرے دَ ځائے نه

مِنْۢ بَعْدِ مَوَاضِعِهٖ ۚ يَقُوْلُوْنَ اِنْ اُوْتِيْتُمْ هٰذَا فَخُذُوْهُ وَاِنْ
پس (دَ ثابت کيدلو دَ هغے) په ځايونو کښے | هغوی وائی | کهٔ درکړے شو تاسو ته | دا (حکم) | نو هغه منئ | او کهٔ چرے
بے ځايه کوی ، خلقو ته وائی که تاسو ته دا (بدل شوے) حکم درکړے شی (کوم چه مونږ غواړو) تو قبول ئے

لَّمْ تُؤْتَوْهُ فَاحْذَرُوْا ؕ وَمَنْ يُّرِدِ اللّٰهُ فِتْنَتَهٗ فَلَنْ تَمْلِكَ لَهٗ
درنهٔ کړے شو تاسو ته دا | نو ځان وساتئ | او چا لره چه | الله په فتنه کښے غورزول غواړی | نو ته نهٔ هيڅکله نهٔ شے بچ کولے
کړئ او کهٔ درنهٔ کړے شی نو ځان ترے وساتئ . او چا لره چه الله تعالیٰ په فتنه کښے غورزول غواړی نو دَ هغهٔ ( دَ

مِنَ اللّٰهِ شَيْئًا ؕ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ لَمْ يُرِدِ اللّٰهُ اَنْ يُّطَهِّرَ
دَ الله نه | پوئے هم | هم دا دی هغه خلق چه | نهٔ ده اراده کړے الله | چه پاک کړی
هدايت دَ پاره) الله سره ستا هيڅ اختيار نشته . دا هغه خلق دی چه الله تعالیٰ هم نهٔ غواړی چه دَ دوی زړونه

قُلُوْبَهُمْ ؕ لَهُمْ فِى الدُّنْيَا خِزْىٌ ۚۖ وَّلَهُمْ فِى الْاٰخِرَةِ
دَ دوی زړونه | دوی له | په دنيا کښے | رسوائی (ده) | او دوی له | په آخرت کښے
پاک صفا کړی ، دَ دوی دَ پاره په دنيا کښے رسوائی ده ، او په آخرت کښے ورله لوئے

عَذَابٌ عَظِيْمٌ ﴿٤١﴾ سَمّٰعُوْنَ لِلْكَذِبِ اَكّٰلُوْنَ لِلسُّحْتِ ؕ
عذاب دے | لوئے | اُورېدونکی دی | دَ دروغو خبرے | خوړونکی دی | دَ حرامو
عذاب مقرر دے . دا خلق دَ دروغو خوړولو په خاطر جاسوسی کوونکی (او) بنهٔ حرام خوړونکی دی .

فَاِنْ جَآءُوْكَ فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ اَوْ اَعْرِضْ عَنْهُمْ ۚ
پس کهٔ چرے | دوی راشی تا ته | نو فيصله وکړه | دَ دوی په مينځ کښے | يا مخ واړوه | له دوی نه
نو کهٔ تا له (په مقدمو کښے) راشی نو (کهٔ ستا خوښه وی نو) دَ دوی ترمينځهٔ فيصله وکړه کښی انکار ترے نه وکړه

وَاِنْ تُعْرِضْ عَنْهُمْ فَلَنْ يَّضُرُّوْكَ شَيْئًا ؕ وَاِنْ حَكَمْتَ
او کهٔ چرے | ته مخ وګرځوے | له دوی نه | نو دوی په هيڅکله ضرر ونه رسوی تا ته | دَ څهٔ څيز | او کهٔ چرے | ته فيصله کوے
او کهٔ انکار ترے نه وکړے نو دوی تا ته هيڅ نقصان نهٔ شی در رسولے ، او کهٔ فيصله کوے نو دَ دوی

فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ بِالْقِسْطِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِيْنَ ﴿٤٢﴾
نو فيصله وکړه | په دوی کښے | په انصاف سره | بيشکه | الله خوښوی | انصاف کوونکی
ترمينځهٔ په انصاف سره فيصله کوه ، بيشکه الله تعالیٰ انصاف کوونکی کسان خوښوی .

وَكَيْفَ يُحَكِّمُوْنَكَ وَعِنْدَهُمُ التَّوْرٰىةُ فِيْهَا حُكْمُ
او څنګه به | دوی تا منصف جوړ کړی | او دوی سره | تورات دے | چه په هغے کښے | حکم دے
او دوی به تا څنګه منصف مقرر کړی حال دا دے چه دوی سره تورات موجود دے چه په کښے دَ الله تعالیٰ

ع ٩ / ١٠

اللّٰهِ ثُمَّ يَتَوَلَّوْنَ مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ ؕ وَمَآ اُولٰٓئِكَ بِالْمُؤْمِنِيْنَ ﴿٤٣﴾

دَ الله | بیا | دوی مخ اړوی | پس له دے نه | او نهٔ دی داخلق | مؤمنان

حکم پیکے دے، او بیا دوئ دَ هغے نه مخ هم کرځوی ، (په حقیقت کښے) داخلق ایمان نهٔ لری۔

اِنَّآ اَنْزَلْنَا التَّوْرٰىةَ فِيْهَا هُدًى وَّنُوْرٌ ۚ يَحْكُمُ بِهَا

بیشکه مونږ نازل کړو | تورات | چه په هغے کښے | هدایت | او رڼا وه۔ | فیصله کوله | په هغے سره

بیشکه مونږ تورات نازل کړو چه په کښے هدایت او رڼا ده ، دَ الله تعالیٰ پیغمبران چه دَ هغه

النَّبِيُّوْنَ الَّذِيْنَ اَسْلَمُوْا لِلَّذِيْنَ هَادُوْا وَالرَّبّٰنِيُّوْنَ وَالْاَحْبَارُ

پیغمبرانو | کوم چه | فرمانبرداره وو دَ الله | دَ هغو خلقو دَپاره چه یهود وو | او دَ دوی بزرګانو | او عالمانو (هم)

فرمانبردار (بندګان) وو، یهودیانو ته په دَ دے کتاب مطابق حکمونه ورکول او دغسے بزرګانو او عالمونه هم

بِمَا اسْتُحْفِظُوْا مِنْ كِتٰبِ اللّٰهِ وَكَانُوْا عَلَيْهِ شُهَدَآءَ ۚ

په دے وجه | چه دوی محافظ مقرر کړے شوی وو | دَ الله دَ کتاب | او دوی وو | په هغے باندی | ګواهان

ځکه چه دوی دَ الله تعالیٰ دَ کتاب ذمه وار کړے شوی وو او په خپله په دے خبره ګواهان شوی وو

فَلَا تَخْشَوُا النَّاسَ وَاخْشَوْنِ وَلَا تَشْتَرُوْا بِاٰيٰتِيْ

پس مهٔ ویریږئ تاسو | دَ خلقو نه | او وویریږئ له مانه | او | مهٔ | اخلئ | په بدل زما د ایتونو

نو تاسو دَ خلقو نه مهٔ ویریږئ او ما نه ویریږئ او زما ایتونه په لږ قیمت

ثَمَنًا قَلِيْلًا ؕ وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ

قیمت | لږ | او څوک چه | فیصله ونه کړی | په هغه څه چه | نازل کړی دی | الله

مهٔ خرڅوئ ـ او څوک چه دَ الله تعالیٰ دَ نازل شوی کتاب مطابق فیصله ونهٔ کړی

فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْكٰفِرُوْنَ ﴿٤٤﴾ وَكَتَبْنَا عَلَيْهِمْ فِيْهَآ اَنَّ النَّفْسَ

پس دغه خلق | کافران دی | او مونږ فرض کړی وُ | په دوی باندی | په دے (تورات) کښے | چه نفس

نو هم دغه خلق کافران دی او مونږ دوئ ته په تورات کښے حکم ورکړے وو چه دَ ځان

بِالنَّفْسِ ۙ وَالْعَيْنَ بِالْعَيْنِ وَالْاَنْفَ بِالْاَنْفِ

په بدله دَ نفس کښے | او سترګه | په بدله دَ سترګه کښے | او پوزه | په بدله دَ پوزه کښے

بدل ځان دَ سترګے بدل سترګه دَ پوزے بدل پوزه ،

وَالْاُذُنَ بِالْاُذُنِ وَالسِّنَّ بِالسِّنِّ ۙ وَالْجُرُوْحَ قِصَاصٌ ؕ

او غوږ | په بدله دَ غوږ کښے | او غاښ | په بدله دَ غاښ کښے | او زخمونه | په قصاص دی

دَ غوږ بدل غوږ ، دَ غاښ بدل غاښ او دَ ټولو زخمونو بدل برابر زخم

فَمَنْ تَصَدَّقَ بِهٖ فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَّهٗ ؕ وَمَنْ

پس څوک چه | معافی وکړی | دَ دغے (زخم) | نو هغه | په کفاره وی | دَ هغهٔ (دَ ګناهونو) | او څوک

نو چا چه معافی وکړه نو دا (معافی) به دَ هغهٔ دَ ګناهونو کفاره ګرځی ، او څوک چه

لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿٤٥﴾

چه فیصله ونهٔ کړی | په هغه څهٔ | چه نازل کړی دی | الله | نو هم هغه دی | ظالمان

دَ الله تعالیٰ دَ نازل شوو حکمونو مطابق فیصله ونهٔ کړی نو هم دغه خلق ظالمان دی

وَقَفَّيْنَا عَلٰٓى اٰثَارِهِمْ بِعِيْسَى ابْنِ مَرْيَمَ مُصَدِّقًا

او له دوی نه پس ولیږلو مونږ | دَ دوی په پل باندې | عیسیٰ | ځوئے | دَ مریم | تصدیق کوونکے

بیا مونږ په دغے پیغمبرانو پسے عیسیٰ ځوئے دَ مریم راولیږلو چه دَ هغه کتاب تصدیق ئے کولو

لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ التَّوْرٰىةِ ۪ وَاٰتَيْنٰهُ الْاِنْجِيْلَ

دَ هغه څهٔ چه | له دے نه وړاندې وُو | چه تورات دے | او مونږ ورکړو هغهٔ ته | انجیل

چه له دے نه وړاندې وو یعنی تورات ، او مونږ هغهٔ له انجیل ورکړو

فِيْهِ هُدًى وَّنُوْرٌ ۙ وَّمُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ

چه په دے کښے | هدایت | او رڼا وه | او تصدیق کوونکے وو | دَ هغه څهٔ | چه وړاندې له هغه نه وو

چه په هغے کښے هدایت او رڼا وه ، او دا کتاب تصدیق کوونکے وو دَ تورات چه له

مِنَ التَّوْرٰىةِ وَهُدًى وَّمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِيْنَ ﴿٤٦﴾ؕ وَلْيَحْكُمْ

چه تورات دے | او هدایت | او نصیحت وو | پرهیزګارانو دَ پاره | او فیصله دِ وُکړی

دے نه وړاندې نازل شوے وو او دا دَ پرهیزګارانو دَ پاره هدایت او نصیحت وُو او پکار دا وُو چه دَ

اَهْلُ الْاِنْجِيْلِ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فِيْهِ ؕ وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ

اهلِ انجیل | په هغه څهٔ | چه نازل کړی دی | الله | په دے کښے | او څوک چه | فیصله ونهٔ کړی

انجیل منونکو دَ هغے حکمونو مطابق فیصله کولے کوم چه الله تعالیٰ په انجیل کښے نازل کړل ، او څوک چه دَ الله تعالیٰ

بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ ﴿٤٧﴾ وَاَنْزَلْنَآ

په هغه څه | چه نازل کړی دی | الله | نو هغوی دی | نافرمانه | او مونږ نازل کړو

دَ نازل کړو تعلیماتو مطابق فیصله وُنه کړی نو هم داسے خلق نافرمانه دی . او (اے پیغمبره!)

اِلَيْكَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ

ستا طرف ته | دا کتاب (قرآن) | په حق سره | تصدیق کوونکے | دَ هغه څه | چه دَ دے نه وړاندې وو

مونږ ستا طرف ته رښتونے کتاب درولیږلو چه دَ هغو کتابونو تصدیق کوونکے دے چه دَ وړاندې

مِنَ الْكِتٰبِ وَمُهَيْمِنًا عَلَيْهِ فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَآ

له کتاب نه | او محافظ دے | په هغے باندې | پس حکم وکړه | دَ دوی په مینځ کښے | په هغه څهٔ

نه وُو او دَ هغو محافظ هم دے ، نو ته دَ هغو احکامو مطابق دَ خلقو ترمینځهٔ فیصله کوه

اَنْزَلَ اللّٰهُ وَلَا تَتَّبِعْ اَهْوَآءَهُمْ عَمَّا جَآءَكَ مِنَ الْحَقِّ ؕ

چه نازل کړی دی | الله | او پیروی مهٔ کوه | دَ دوی دَ خواهشاتو | له هغه څهٔ نه چه تا ته راغلی دی | له حکم دَ خدائے نه

کوم چه الله تعالیٰ نازل کړی دی او دَ دوی په خواهشاتو پسے مهٔ ځه دَ هغے حقے لارے په مقابله کښے چه تا ته راغلے ده .

لِكُلٍّ جَعَلْنَا مِنْكُمْ شِرْعَةً وَّمِنْهَاجًا ۚ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ

هر یو لپاره د تاسو مقرر کړې ده مونږ | یو شریعت | او طریقه | او که چیرې غوښتلې | الله

هر یو لپاره له تاسو مقرر کړې ده مونږ یو خاص شریعت او خاص لار مقرر کړې ده ۔ او که الله تعالیٰ ته منظوره وې
مونږ تاسو کښې هر یو (ټولي) له یو خاص شریعت او خاص لار مقرر کړې ده ۔

لَجَعَلَكُمْ اُمَّةً وَّاحِدَةً وَّلٰكِنْ لِّيَبْلُوَكُمْ فِيْ مَآ اٰتٰىكُمْ

نو خامخا به ئې کړځولي وئ تاسو | یو امت | او لیکن چه | ازمائي تاسو | په هغه څه کښې | چه درکړل تاسو ته

نو تاسو ټول به ئې یو ټولې کړي وئ ، خو هغه داغواړي چه په خپلو حکمونو کښې ستاسو ازمېښت وکړي نو د

فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرٰتِ ۚ اِلَى اللّٰهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيْعًا فَيُنَبِّئُكُمْ

نو وړاندې شئ | نیکیو ته | الله طرف ته | واپس تلل دي ستاسو | د ټولو | پس هغه به تاسو ته ووائي

نیکئ کارونو ته وړاندې شئ ، اخر ستاسو د ټولو الله تعالیٰ طرف ته واپس تلل دي ، بیا به هغه تاسو ته

بِمَا كُنْتُمْ فِيْهِ تَخْتَلِفُوْنَ ﴿٤٨﴾ وَاَنِ احْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَآ

هغه څه | چه تاسو به | په هغې کښې | اختلاف کولو | او (دا) چه | فیصله وکړه | د دوي په مینځ کښې | د هغه څه

د هغه څیز حقیقت وښائي په کوم کښې چه تاسو په خپل مینځ کښې اختلاف کولو ۔ او (اې پیغمبره!) د دوئ ترمینځه د خدای

اَنْزَلَ اللّٰهُ وَلَا تَتَّبِعْ اَهْوَآءَهُمْ وَاحْذَرْهُمْ اَنْ يَّفْتِنُوْكَ

چه نازل کړل | الله | او پیروي مه کوه | د دوي د خواهشاتو | او محتاط اوسه له دوي نه | چه دوي تا په فتنه کښې وانه چوي

د حکم مطابق فیصله کوه ، او د دوئ په خواهشاتو پسې مه ځه او د دوي له طرفه محتاط اوسه چه د دا سې یو حکم نه

عَنْۢ بَعْضِ مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ اِلَيْكَ ۚ فَاِنْ تَوَلَّوْا فَاعْلَمْ

په څه (حکم) کښې | کوم چه | نازل کړې دې | الله | ستا طرف ته | بیا که چیرې | دوي مخ واړوي | نو پوهه شه

دِهم وانه ړوي کوم چه الله تعالیٰ تا ته رالیږلې دے ۔ بیا که چیرې دوي نه مني نو پوهه شه

اَنَّمَا يُرِيْدُ اللّٰهُ اَنْ يُّصِيْبَهُمْ بِبَعْضِ ذُنُوْبِهِمْ ۗ وَاِنَّ كَثِيْرًا

چه بیشکه | غواړي | الله | چه سزا ورکړي دوي ته | په سبب د ځنې | ګناهونو د دوي | او بیشکه | ډیر

چه الله تعالیٰ ته دا منظوره ده چه دوي له د ځنو ګناهونو (په دې دنیا کښې) سزا ورکړي او په دې کښې شک

مِّنَ النَّاسِ لَفٰسِقُوْنَ ﴿٤٩﴾ اَفَحُكْمَ الْجَاهِلِيَّةِ يَبْغُوْنَ ۚ وَمَنْ اَحْسَنُ

له خلقو نه | فاسقان دي | پس آیا فیصله | د جاهلیت | غواړي دوي | او څوک دې ډیر ښه

نشته چه په خلقو کښې ډیر نافرمانه دي ۔ نو آیا دا خلق د جاهلیت د وختونو فیصلې غواړي ؟ او یقین لرونکو

مِنَ اللّٰهِ حُكْمًا لِّقَوْمٍ يُّوْقِنُوْنَ ﴿٥٠﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

له الله نه | په فیصله کولو کښې | د پاره د هغه قوم | چه یقین لري | اې | مؤمنانو !

د پاره د الله تعالیٰ نه بهتره فیصله د بل چا کیدے شي ؟ اې مؤمنانو !

لَا تَتَّخِذُوا الْيَهُوْدَ وَالنَّصٰرٰٓى اَوْلِيَآءَ ۘ بَعْضُهُمْ اَوْلِيَآءُ بَعْضٍ ۘ

مه جوړوئ تاسو | یهود | او نصاریٰ | دوستان | ځنې د دوي دوستان د ځنو دي

یهودیانو او نصاراؤ سره دوستي مه کوئ ، دوي په خپلو کښې د یو بل دوستان دي

وَمَنْ يَّتَوَلَّهُمْ مِّنْكُمْ فَاِنَّهٗ مِنْهُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ

او څوک چه | دوستان ونیسی دوی | له تاسو نه | نو بیشکه هغه | له دوی نه دے | بیشکه اللہ

او څه په تاسو کښے څوک دوی سره دوستی ساتی نو دَ هغوی په تولی کښے به شمیرلے شی، اللہ تعالیٰ

لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ۞٥١ فَتَرَى الَّذِيْنَ فِىْ قُلُوْبِهِمْ

هدایت نهٔ کوی | قوم | دَ ظالمانو نه | پس ته به وګورے | هغه خلق | چه په زړونو دَ هغوی کښے

ظالمهان خلق دَ هدایت نه محروم ساتی - نو (اے پیغمبره!) دَ کومو خلقو په زړونو کښے چه (دَ نفاق)

مَّرَضٌ يُّسَارِعُوْنَ فِيْهِمْ يَقُوْلُوْنَ نَخْشٰٓى اَنْ تُصِيْبَنَا دَآئِرَةٌ ؕ

بیماری (ده) | چه هغوی منډے وهی | دَ هغوی طرف ته | هغوی وائی | مونږ ویریږو | چه وبه رسیږی مونږ ته | څه مصیبت

بیماری ده هغوی په منډه منډه په دے خلقو کښے ورننوځی، وائی چه مونږ ویریږو چه دَ مصیبت په چکر کښے رانهٔ شو،

فَعَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّاْتِىَ بِالْفَتْحِ اَوْ اَمْرٍ مِّنْ عِنْدِهٖ

پس نزدے ده | چه اللہ به | راولی | فتح | یا (څهٔ بل) حکم | دَ خپل طرف نه

زړه ده چه اللہ تعالیٰ به تاسو له لویه فتح درکړی یا به دَ خپل طرف نه څهٔ بله فیصله وُفرمائی

فَيُصْبِحُوْا عَلٰى مَآ اَسَرُّوْا فِىْٓ اَنْفُسِهِمْ نٰدِمِيْنَ ۞٥٢ وَيَقُوْلُ الَّذِيْنَ

پس شی به دوی | په هغهٔ | چه پټ ساتی دوی | په خپلو زړونو کښے | شرمنده - | او وائی به | هغه خلق چه

بیا به دا (منافق) خلق په هغو خبرو باندِ شرمنده شی کومے چه هغوی په خپلو زړونو کښے پټے ساتلی دی. او دَ ایمان خاوندان به

اٰمَنُوْٓا اَهٰٓؤُلَآءِ الَّذِيْنَ اَقْسَمُوْا بِاللّٰهِ جَهْدَ اَيْمَانِهِمْ ۙ

مؤمنان دی | آیا دا هغه خلق دی چه | قسمونه یے خوړل | په اللہ | ډیر په تاکید سره

وائی چه آیا دا هغه خلق دی کومو چه دَ اللہ تعالیٰ سخت قسمونه خوړلی دو.

اِنَّهُمْ لَمَعَكُمْ ؕ حَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ فَاَصْبَحُوْا خٰسِرِيْنَ ۞٥٣

چه بیشکه دوی | خامخا تاسو سره دی | برباد شول | عملونه دَ دوی | بیا شول دوی | نقصان مونده وکی

چه مونږ ستاسو یا څهٔ ملګری یُو - دَ دے خلقو ټول عملونه ضائع شول او آخر دوی ناکامه او نامراده شول.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَنْ يَّرْتَدَّ مِنْكُمْ عَنْ دِيْنِهٖ

اے دَ ایمان خاوندانو! | څوک چه | واوړی | له تاسو نه | دَ خپل دین نه

اے مسلمانانو! په تاسو کښے چه څوک دَ خپل دین نه واوړی، نو

فَسَوْفَ يَاْتِى اللّٰهُ بِقَوْمٍ يُّحِبُّهُمْ وَيُحِبُّوْنَهٗٓ ۙ

پس زر ده | چه رابه ولی | اللہ | (یوه بله) ډله | چه خوښوی به هغه دوی | او دوی به خوښوی هغه

اللہ تعالیٰ به نوره داسے ډیر خلق راپیدا کړی چه هغوی به دَ اللہ خوښ وی او اللہ به دَ هغوی خوښ وی

اَذِلَّةٍ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ اَعِزَّةٍ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ؗ يُجَاهِدُوْنَ

نرم به وی | مؤمنانو دَ پاره | سخت به وی | کافرانو دَ پاره | جهاد به کوی

کوم چه به دَ مسلمانانو دَ پاره نرم وی او کافرانو دَ پاره به سخت وی ، هغوی به دَ اللہ تعالیٰ

الثلثة

فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَلَا يَخَافُوْنَ لَوْمَةَ لَآئِمٍ ۭ ذٰلِكَ فَضْلُ اللّٰهِ

دَ الله په لاره کښې | اونهٔ به ویریږي | له ملامتیا | دَ ملامت کوونکو نه | دا | فضل دَ الله دے

دَ الله په لاره کښې جهاد کوي او دَ ملامتیا کوونکو دَ ملامتے پروا به نهٔ کوي ، دا دَ الله تعالیٰ فضل دے

يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَاۗءُ ۭ وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ ٥٤ اِنَّمَا وَلِيُّكُمُ اللّٰهُ

هغه ورکوي | چاته چه وغواړي | او الله | خاوند دَ فراخئ | او پوهه دے | بیشکه | ستاسو دوست (خو) | الله

چه چاله ئې خوښه وي هغه له ئې ورکوي ، او الله خاوند دَ فراخئ او په هر څه پوهه دے. ستاسو ملګري خو په حقیقت کښې

وَرَسُوْلُهٗ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوا الَّذِيْنَ يُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَيُؤْتُوْنَ

او دَ هغهٔ رسول | او هغه مؤمنان دي | کوم چه | قائموي | مونځ | او ورکوي

الله او دَ هغهٔ رسول او هغه مؤمنان دي کوم چه مونځونه په پابندئ سره کوي او زکوٰة

الزَّكٰوةَ وَهُمْ رٰكِعُوْنَ ٥٥ وَمَنْ يَّتَوَلَّ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ

زکوٰة | او دوي | ټیټ شوي دي (الله ته) | او څوک چه | دوستي کوي | الله سره | او دَ هغهٔ رسول سره

ورکوي او الله تعالیٰ ته سرونه ټیټوي ، او څوک چه دَ الله تعالیٰ او دَ هغهٔ دَ رسول سره

ع ٨ ١٢ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا فَاِنَّ حِزْبَ اللّٰهِ هُمُ الْغٰلِبُوْنَ ٥٦ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

او دَ مؤمنانو سره | نو بیشکه | ډله دَ الله | هم دوي دي غالب | اے ایمان والوٴ

او مؤمنانو سره ملګري شي ، نو دَ الله تعالیٰ ټولے همیشه غالب وي . اے مسلمانانو!

لَا تَتَّخِذُوا الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا دِيْنَكُمْ هُزُوًا وَّلَعِبًا

مهٔ جوړوئ (دوست) | هغه خلق چه نیولے دے دوي | ستاسو دین | ټوقے | او لوبے

هغو خلقو سره دوستي مهٔ ساتئ چه ستاسو په دین پورے ټوقے او مسخرے کوي،

مِّنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ وَالْكُفَّارَ اَوْلِيَاۗءَ ۚ

له هغو خلقو نه | کوم ته چه ورکړے شوے دو | کتاب | له تاسو نه وړاندې | او (نه) کفار | خپل دوستان

که تاسو نه وړاندې اهل کتاب دي او کهٔ کافران دي.

وَاتَّقُوا اللّٰهَ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ٥٧ وَاِذَا نَادَيْتُمْ

او ویریږئ | دَ الله نه | کهٔ چرے یئ تاسو | دَ ایمان خاوندان | او هر کله چه | تاسو رابلئ

او دَ الله تعالیٰ نه ویره کوئ که په رښتیا مومنان یئ . او هر کله چه تاسو مونځ دَ

اِلَى الصَّلٰوةِ اتَّخَذُوْهَا هُزُوًا وَّلَعِبًا ۭ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ

مونځ طرف ته | نو دوي نیسي هغه | ټوقے | او لوبے | دا | په دے وجه چه دوي

پاره رابلئ نو دا خلق دا ټوقے او لوبے ګڼړي ، دَ دے وجه دا ده چه دا خلق

قَوْمٌ لَّا يَعْقِلُوْنَ ٥٨ قُلْ يٰۤاَهْلَ الْكِتٰبِ هَلْ تَنْقِمُوْنَ

داسے خلق دي | چه نهٔ پوهیږي | ووایه | اے اهل کتابو! | آیا | تاسو انتقام اخلئ

عقل نه لري ، دوي ته ووایه چه اے اهل کتابو! تاسو موږ کښې نور څهٔ عیب ګورئ

مِنَّآ اِلَّآ اَنْ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْنَا وَمَآ اُنْزِلَ

مونږ نه | مګر دا چه | مونږ ایمان راوړو | په الله | او په هغه څه | چه نازل شول | په مونږ | او په هغه څه | چه نازل شول

سوا دَ دے نه چه مونږ په الله تعالیٰ ایمان راوړے دے او په هغه کتاب چه مونږ ته راغلے دے او په هغه کتابونو چه وړاندې

مِنْ قَبْلُ ۙ وَاَنَّ اَكْثَرَكُمْ فٰسِقُوْنَ ﴿٥٩﴾ قُلْ هَلْ

وړاندې له دے نه | او دا چه | اکثر له تاسو نه | نافرمانه دی | ووایه | آیا

راغلی وو او (اصل وجه دا ده) چه په تاسو کښے اکثر نافرمانه دی ۔ (اے پیغمبره!) ووایه چه آیا زهٔ

اُنَبِّئُكُمْ بِشَرٍّ مِّنْ ذٰلِكَ مَثُوْبَةً عِنْدَ اللّٰهِ ۭ مَنْ

زهٔ اُوښایم تاسو ته | ډیر بد ځیز | له دے نه هم | دَ بدلے په لحاظ سره | په نزد دَ الله | هغه څوک چه

تاسو ته دَ هغو خلقو حال ووایم دَ کوموا نجام چه دَ الله تعالیٰ سره ډیر خراب دے ۔ دا هغه خلق دی

لَّعَنَهُ اللّٰهُ وَغَضِبَ عَلَيْهِ وَجَعَلَ مِنْهُمُ الْقِرَدَةَ

لعنت وکړو په هغهٔ | الله | او غضب ئے وکړو | په هغهٔ بانډې | او هغهٔ جوړ کړل | له هغوی نه | بیزوګان

په کوموچه الله لعنت کړے دے او غضب ئے پرے کړے دے ، او په دوی کښے ئے ځنے بیزوګان او خنزیران

وَالْخَنَازِيْرَ وَعَبَدَ الطَّاغُوْتَ ۭ اُولٰۗىِٕكَ شَرٌّ مَّكَانًا وَّاَضَلُّ

او خنزیران | او (چا چه) بندګی وکړه | دَ شیطان | هم دا دی | په ډیره بده درجه کښے | او ډیر ګمراه دی

جوړ کړل او چه دَ شیطان عبادت کوی ، دَ دا سے خلقو ځائے ډیر ناکاره دے او دَ سمے لارے نه

عَنْ سَوَاۗءِ السَّبِيْلِ ﴿٦٠﴾ وَاِذَا جَاۗءُوْكُمْ قَالُوْٓا اٰمَنَّا

له | سمے | لارے | نه | او هر کله چه | دوی راشی تاسو ته | نو وائی | مونږ ایمان راوړو

ډیر بیرته غورزیدلی دی ، او هر کله چه تاسو له داخلق راشی نو وائی چه مونږ ایمان راوړے دے

وَقَدْ دَّخَلُوْا بِالْكُفْرِ وَهُمْ قَدْ خَرَجُوْا بِهٖ ۭ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ

حال دا دے چه دوی داخل شوی وو | دَ کفر سره | او دوی وتل دَ کفر سره | او الله | ښهٔ پوهه دے

حال دا دے چه په کفر کښے راغلی وو او په کفر کښے پسِتنه لاړل ، او کوم ځیز چه دوی

بِمَا كَانُوْا يَكْتُمُوْنَ ﴿٦١﴾ وَتَرٰى كَثِيْرًا مِّنْهُمْ يُسَارِعُوْنَ

په هغه څهٔ | چه دوی به پټول | او ته به ووینے | ډیر | له دوی نه | چه دوی تیزی بناوی

پټوی هغه الله تعالیٰ ته ډیر ښهٔ معلوم دے ۔ او تهٔ به په دوی کښے ډیر ووینے چه هغوی په ګناه

فِي الْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ وَاَكْلِهِمُ السُّحْتَ ۭ لَبِئْسَ مَا

په ګناه کښے | او په ظلم کولو (کښے) | او په حرامو | خوړلو (کښے) | ډیر خراب دے | کوم چه

سرکشئ او حرام مال خوړلو کښے ډیره تیزی کوی یقیناً دَ هغوی دا عملونه ډیر خراب

كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿٦٢﴾ لَوْلَا يَنْهٰىهُمُ الرَّبّٰنِيُّوْنَ وَالْاَحْبَارُ عَنْ قَوْلِهِمُ الْاِثْمَ

دوی کوی ۔ | ولے نهٔ منع کوی دوی | دَ دوی درویشان | او عالمان خلق | دَ دوی دَ ګناه دَ خبرو

دی ۔ دَ دوی بزرګان او عالمان دوی دَ ګناه دَ خبرو کولو نه او حرام مال خوړلو نه

وَ اَكْلِهِمُ السُّحْتَ ۭ لَبِئْسَ مَا كَانُوْا يَصْنَعُوْنَ ۝٦٣ وَقَالَتِ
او دَ حرامو خوړلو نه | ډیر خراب دی | څه چه | دوی کوی . | او وائی
او دَ حرامو خوړلو نه ډیر خراب دی دا کارونه چه دوی کوی ؟ واقعی چه دَ دوی دا کارونه ډیر خراب دی . او یهودیان وائی چه

وقف لازم
الْيَهُوْدُ يَدُ اللّٰهِ مَغْلُوْلَةٌ ۭ غُلَّتْ اَيْدِيْهِمْ وَلُعِنُوْا بِمَا قَالُوْا ۘ
یهود | (چه) دَ الله لاس | تړلے شوے دے | دَ دوی تړلے شی | لاسونه دَ دوی | او لعنت وشو په دوی باندې | په وجه دَ دوی دَ خبرے
دَ الله لاسونه تړلی دی (یعنی الله بخیل دے) تړلی خو دَ دوی لاسونه دی او په دے خبره کولو په دوی لعنت وشو

بَلْ يَدٰهُ مَبْسُوْطَتٰنِ ۙ يُنْفِقُ كَيْفَ يَشَاۗءُ ۭ وَلَيَزِيْدَنَّ كَثِيْرًا
بلکه | دواړه لاسونه دَ دهٔ | پرانستی دی | هغه خرڅ کوی | څنګه چه | غواړی | او خامخا زیاتوی | ډیرو له
بلکه دَ الله تعالیٰ لاسونه خو پرانستی دی چه څنګه غواړی هغسے خرڅ کوی او حقیقت دا دے چه تا ته

مِّنْهُمْ مَّآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ طُغْيَانًا وَّكُفْرًا ۭ
له دوی نه | څهٔ چه | نازل شوی دی | تا ته | له طرفه دَ رب ستا | په نافرمانئ | او کفر کښے
دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه کوم (کتاب) راغلے دے هغه په دوی کښے دَ ډیرو خلقو دَ پاره دَ سرکشئ او کفر سبب ګرځیدلے دے

وَاَلْقَيْنَا بَيْنَهُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَاۗءَ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ ۭ
او واچوله مونږ | دَ دوی په مینځ کښے | دُښمنی | او کینه | تر ورځے دَ قیامت پورے
او (دَ دے په سزا کښے) مونږ دَ دوی تر مینځه تر قیامته پورے دښمنی او بغض واچولو

كُلَّمَآ اَوْقَدُوْا نَارًا لِّلْحَرْبِ اَطْفَاَهَا اللّٰهُ ۙ وَيَسْعَوْنَ
هر کله چه | دوی بل کړی | اور | دَ جنګ دَ پاره | نو مړ کړی هغه | الله | او دوی کوشش کوی
هر کله چه دوی دَ جنګ اور بلوی ، الله تعالیٰ هغه مړ کړی ، او دوی دَ زمکے

فِي الْاَرْضِ فَسَادًا ۭ وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ الْمُفْسِدِيْنَ ۝٦٤
په زمکه کښے | دَ فساد | او الله | نهٔ خوښوی | فساد کوونکی
په مخ فساد جوړول غواړی او فسادیان دَ الله تعالیٰ خوښ نهٔ وی ،

وَلَوْ اَنَّ اَهْلَ الْكِتٰبِ اٰمَنُوْا وَاتَّقَوْا لَكَفَّرْنَا عَنْهُمْ
او که چرے هغه | اهلِ کتاب | ایمان راوړے وے | او پرهیزګاری ئے کولے | نو مونږ به ضرور لرے کړی وو | دَ دوی نه
او که دِ دے اهلِ کتابو ایمان راوړے وے او دَ الله تعالیٰ نه ویریدلے نو مونږ به یقیناً دَ دوی

سَيِّاٰتِهِمْ وَلَاَدْخَلْنٰهُمْ جَنّٰتِ النَّعِيْمِ ۝٦٥ وَلَوْ اَنَّهُمْ
دَ دوی ګناهونه | او خامخا به مونږ داخل کړی وو دوی | په باغونو | دَ نعمت کښے | او که چرے دوی
ګناهونه معاف کړی وو او دوی به مو دَ نعمتونو په باغونو کښے داخل کړی وو او که دوی به تورات

اَقَامُوا التَّوْرٰىةَ وَالْاِنْجِيْلَ وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْهِمْ مِّنْ رَّبِّهِمْ
قائم ساتلے | تورات | او انجیل | او څهٔ چه | نازل شول | دوی ته | دَ دوی دَ رب له طرفه
او په انجیل او په هغه کتاب چه دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه ورته راغلے دے قائم ولاړ وے

لَاَكَلُوْا مِنْ فَوْقِهِمْ وَمِنْ تَحْتِ اَرْجُلِهِمْ ؕ مِنْهُمْ

نو دوی به خوړل | له پاسه خپل نه | او دَ لاندې | دَ پښو خپکو نه | ځنې له دوی نه

نو البته دوی به دَ پاسه (آسمان) طرف نه هم رزق حاصلولو او دَ خپلو پښو لاندې (زمکې) نه هم (به دوی ته رزق ملاویدلو) په دوی

ع ۱۰ / ۹ / ۱۳ اُمَّةٌ مُّقْتَصِدَةٌ ؕ وَكَثِيْرٌ مِّنْهُمْ سَآءَ مَا يَعْمَلُوْنَ ﴿٦٦﴾

یوه ډله ده | میانه رو | او ډیر | له دوی نه | بد | کارونه کوی -

کښې یو ټولے په سمه لار روان هم دے، خو اکثر کسان په کښې ډیر بد عمله دی

يٰۤاَيُّهَا الرَّسُوْلُ بَلِّغْ مَآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ ؕ

اے پیغمبره ! | وُرسوه | هغه څه چه | نازل شوی دی | تا ته | ستا دَرب له طرف نه

اے پیغمبره ! په تا چه دَ خپل خدائے دَ طرف نه کوم (حکمونه) را نازل شوی دی هغه خلقو ته وُرسوه ،

وَاِنْ لَّمْ تَفْعَلْ فَمَا بَلَّغْتَ رِسٰلَتَهٗ ؕ وَاللّٰهُ يَعْصِمُكَ

او که چرے | تا داسے ونه کړل | پس نه به وی رسولے تا | دَ هغه پیغام | او الله | به ساتی تا

او که دا کار دِ ونه کړو نو (کویا) تا دَ الله تعالیٰ پیغام وُنه رسولو او الله تعالیٰ به تا دَ خلقو (دَ شر)

مِنَ النَّاسِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الْكٰفِرِيْنَ ﴿٦٧﴾ قُلْ

دَ خلقو نه | بیشکه | الله | لار نه ښائی | قوم | دَ کافرانو ته | وُوایه

نه بچ ساتی ، بیشکه الله تعالیٰ کافرانو ته سمه لار نه ښائی ، ورته ووایه

يٰۤاَهْلَ الْكِتٰبِ لَسْتُمْ عَلٰى شَىْءٍ حَتّٰى تُقِيْمُوا التَّوْرٰىةَ

اے اهل کتابو ! | نه یئی تاسو | (دَ دین) په څه څیز باندې | تر دے چه | تاسو قائم کړئی | تورات

اے اهل کتابو ! ستاسو هیڅ دین نشته ترڅو چه تاسو تورات ، انجیل او هغه (کتابونه)

وَالْاِنْجِيْلَ وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْكُمْ مِّنْ رَّبِّكُمْ ؕ وَلَيَزِيْدَنَّ كَثِيْرًا

او انجیل | او څه چه | نازل شوی دی | تاسو ته | ستاسو دَ رب دَ طرف نه | او خامخا زیاتوی | ډیرو ته

نافذ نه کړئی ، چه په تاسو باندې ستاسو دَ رب دَ طرف نه نازل شول - او کوم فرمان چه تا ته راغلے

مِّنْهُمْ مَّآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ طُغْيَانًا وَّكُفْرًا ۚ فَلَا تَاْسَ

له دوی نه | څه چه نازل شول | ستا طرف ته | ستا دَ رب له طرف نه | نافرمانی | او کفر | پس افسوس مه کوه

هغه به دَ دوی دَ ډیرو کسانو په حقله دَ زیاتے سرکشئ او دَ غټ کفر سبب وُګرځی ، نو ته دَ دے کافر

عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ ﴿٦٨﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَالَّذِيْنَ هَادُوْا وَالصّٰبِئُوْنَ

په قوم | دَ کافرانو | بیشکه کوم چه مسلمانان دی | او کوم چه یهودیان دی | او صابئین

ټولی په حقله هیڅ غم مه کوه - بیشکه څوک چه مؤمنان دی یا یهودیان یا صابیان

وَالنَّصٰرٰى مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَعَمِلَ

او نصاریٰ | څوک چه | ایمان راوړی | په الله | او په ورځ | دَ آخرت | او عمل ئے وُکړو

یا نصاریٰ دی ، په دوی کښې څوک چه په الله تعالیٰ او په آخرت ایمان راوړی او نیک

صَالِحًا فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿٦٩﴾ لَقَدْ أَخَذْنَا

نیک | پس نشته ډیره | په دوی بانډې | او نه به دوی | غمژن وی | بیشکه | مونږ اخستې وه

کارونه کوی ، نو د هغوی د پاره نه څه ویره شته او نه څه غم ، مونږ د بنی اسرائیلو نه

مِيثَاقَ بَنِي إِسْرَآءِيلَ وَأَرْسَلْنَآ إِلَيْهِمْ رُسُلًا ۖ كُلَّمَا جَآءَهُمْ

پخه وعده | له بنی اسرائیلو | او مونږ ولیږل | هغوی ته | رسولان | کله چه به | راغی دوی ته

پخه وعده اخستې وه ، او ډیر پیغمبران مو ورته لیږلی وو ، خو هر کله چه یو پیغمبر

رَسُولٌۢ بِمَا لَا تَهْوَىٰٓ أَنفُسُهُمْ فَرِيقًا كَذَّبُوا وَفَرِيقًا

پیغمبر | په هغه څه سره | چه نه به خوښولو | نفسونو د دوی | نو یوه ډله | دوی دروغژن کړله | او یوه ډله

به دوی ته داسې خدائی حکمونه راوړل چه د دوی د خواهشاتو برخلاف به وو نو څوک به ئې دروغژن وګڼل او څوک به

يَقْتُلُونَ ﴿٧٠﴾ وَحَسِبُوٓا أَلَّا تَكُونَ فِتْنَةٌ فَعَمُوا وَصَمُّوا

ئې وژله | او دوی خیال وکړو | چه نه به وی | څه خرابی | بیا ړانده | او کانړه شول

ئې ووژل او دوی داګمان وکړو چه هیڅ سزا به نه راکیږی نو ځانونه ئې نور هم ړانده کانړه کړل

ثُمَّ تَابَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ ثُمَّ عَمُوا وَصَمُّوا كَثِيرٌ مِّنْهُمْ

بیا توبه قبوله کړه | الله | د هغوی | بیا ړانده شول | او کانړه شول | ډیر | له دوی نه

بیا الله تعالیٰ د دوی توبه قبوله کړه ، بیا (دوباره) له دوی نه ډیر (د حق خبرې نه) ړانده او کانړه شول

وَاللَّهُ بَصِيرٌۢ بِمَا يَعْمَلُونَ ﴿٧١﴾ لَقَدْ كَفَرَ الَّذِينَ قَالُوٓا

او الله | ښه کوری | هغه څه ته چه دوی ئې کوی | بیشکه | کافر شول | هغه خلق چه | وائی

او الله تعالیٰ د دوی کارونه وینی ګوری . هغو خلقو یقینًا کفر وکړو کومو چه ووئیل

إِنَّ اللَّهَ هُوَ الْمَسِيحُ ابْنُ مَرْيَمَ ۖ وَقَالَ الْمَسِيحُ

بیشکه الله (خو) | عیسیٰ | ځوئې | د مریم دې | او ووئیلی وو | عیسیٰ

چه خدائے خو بس هم دغه د مریم ځوئے مسیح دې . حال دا چه مسیح خو تعلیم ورکړے

يَٰبَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ اعْبُدُوا اللَّهَ رَبِّي وَرَبَّكُمْ ۖ إِنَّهُ مَن

اے بنی اسرائیلو ! | عبادت وکړئ تاسو الله | چه زما رب | او ستاسو رب دې | بیشکه | څوک چه

وو چه اے بنی اسرائیلو ! یوازې د الله تعالیٰ عبادت کوئ چه زما او ستاسو د ټولو پالونکې دې ، یقینًا څوک چه

يُشْرِكْ بِاللَّهِ فَقَدْ حَرَّمَ اللَّهُ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ وَمَأْوَىٰهُ

شریک نیسی | الله سره | پس بیشکه حرام کړې دې | الله | په هغه بانډې | جنت | او ځائې د هغه

الله تعالیٰ سره شریک پیدا کړی نو الله تعالیٰ به په هغه جنت حرام کړی او د هغه ټیکاونړه (د

النَّارُ ۖ وَمَا لِلظَّٰلِمِينَ مِنْ أَنصَارٍ ﴿٧٢﴾ لَقَدْ كَفَرَ الَّذِينَ قَالُوٓا

دوزخ دې | او نشته دې | د ظالمانو | څوک مددګار | بیشکه کافران شول | هغه خلق چه | وائی

دوزخ) اور دې ، او د ظالمانو به څوک مددګار نه وی . یقینًا هغه خلق کافران شول کومو چه ووئیل

لَقَدْ ... إِنَّ اللّٰهَ ثَالِثُ ثَلٰثَةٍ ۘ وَمَا مِنْ إِلٰهٍ إِلَّآ إِلٰهٌ وَّاحِدٌ ۚ

چه بېشکه الله | دریم | دَ دریو دے | او نشته دے هیڅوک | معبود | سوا | دَ یو معبود نه

چه خدائے په دریو کښې یو دے ، حال دا دے چه دَ یو معبود نه سوا بل هیڅوک معبود نشته ،

وَإِنْ لَّمْ يَنْتَهُوْا عَمَّا يَقُوْلُوْنَ لَيَمَسَّنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

او که چرے | منع نهٔ شول دوی | له هغه څه نه | چه وائی ئے دوی | نو ضرور به ورسیږی | هغو ته کوم چه | کافران دی

او که (کلمے دَ شرک) چه دوی وائی که چرے دے ته منع نهٔ شول نو له دوی نه چه کوم خلق کافران شول

مِنْهُمْ عَذَابٌ أَلِيْمٌ ﴿٧٣﴾ أَفَلَا يَتُوْبُوْنَ إِلَى اللّٰهِ وَيَسْتَغْفِرُوْنَهٗ ۗ

له دوی نه | عذاب | دردناک | پس آیا دوی توبه نهٔ کوی | الله ته | او له هغهٔ نه بخښنه (نهٔ) غواړی؟

نو هغوی ته به یقیناً دردناک عذاب ملاویږی . نو آیا دوی الله تعالیٰ طرف ته رجوع نهٔ کوی او له هغهٔ نه بخښنه نهٔ غواړی؟

وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿٧٤﴾ مَا الْمَسِيْحُ ابْنُ مَرْيَمَ إِلَّا رَسُوْلٌ ۚ

او الله | بخښونکے | مهربان دے | نهٔ دے عیسیٰ | ځوئے د مریم | مګر پیغمبر دے

او الله تعالیٰ بخښونکے مهربان دے . دَ مریم ځوئے مسیح فقط دَ الله تعالیٰ یو رسول دے .

قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ ۗ وَأُمُّهٗ صِدِّيْقَةٌ ۖ كَانَا يَأْكُلَانِ

تیر شوی دی | وړاندې له دهٔ نه | پیغمبران | او دَ دهٔ مور | (دَ حق) تصدیق کوونکې وه | هغوی دواړه به خوړلو

له دهٔ نه وړاندې ډیر پیغمبران تیر شوی دی ، او دَ دهٔ مور ډیره رښتینې ښځه وه ، او دواړه به (دَ عامو انسانانو

الطَّعَامَ ۗ اُنْظُرْ كَيْفَ نُبَيِّنُ لَهُمُ الْاٰيٰتِ ثُمَّ انْظُرْ

طعام | وګوره | چه څنګه | مونږ بیانوو | دَ دوی دَ پاره | نخښې | بیا | وګوره

په شان) ډوډۍ خوړه ، وګوره چه مونږ دوی ته څنګه ښکاره نخښې بیانوو ، خو بیا وګوره چه دوی

أَنّٰى يُؤْفَكُوْنَ ﴿٧٥﴾ قُلْ أَتَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا

چه کوم خوا | دوی اړولی روان دی | دوایه | آیا تاسو عبادت کوی | په ځائے دَ الله | دَ هغه څهٔ

کوم اړخ ته اړولی روان دی ، (اے پیغمبره ! دوی ته) دوایه چه آیا تاسو خدائے پریږدئ او دَ هغه چا عبادت کوئ

لَا يَمْلِكُ لَكُمْ ضَرًّا وَّلَا نَفْعًا ۗ وَاللّٰهُ هُوَ السَّمِيْعُ

چه ورته اختیار نشته | ستاسو | دَ نقصان | او نهٔ نفع | او الله | اُوریدونکے

چه نهٔ نقصان ورکولے شی او نه نفع ، او الله تعالیٰ هر څهٔ اوری ، په هر څهٔ

الْعَلِيْمُ ﴿٧٦﴾ قُلْ يٰٓأَهْلَ الْكِتٰبِ لَا تَغْلُوْا فِيْ دِيْنِكُمْ غَيْرَ الْحَقِّ

پوهه دے | دوایه | اے اهل کتابو! | مبالغه مهٔ کوئ | په خپل دین کښې | په ناحقه

پوهه دے . ورته دوایه چه اے اهل کتابو ! تاسو دَ دین په مسئلو کښې ناحق زیاتے مهٔ کوئ ،

وَلَا تَتَّبِعُوْٓا أَهْوَآءَ قَوْمٍ قَدْ ضَلُّوْا مِنْ قَبْلُ وَأَضَلُّوْا

او پیروی مهٔ کوئ | دَ خواهشاتو دَ هغه قوم | چه ګمراه شول | له دے نه وړاندې | او هغوی ګمراه کړل

او نهٔ دَ داسے خلقو په (نفسانی) خواهشاتو پسے ځئ چه دَ وړاندې نه ګمراه شوی دی او نورو ډیر خلق ئے ګمراه

ع ١١ ١٤

كَثِيرًا وَّضَلُّوا عَن سَوَآءِ السَّبِيلِ ﴿٧٧﴾ لُعِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا

ډیرخلق | او ګمراه شول | له سمې لارې نه | لعنت کړے شوے دے | په هغو خلقو | چه کافران ې

کړی دی او د سمې لارې نه ورک شوی دی ، په بنی اسرائیلو کښې څوک چه کافران شوی وو

مِن بَنِي إِسْرَآءِيلَ عَلَىٰ لِسَانِ دَاوُدَ وَعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ

له بنی اسرائیلو نه | په ژبه د | داؤد ؑ | او د عیسیٰ ؑ | څوئے د مریمٖ

په هغوی باندې د داؤد او د عیسیٰ بن مریم (علیهما السلام) په ژبه لعنت وئیلے شوے دے

ذَٰلِكَ بِمَا عَصَوا وَّكَانُوا يَعْتَدُونَ ﴿٧٨﴾ كَانُوا لَا يَتَنَاهَوْنَ عَن مُّنكَرٍ

دا | په دے وجه چه نافرمانه شول | او له حد نه تیر شول | دوی نه منع کیدل | د هغه خراب کار نه

ځکه چه دوی نافرمانه ؤ او د حد نه وړاندې تیریدل . دوی چه کوم بد کارونه کول د هغې نه (په یو

فَعَلُوهُ ۚ لَبِئْسَ مَا كَانُوا يَفْعَلُونَ ﴿٧٩﴾ تَرَىٰ كَثِيرًا مِّنْهُمْ

کوم چه دوی کولو | ډیر خراب وو کوم عمل چه | دوی کولو | ته به د کورے | ډیر | له دوی نه

وجه) نه منع کیدل ، واقعی د دوی دا کار ډیر بد وو ، (اوس هم) ته په دوی کښې ډیر کسان وینے چه

يَتَوَلَّوْنَ الَّذِينَ كَفَرُوا ۚ لَبِئْسَ مَا قَدَّمَتْ لَهُمْ أَنفُسُهُمْ أَن

چه دوستی کوی | د هغو سره | چه کافران دی | یقیناً ډیر خراب دے | چه وړاندې ولیږلو ځان د پاره | دوی (نفسونو) | چه

د (مشرکانو) کافرانو سره ملګرتیا کوی . دوی چه کوم عمل د ځان د پاره وړاندې لیږلے دے هغه ډیر خراب دے

سَخِطَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ وَفِي الْعَذَابِ هُمْ خَالِدُونَ ﴿٨٠﴾ وَلَوْ كَانُوا يُؤْمِنُونَ

ناراضه شو | الله | په دوی باندې | او په عذاب کښې | دوی به همیشه وی | او که چرے ایمان راوړے وے دوی

او الله ورته قهریدلے دے ، او تل به په عذاب کښې پراته وی . او که دوی الله او رسول او په

بِاللَّهِ وَالنَّبِيِّ وَمَا أُنزِلَ إِلَيْهِ مَا اتَّخَذُوهُمْ أَوْلِيَآءَ وَلَٰكِنَّ كَثِيرًا مِّنْهُمْ

په الله باندې | او نبی باندې | او په هغه څه چه نازل شوی دی ده ته | نو نه به ئے نیولی وو کافران دوستان | لیکن اکثر خلق | له دوی نه

هغه باندې راغلے کتاب منلے نو کافرانو سره به ئے ملګرتیا نه کوله . خو په دوی کښې ډیر خلق نافرمان

فَاسِقُونَ ﴿٨١﴾ لَتَجِدَنَّ أَشَدَّ النَّاسِ عَدَاوَةً لِّلَّذِينَ آمَنُوا الْيَهُودَ

فاسقان دی | خامخا به بیا مومے ته | ډیر سخت | له خلقو نه | په عداوت | د مومنانو کښې | یهودیان

دی ، ته به د مسلمانانو سره په دښمنئ کولو کښې د ټولو نه سخت یهودیان او مشرکان

وَالَّذِينَ أَشْرَكُوا ۖ وَلَتَجِدَنَّ أَقْرَبَهُم مَّوَدَّةً لِّلَّذِينَ آمَنُوا الَّذِينَ قَالُوا

او مشرکان | او خامخا به بیا مومے ته | د ټولو نه زیات نزدے | په محبت کښې | د مسلمانانو سره | هغه خلق چه | وائی

بیا مومے ، او د مسلمانانو سره په دوستئ ساتلو کښې به د ټولو نه نزدے هغه خلق بیا مومے چه ځان

إِنَّا نَصَارَىٰ ۚ ذَٰلِكَ بِأَنَّ مِنْهُمْ قِسِّيسِينَ وَرُهْبَانًا وَأَنَّهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ ﴿٨٢﴾

مونږ نصاریٰ یو | دا په دے وجه چه له دوی نه دی | عالمان | او درویشان | او دوی | غرور نه کوی .

ته نصاریٰ وائی ځکه چه په دوی کښې عالمان او ګوشه نشین درویشان (موجود) دی او ځکه چه دا خلق تکبر نه کوی .

وَاِذَا سَمِعُوْا مَآ اُنْزِلَ اِلَى الرَّسُوْلِ تَرٰٓى اَعْيُنَهُمْ

او هر كله چه واوريدل دوى | كوم (كلام) چه | نازل كړے شو | رسول طرف ته | نو ګورے ته | سترګے د دوى

او چه هغه كلام واوري چه پيغمبر ته راغلے دے ، نو ته ګورے چه د دوى

تَفِيْضُ مِنَ الدَّمْعِ مِمَّا عَرَفُوْا مِنَ الْحَقِّ ۚ يَقُوْلُوْنَ

چه توېږى | اوښكے | په سبب د هغه څه | چه پيژندلي دي دوى | له حق نه | دوى وائي

سترګے او ښكے څخوى ځكه چه دوى حق وپيژندلو ، دوى وائي

رَبَّنَآ اٰمَنَّا فَاكْتُبْنَا مَعَ الشّٰهِدِيْنَ ﴿٨٣﴾ وَمَا لَنَا

اے زمونږ ربه! | مونږ ايمان راوړو | پس وليكه مونږ | (د حق) شهادت وركوونكو سره | او څه (عذر دے) مونږ د پاره

اے زمونږ ربه! مونږ ايمان راوړے دے نو د ګواهانو (په فهرست) كښے زمونږ نوم وليكه او مونږ سره څه عذر

لَا نُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَمَا جَآءَنَا مِنَ الْحَقِّ ۙ وَنَطْمَعُ اَنْ يُّدْخِلَنَا

چه ايمان رانه وړو مونږ | په الله | او څه چه | راغلى دى مونږ ته | له حق نه | او مونږ اميد لرو | چه مونږ به داخل كړي

دے چه مونږ په الله تعالىٰ او په هغه حق چه مونږ ته راغلے دے ايمان نه راوړو، هر كله چه دا طمع لرو چه الله تعالىٰ

رَبُّنَا مَعَ الْقَوْمِ الصّٰلِحِيْنَ ﴿٨٤﴾ فَاَثَابَهُمُ اللّٰهُ بِمَا قَالُوْا جَنّٰتٍ

زمونږ رب | صالحانو خلقو سره | پس بدله وركړه دوى ته | الله | په دے وينا باندے | جنتونه

به مو د نيكانو په ټولى كښے شامل كړى . نو د دے وينا په وجه الله تعالىٰ به ورله داسے باغونه وركړى

تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۚ وَذٰلِكَ جَزَآءُ

چه بهيږى | د هغے لاندے | نهرونه | هميشه به وى دوى | په هغے كښے | او دا دے | بدله

چه د هغے لاندے ولے بهيږى، دوى به په دے كښے هميشه وى . او د نيكانو د پاره هم

الْمُحْسِنِيْنَ ﴿٨٥﴾ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَآ اُولٰٓئِكَ

د نيكانو | او كوم خلق چه | انكار وكړو | او دروغژن ئے كړل | زمونږ ايتونه | هم دوى دي

دغه بدله ده . او چا چه انكار وكړو او زمونږ ايتونه ئے دروغ وګڼړل نو هم دغه

ع اَصْحٰبُ الْجَحِيْمِ ﴿٨٦﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُحَرِّمُوْا طَيِّبٰتِ

دوزخيان | اے د ايمان خاوندانو! | مه حراموئ | (هغه) پاكيزه څيزونه

خلق دوزخيان دى . اے مسلمانانو! الله تعالىٰ چه تاسو له كوم پاكيزه

مَآ اَحَلَّ اللّٰهُ لَكُمْ وَلَا تَعْتَدُوْا ۚ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِيْنَ ﴿٨٧﴾

كوم چه | حلال كړى دى | الله تاسو د پاره | او له حد نه مه تيريږئ | بيشكه الله | نه خوښوى | له حد نه تيريدونكى

څيزونه حلال كړى دى هغه په ځان مه حراموئ او د اندازے نه زياتے مه كوئ، زياتے كوونكى خلق د الله تعالىٰ خوښ نه دى.

وَكُلُوْا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللّٰهُ حَلٰلًا طَيِّبًا ۖ وَّاتَّقُوا اللّٰهَ

او خورئ | له هغه څه نه | كوم رزق چه دركړے دے تاسو ته الله | حلال | پاكيزه | او ووېريږئ | له الله نه

او الله تعالىٰ چه تاسو له كوم حلال پاكيزه څيزونه دركړى دى هغه خورئ څښئ او د هغه خدائے نه ويره كوئ

الَّذِیْٓ اَنْتُمْ بِهٖ مُؤْمِنُوْنَ ﴿۸۸﴾ لَا یُؤَاخِذُكُمُ اللّٰهُ بِاللَّغْوِ فِیْٓ اَیْمَانِكُمْ
په کوم چه | تاسو | ایمان لرئ | نهٔ نیسی تاسو | الله | په عبثو | قسمونو ستاسو
چه تاسو پرے ایمان راوړے دے ۔ الله تعالیٰ تاسو په عبثو قسمونو باندے نهٔ نیسی
وَلٰكِنْ یُّؤَاخِذُكُمْ بِمَا عَقَّدْتُّمُ الْاَیْمَانَ ۚ فَكَفَّارَتُهٗٓ اِطْعَامُ
او لیکن | نیسی تاسو | په هغه | چه تاسو پوخې (اراده سره) قسمونه خوړي | پس دَ هغې کفاره دهٔ | طعام ورکول
مګر په هغه قسمونو به مو (خامخا) نیسی چه تاسو قصداً اخوړلی وی نو دَ داسے قسم (ماتولو) کفاره داده چه
عَشَرَةِ مَسٰكِیْنَ مِنْ اَوْسَطِ مَا تُطْعِمُوْنَ اَهْلِیْكُمْ اَوْ كِسْوَتُهُمْ
لسو | مسکینانو ته | دَ میانه درجے | کوم چه | تاسو خوروئ | خپل کور والو ته | یا دوی ته جامه ورکول
لسو مسکینانو له داسے ډوډئ ورکړئ کومه چه تاسو په خپل کور والا باندے خوروئ یا دوی ته جامے ورکوئ
اَوْ تَحْرِیْرُ رَقَبَةٍ ؕ فَمَنْ لَّمْ یَجِدْ فَصِیَامُ ثَلٰثَةِ اَیَّامٍ ؕ
یا آزادول | دَ یو غلام | پس څوک چه | بیا نهٔ مومی | نو دوړے ساتل دی | درے | ورځے
یا یو غلام آزاد کړئ ، نو څوک چه دَ دے طاقت نهٔ لری نو هغه دِ درے ورځے روژے ساتی ،
ذٰلِكَ كَفَّارَةُ اَیْمَانِكُمْ اِذَا حَلَفْتُمْ ؕ وَاحْفَظُوْٓا اَیْمَانَكُمْ ؕ
دا | کفاره ده | ستاسو دَ قسمونو | کله چه | تاسو قسم وُخورئ | او حفاظت وکړئ | دَ خپلو قسمونو
دا ستاسو دَ قسمونو کفاره ده کله چه قسم وُخورئ (او دا پوره نهٔ کړئ) او دَ خپلو قسمونو حفاظت کوئ
كَذٰلِكَ یُبَیِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اٰیٰتِهٖ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿۸۹﴾
دغه شان | بیانوی | الله | تاسو د پاره | خپل آیتونه | چه تاسو | شکر کوئ
دغه شان الله تعالیٰ تاسو ته خپل حکمونه بنائی چه تاسو شکر ادا کړئ ۔
یٰٓاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْٓا اِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَیْسِرُ وَالْاَنْصَابُ وَالْاَزْلَامُ
اے مؤمنانو ! | بیشکه | شراب | او جواری | او بُتان | او غشی دَ پال
اے مؤمنانو ! شراب څښل ، جواری کول ، دَ بُتانو عبادت کول او دَ ګټے بیلات غشی ویشتل
رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّیْطٰنِ فَاجْتَنِبُوْهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿۹۰﴾
پلیت دی | دَ شیطان له عمل نه دی | پس ځان وساتئ له دے نه | چه تاسو | کامیاب شئ ۔
ناپاک شیطانی کارونه دی ، نو دَ دے نه ځان بچ ساتئ چه تاسو نجات بیا مومئ ۔
اِنَّمَا یُرِیْدُ الشَّیْطٰنُ اَنْ یُّوْقِعَ بَیْنَكُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَآءَ
بیشکه | غواړی | شیطان | چه واچوی | ستاسو په مینځ کښے | دُښمنی | او بغض
شیطان خو غواړی چه ستاسو په مینځ کښے دَ شرابو او جوارئ په ذریعه دُښمنی
فِی الْخَمْرِ وَالْمَیْسِرِ وَیَصُدَّكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ وَعَنِ الصَّلٰوةِ ۚ
په ذریعه دَ شرابو | او جوارئ | او منع کړی تاسو | دَ الله دَ یادولو نه | او دَ مونځ نه
او بغض پیدا کړی او تاسو دَ الله تعالیٰ دَ ذکر نه او دَ مونځ نه منع کړی

فَهَلْ أَنْتُمْ مُنْتَهُونَ ﴿۹۱﴾ وَأَطِيعُوا اللّٰهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ

پس آیا | تاسو به | منع شئ | او حکم منئ | دَ الله | او حکم منئ | دَ رسول

نو آیا اوس به هم تاسو (دَ دې بدیو نه) منع شئ ؟ او دَ الله تعالیٰ حکم منئ ، او دَ رسول حکم منئ

وَاحْذَرُوا ۚ فَإِنْ تَوَلَّيْتُمْ فَاعْلَمُوا أَنَّمَا عَلَىٰ رَسُولِنَا الْبَلَاغُ

او وویریږئ | بیا که چرې | تاسو مخ واړولو | نو پوهه شئ | چه بېشکه | زمونږ په پیغمبر باندې | رسول دی

او احتیاط ساتئ ، په دې هم که چرې تاسو مخ واړولو نو پوهه شئ چه زمونږ دَ رسول کار خو واضحه حکمونه

الْمُبِينُ ﴿۹۲﴾ لَيْسَ عَلَى الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ

ښکاره | نشته دے | په هغو خلقو باندې (چه) | ایمان ئے راوړو | او عملونه ئے وکړل | نیک

رسول دی چاچه ایمان راوړے دے او هغوی نیک عملونه کړی دی په هغوی باندې دَ هغو څیزونو

جُنَاحٌ فِيمَا طَعِمُوا إِذَا مَا اتَّقَوْا وَآمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ

(څه) ګناه | په هغه څه کښې | چه وئے خوړل | هر کله چه پرهیزګاری ئے وکړه | او ایمان ئے راوړو | او عملونه ئے وکړل | نیک

په حقله هیڅ ګناه نشته کوم چه (دَ شراب وغیره دَ حرمت نه وړاندې) هغوی خوړلی څښلی دی او اوس ځان ساتی او په ایمان ټینګ

ثُمَّ اتَّقَوْا وَآمَنُوا ثُمَّ اتَّقَوْا وَأَحْسَنُوا ۗ وَاللّٰهُ يُحِبُّ

بیائے پرهیزګاری وکړه | او ایمان ئے راوړو | بیائے پرهیزګاری وکړه | او ښه کارونه ئے وکړل | او الله | خوښوی

وی او نیکی کوی، بیا هم پرهیزګار پاتے شی او په ایمان ثابت قدم وی بیا پرهیز وکړی او نیکئی کوی او داسے نیک خلق دَ الله

ع ۲ ۷ الْمُحْسِنِينَ ﴿۹۳﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَيَبْلُوَنَّكُمُ اللّٰهُ بِشَيْءٍ

نیکی کوونکی | اے دَ ایمان خاوندانو! | خامخا به وُازمائی تاسو | الله | په څه څیز

ډیر خوښ وی اے مسلمانانو ! الله تعالیٰ به تاسو دَ هغې لږ ډیر ښکار په وجه په ازمیښت

مِنَ الصَّيْدِ تَنَالُهُ أَيْدِيكُمْ وَرِمَاحُكُمْ لِيَعْلَمَ اللّٰهُ

له ښکار نه | کوم ته چه ورسیږی | ستاسو لاسونه | او ستاسو نیزے | چه ښکاره کړی | الله

کښے واچوی ، چه ستاسو لاسونه او نیزے به ور رسیږی چه الله تعالیٰ وګوری چه څوک دَ

مَنْ يَخَافُهُ بِالْغَيْبِ ۚ فَمَنِ اعْتَدَىٰ بَعْدَ ذَٰلِكَ فَلَهُ

چه څوک ویریږی دَ هغه نه | غائبانه | پس څوک چه | زیاتے وکړی | پس له دے نه | نو هغه له

دَ هغه نه غائبانه هم ویریږی ، نو څوک چه دَ دے حکم نه پس زیاتے وکړی نو هغه لـه

عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿۹۴﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَأَنْتُمْ

عذاب دے | دردناک | اے دَ ایمان خاوندانو! | مه وژنئ | ښکار | هر کله چه تاسو

دردناکه سزا مقرر ده۔ اے مؤمنانو ! دَ احرام په حالت کښے ښکار مه

حُرُمٌ ۚ وَمَنْ قَتَلَهُ مِنْكُمْ مُتَعَمِّدًا فَجَزَاءٌ مِثْلُ مَا قَتَلَ

احرام تړلے وی | او څوک چه ووژنی ښکار | له تاسو نه | قصداً | نو بدله ده (چه ورکړے شی) | پشان دَ هغې (چه) | هغه ووژلو

وژنئ ، او چا چه قصداً ښکار ووژلو ، نو دَ هغې بدله دَ هغې (ښکار) په شان یو څاروے

مِنَ النَّعَمِ يَحْكُمُ بِهٖ ذَوَا عَدْلٍ مِّنْكُمْ هَدْيًا بٰلِغَ الْكَعْبَةِ

دَ څاروو نه | فیصله دِ وکړی دَ دے | دوه انصاف کوونکی | له تاسو نه | په طور دَ قربانۍ | چه ورسیږی | کعبے ته

دے ، چه ستاسو دوه منصفان په دَ هغے فیصله کوی، قربانۍ دَ پاره کعبے ته ورسوی

اَوْ كَفَّارَةٌ طَعَامُ مَسٰكِيْنَ اَوْ عَدْلُ ذٰلِكَ صِيَامًا لِّيَذُوْقَ

یا کفاره دَه | طعام ورکول | مسکینانو ته | یا | برابر | دَ دے | روژے | چه وڅکی

یا دَ هغے کفاره په مسکینانو باندِ دوډئ خوروَل دی. یا دَ دِے برابر روژے ساتل دی داځکه چه دَ خپل

وَبَالَ اَمْرِهٖ ؕ عَفَا اللّٰهُ عَمَّا سَلَفَ ؕ وَمَنْ عَادَ فَيَنْتَقِمُ اللّٰهُ

سزا | دَ خپل کار | معاف کړل الله | هغه څه | چه شوی دی وړاندِ | او څوک چه | دوباره وکړی | نو بدل له به اخلی | الله

عمل خوند وڅکی ، وړاندِ چه څه شوی دی الله تعالیٰ معاف کړل او اوس چه څوک دا کار وکړی نو الله تعالیٰ به تر

مِنْهُ ؕ وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ ذُو انْتِقَامٍ ﴿٩٥﴾ اُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ

دَ هغه نه | او الله | زبردست دے | بدله اخستونکے | حلال شوی دے | په تاسو | ښکار | دَ دریاب

بدله اخلی او الله تعالیٰ (په هغوی باندِ) غالب (او) سزا ورکوونکے دے۔ تاسو دَ پاره دَ دریاب ښکار او دَ دے خوراک

وَطَعَامُهٗ مَتَاعًا لَّكُمْ وَلِلسَّيَّارَةِ ۚ وَحُرِّمَ عَلَيْكُمْ صَيْدُ الْبَرِّ

او دَ هغے خوراک | ستاسو دَ فائدے دَ پاره | او دَ مسافرو دَ پاره | او حرام کړے شوی دے | په تاسو | ښکار | دَ وُچے

حلال کړے شوے دے چه تاسو ته او مسافرو ته فائده رسیږی او ترڅو چه تاسو دَ احرام په حالت کښے یئ په تاسو

مَا دُمْتُمْ حُرُمًا ؕ وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِیْٓ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ﴿٩٦﴾ جَعَلَ اللّٰهُ

ترڅو چه تاسو یئ | په احرام کښے | او ویریږئ | دَ الله نه | چه دَ هغه طرف ته | به تاسو راجمع کړے شئ | جوړه کړه | الله

باندِ دَ وُچے ښکار حرام دے او دَ الله تعالیٰ نه ویره کوئ چه ټول به ورته پیش کیږئ ۔ الله تعالیٰ کعبه چه

الْكَعْبَةَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ قِيٰمًا لِّلنَّاسِ وَالشَّهْرَ الْحَرَامَ

کعبه | کور | دَ عزت | دَ قیام ذریعه | خلقو دَ پاره | او میاشتے | دَ حرمت

دَ عزت ځائے دے دَ خلقو دَ (اجتماعی ژوند دَ) قیام سبب گرځولے دے ، او دَ غسے دَ حرمت میاشتے او دَ

وَالْهَدْيَ وَالْقَلَآئِدَ ؕ ذٰلِكَ لِتَعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ

او دَ قربانۍ څاروی | او دَ پټے والا څاروی | دا | ځکه چه تاسو پوهه شئ | چه | الله | پوهیږی

قربانۍ څاروی او هغه څاروی چه غاړی کښے ئے پټے پرتے وی، دا ځکه چه تاسو ته معلومه شی چه الله تعالیٰ دَ

مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ وَاَنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَیْءٍ عَلِیْمٌ ﴿٩٧﴾

په هغه څه چه په اسمانونو کښے دی | او په هغه څه چه په زمکه کښے دی | او دا چه | الله | په هر څیز باندِ | ښه پوهه دے

اسمانونو او دَ زمکے دَ ټولو څیزونو نه خبر دے او دا چه الله تعالیٰ په هر څه ښه پوهه دے.

اِعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ شَدِیْدُ الْعِقَابِ وَاَنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِیْمٌ ﴿٩٨﴾

پوهه شئ | چه | الله | سخت | عذاب ورکوونکے دے | او دا چه | الله | بخښونکے | مهربانه دے

خبر شئ چه الله تعالیٰ په سزا ورکولو کښے ډیر سخت دے او دا چه الله تعالیٰ بخښونکے مهربان دے

مَا عَلَى الرَّسُوْلِ اِلَّا الْبَلٰغُ ؕ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تُبْدُوْنَ
نشته دے | په پیغمبر | مګر | دَرسول (دَپیغام) | او الله | پوهیږی | په هغه څه چه تاسو ئے ښکاره کوئ
دَ رسول په ذمه خو بس پیغام رسول دی ، او الله تعالیٰ ته ستاسو ښکاره او پټ

وَمَا تَكْتُمُوْنَ ۝٩٩ قُلْ لَّا يَسْتَوِى الْخَبِيْثُ وَالطَّيِّبُ وَلَوْ
او په هغه څه | چه تاسو ئے پټوئ | ووایه | برابر نه دی | پلیت | او پاک | اګرچه
حالات ټول معلوم دی ۔ (اے پیغمبره ! دوی ته) ووایه چه پاک او ناپاک یو برابر نه دی اګر که دَ

اَعْجَبَكَ كَثْرَةُ الْخَبِيْثِ ۚ فَاتَّقُوا اللّٰهَ يٰۤاُولِى الْاَلْبَابِ
په تعجب کښے اچوی تا | ډیروالے | دَ پلیتئ | نو ویریږئ دَ الله نه | اے دَ عقل خاوندانو!
ناپاکو څیزونو ډیروالے تا په تعجب کښے واچوی ، نو اے عقلمندو! دَ الله تعالیٰ (دَ نافرمانئ) نه ویره کوئ

لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ۝١٠٠ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَسْـَٔلُوْا عَنْ اَشْيَآءَ
چه تاسو | کامیابه شئ | اے | دَ ایمان خاوندانو! | تپوس مه کوئ | دَ داسے څیزونو
چه تاسو کامیابه شئ ۔ اے مسلمانانو ! دَ داسے څیزونو په حقله پوښتنه مه کوئ

اِنْ تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ ۚ وَاِنْ تَسْـَٔلُوْا عَنْهَا حِيْنَ
چه که ښکاره شی | تاسو ته | نو غمژن به کړی تاسو | او که | تپوس کوئ تاسو | دَ هغے په حقله | په داسے وخت کښے
چه که هغه درته ښکاره شی نو بد به درباندِ ولګی ، او که تاسو ئے په داسے وخت کښے تپوس کوئ

يُنَزَّلُ الْقُرْاٰنُ تُبْدَ لَكُمْ ؕ عَفَا اللّٰهُ عَنْهَا ؕ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ
چه نازلیږی | قرآن | نو ښکاره به شی تاسو ته | معافی وکړه | الله | له هغو (تپوسونو) نه | او الله | بخښونکے
چه قرآن را نازلیږی نو هغه به درته خامخا ښکاره کولے شی ، الله تعالیٰ تاسو ته معافی وکړه ، او الله بخښونکے

حَلِيْمٌ ۝١٠١ قَدْ سَاَلَهَا قَوْمٌ مِّنْ قَبْلِكُمْ ثُمَّ اَصْبَحُوْا
دَ زغم خاوند دے | بیشکه تپوس کړی وو (دَ دے په نسبت) | یو قوم | له تاسو نه وړاندِ | بیا | شول هغوی
دَ زغم خاوند دے ، بیشکه یو قوم تاسو نه وړاندِ هم داسے تپوسونه کړی وو بیا چه کله هغه ښکاره شول نو دَ

بِهَا كٰفِرِيْنَ ۝١٠٢ مَا جَعَلَ اللّٰهُ مِنْۢ بَحِيْرَةٍ وَّلَا سَآئِبَةٍ
په هغے باندِ | کافران | نه دہ مقرر کړے | الله | بحیره | او نه | سائبه
هغے نه ئے انکار وکړو ۔ الله نه خو بحیره (دَ کوم څناور پئ چه دَ بتانو په نوم کړے شی) او نه سائبه (دَ بتانو په نوم آزاد شوے

وَّلَا وَصِيْلَةٍ وَّلَا حَامٍ ۙ وَّلٰكِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا يَفْتَرُوْنَ
او نه | وصیله | او نه حام | لیکن | کوم خلق چه | کافران دی | هغوی تړی
څناور) او نه وصیله (دَ کومے اوښے چه ورومبے او دویم بچے ښځے وی) او نه حام (لس ځل بلاربوونکے اوښ) حرام مقرر کړے دَ دا کافر

عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ ؕ وَاَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُوْنَ ۝١٠٣ وَاِذَا قِيْلَ لَهُ
په الله باندِ | دروغ | او ډیرله دوی نه | عقل نه لری | او کله چه | وویلے شی دوی
خلق په الله تعالیٰ دَ دروغو تهمتونه تړی ، او په دوی کښے اکثر بے عقله دی ۔ او هر کله چه ورته وویلے ش

١٣
ع
٧

تَعَالَوْا إِلَىٰ مَآ أَنزَلَ اللَّهُ وَإِلَى الرَّسُولِ قَالُوا حَسْبُنَا

(چه) راشئ تاسو | دَ هغه څه طرف ته چه | نازل کړو الله | او دَ پیغمبر (دَ حکم) طرف ته | نو دوی وائی | کافی دے مونږ دَ پاره

چه دَ الله تعالیٰ دَ نازل کړو حکمونو او رسول طرف ته رجوع وکړئ نو دوی وائیل چه مونږ دَ پاره هغه طریقه

مَا وَجَدْنَا عَلَيْهِ آبَآءَنَا ۚ أَوَلَوْ كَانَ آبَآؤُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ

هغه څه چه موندلی دی مونږ | په هغے باندِ | پلاران خپل | ایا که چرے وی | پلاران دَ دوئی | چه نهٔ پوهیدل

بس ده چه خپل پلاران مو پرے موندلی دی اگرکهٔ دَ دوی پلاران په هیڅ نهٔ پوهیدل

شَيْـًٔا وَلَا يَهْتَدُونَ ﴿١٠٤﴾ يَآ أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا عَلَيْكُمْ أَنفُسَكُمْ

په څهٔ څیز | او نهٔ | دوی په هدایت باندِ وو | اے دَ ایمان خاوندانو! | په تاسو (ذمه واری) ده | ستا سو خپل

او دَ سمے لارے نه خبر نهٔ وو۔ اے مؤمنانو! تاسو بس دَ خپل ځان غم کوئ

لَا يَضُرُّكُم مَّن ضَلَّ إِذَا اهْتَدَيْتُمْ ۚ إِلَى اللَّهِ مَرْجِعُكُمْ

نقصان نهٔ شی در رسولے تاسو ته | خوک چه گمراه شو | هرکله چه | تاسو هدایت باندِ یئ | الله طرف ته دی | واپس تلل ستاسو

تاسو نه گمراه خلق هیڅ نقصان نهٔ شی دررسولے که چرے تاسو پخپله په هدایت باندِ یئ، تاسو ټول به الله تعالیٰ

جَمِيعًا فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿١٠٥﴾ يَآ أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا

دَ ټولو | بیا به هغه وښائی تاسو ته | هغه څه | چه تاسو به کول | اے مؤمنانو!

ته پیش کیږئ نو هغه به درته وښائی چه تاسو څهٔ کارونه کول۔ اے مؤمنانو!

شَهَادَةُ بَيْنِكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ حِينَ الْوَصِيَّةِ

گواهی (پکار ده) | ستاسو په مینځ کښے | کله چه راورسیږی | یو له تاسو نه | مرگ | په وخت | دَ وصیت کښے

هرکله چه په تاسو کښے چانه دَ مرگ (نخښے) ښکاره شی، نو دَ وصیت په وخت کښے په تاسو

اثْنَانِ ذَوَا عَدْلٍ مِّنكُمْ أَوْ آخَرَانِ مِنْ غَيْرِكُمْ إِنْ أَنتُمْ

دَ دوؤ سړو | انصاف کوونکو | له تاسو نه | یا | دوه نورو وی | تاسو نه سوا | که چرے | تاسو

مسلمانانو کښے دوه معتبر گواهان موجود پکار دی یا که چرے تاسو په زمکه دَ سفر په حالت کښے یئ (او

ضَرَبْتُمْ فِي الْأَرْضِ فَأَصَابَتْكُم مُّصِيبَةُ الْمَوْتِ ۚ تَحْبِسُونَهُمَا

سفر کوئ | په زمکه کښے | بیا ورسیږی تاسو ته | مصیبت | دَ مرگ | نو را ایسار کړئ تاسو دواړه

مسلمان گواه ملاؤ نهٔ شی) او تاسو نه دَ مرگ مصیبت پیښ شی نو بیا دَ خپل ځانه سوا دوه (غیر مسلم) گواه چو

مِن بَعْدِ الصَّلَاةِ فَيُقْسِمَانِ بِاللَّهِ إِنِ ارْتَبْتُمْ لَا نَشْتَرِي

پس | له مانځهٔ نه | بس دوی دِ قسم وخوری | دَ الله | که چرے تاسو ته شک وی | چه مونږ نهٔ اخلو

کړئ (بیا) که چرے تاسو ته دَ هغوی په صداقت باندِ شک وی نو دَ مونځ نه پس دوی ایسار کړئ بیا دِ

بِهِ ثَمَنًا وَلَوْ كَانَ ذَا قُرْبَىٰ ۙ وَلَا نَكْتُمُ شَهَادَةَ اللَّهِ

دَ دے په بدل کښے | قیمت | اگرچه هغه وی | رشته دار | او مونږ نهٔ پټوو | گواهی | دَ الله

دوی په الله قسم وخوری چه مونږ به دَ دے په بدل کښے قیمت نهٔ اخلو اگرچه هغه صاحب دَ معاملے رشته دار ولے نهٔ وی او دَ الله گواهی نه پټوو

اِنَّآ اِذًا لَّمِنَ الْاٰثِمِيْنَ ﴿١٠٦﴾ فَاِنْ عُثِرَ عَلٰٓى اَنَّهُمَا اسْتَحَقَّآ

بیشکه مونږ به په دغه وخت | له ګناهګارانو نه بو | بیا که چرې | معلومه شی | په دې چه دا دواړه | مرتکب شول

یعنی مونږ به ګناهګار شو. نو که پته ولګیده چه دې دواړو ځان په ګناه کښې اخته کړے دے

اِثْمًا فَاٰخَرٰنِ يَقُوْمٰنِ مَقَامَهُمَا مِنَ الَّذِيْنَ اسْتَحَقَّ عَلَيْهِمُ

د ګناه | نو دوه نور ګواهان | د و دریږی | د هغه دواړو په ځائے | له هغو خلقو نه | چه د هغوی حق وهل غوښتی وی

نو بیا د دهغوی په ځائے دوه نور سړی د هغه کسانو نه و دریږی چه وهاند بینو ګواهانو د چا حق وهلے

الْاَوْلَيٰنِ فَيُقْسِمٰنِ بِاللّٰهِ لَشَهَادَتُنَآ اَحَقُّ مِنْ شَهَادَتِهِمَا

هغوی د برنږدې وی مړی ته | بیا د هغوی قسم وخوری په الله | چه زمونږ ګواهی | زیاته رښتینې ده | د دې دواړو له ګواهئ نه

چه هغوی د برنږدې وی مړی ته بیا د په الله تعالیٰ قسم وخوری چه زمونږ شهادت د هغوی د ګواهئ نه زیات برحق دے

دے، او دواړه د

وَمَا اعْتَدَيْنَآ ۖ اِنَّآ اِذًا لَّمِنَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿١٠٧﴾ ذٰلِكَ اَدْنٰٓى اَنْ يَّاْتُوْا

او زیاتے نه دے کړے مونږ | بیشکه چه مونږ به په دغه وخت له ظالمانو نه بو | دا زیاته نږدې ده | دې ته چه دوی ورکړی

او زیاتے نه دے کړے کنی نو بیا به په ظالمانو کښې شمیر شو. دا ډیره د نږدې لار ده چه دغه

او مونږ په شهادت کښې زیاتے نه دے کړے

بِالشَّهَادَةِ عَلٰى وَجْهِهَآ اَوْ يَخَافُوْٓا اَنْ تُرَدَّ اَيْمَانٌۢ بَعْدَ اَيْمَانِهِمْ ۭ

ګواهی | په صحیح طریقه | یا و ویریږی له دې نه | چه رد به کړے شی | قسمونه | پس له قسمونو د دوی نه

شاهدان به خلق شهادت سم سم ادا کړی یا به د دې نه و ویریږی چه د هغوی د قسمونو نه پس به نورو قسمونو د

وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاسْمَعُوْا ۭ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِی الْقَوْمَ الْفٰسِقِيْنَ ﴿١٠٨﴾

او وویریږئ د الله نه | او واورئ | او الله | سمه لار نه ښائی | قوم | د فاسقانو ته

هغوی تردید و نه شی او د الله نه ویره کوئ او (د هغه حکم) اورئ الله د فاسقانو تولی ته سمه لار نه ښائی.

يَوْمَ يَجْمَعُ اللّٰهُ الرُّسُلَ فَيَقُوْلُ مَاذَآ اُجِبْتُمْ ۭ قَالُوْا

په کومه ورځ | چه جمع کړی الله | رسولان | بیا به هغه وفرمائی | څه | جواب درکړے شو وو تاسو ته؟ | وُ به وائی

په کومه ورځ چه الله تعالیٰ ټول رسولان راجمع کړی نو تپوس به ترے وکړی چه تاسو ته څه جواب درکړے شوے وو

لَا عِلْمَ لَنَا ۭ اِنَّكَ اَنْتَ عَلَّامُ الْغُيُوْبِ ﴿١٠٩﴾ اِذْ قَالَ اللّٰهُ

نشته د علم | مونږ ته | بیشکه | ته | ښه پوهیږې | په غیبو باندې | کله چه | وفرمائی | الله

هغوی به جواب ورکړی چه مونږ ته هیڅ علم نشته بیشکه هم ته د غیبو د خبرو ته خبردار یې. بیا کله چه الله تعالیٰ

يٰعِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ اذْكُرْ نِعْمَتِيْ عَلَيْكَ وَعَلٰى وَالِدَتِكَ ۘ اِذْ

اے عیسیٰ ځوئے د مریم ! | یاد کړه | نعمت زما | په خپل ځان | او په خپلې مور | کله چه

وفرمائی اے د مریم ځویه عیسیٰ ! ما چه کوم نعمتونه تا له او ستا مور له ورکړی وو هغه یاد کړه چه ما به

اَيَّدْتُّكَ بِرُوْحِ الْقُدُسِ ۣ تُكَلِّمُ النَّاسَ فِی الْمَهْدِ وَكَهْلًا ۚ

ما ستا مدد وکړو | په روح القدس سره | چه خبرې کولې تا | خلقو سره | په زانګو کښې | او په بوخ عمر کښې

جبرائیل سره ستا امداد وکړو، تا به زانګو کښې هم خلقو سره خبرې کولې او په بوخ عمر کښې هم

وَاِذْ عَلَّمْتُكَ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَالتَّوْرٰىةَ وَالْاِنْجِيْلَ ۚ وَاِذْ

او هر کله چه | ما ښودلو تاته | کتاب | او حکمت | او تورات | او انجیل | او هر کله چه

او هر کله چه ما تاته دَ کتاب ، حکمت ، تورات او انجیل تعلیم درکړو ، او چه

تَخْلُقُ مِنَ الطِّيْنِ كَهَيْـَٔةِ الطَّيْرِ بِاِذْنِيْ فَتَنْفُخُ فِيْهَا فَتَكُوْنُ

چه جوړولو تا | له خټې نه | پشان دَ صورت | دَ مارغهٔ | زما په حکم | بیا به پوکې وهلو تا | په هغې کښې | نو هغه به شو

تا به زما په حکم دَ خټې نه دَ مارغهٔ شکل جوړولو او پوکې به دِ پکښې کولو ، او زما په حکم

طَيْرًاۢ بِاِذْنِيْ وَتُبْرِئُ الْاَكْمَهَ وَالْاَبْرَصَ بِاِذْنِيْ ۚ

مارغهٔ | زما په حکم | او ښهٔ کولو به تا | پیدائشي ړوند | او برګې | زما په حکم

به مارغهٔ کیدلو ، او پیدائشي ړاندهٔ او برګی به دِ زما په حکم رَغـول ،

وَاِذْ تُخْرِجُ الْمَوْتٰى بِاِذْنِيْ ۚ وَاِذْ كَفَفْتُ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ

او هر کله چه به تا راوایستل | مړی | زما په حکم | او هر کله چه | منع کړل ما | بنی اسرائیل

او مړی به دِ زما په حکم ژوندی کول ، او ما ته دَ بنی اسرائیلو نه بچ

عَنْكَ اِذْ جِئْتَهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ فَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْهُمْ

له تا نه | هر کله چه تا راوړې هغوئ ته | معجزې | بیائې وویئیل | هغو خلقو | چه کافران وو | له دوی نه

کړے کله چه تا هغوی ته څرګندے نخښې راوړې ، نو کومو خلقو چه له دوی نه کفر اختیار کړے وو هغوی

اِنْ هٰذَآ اِلَّا سِحْرٌ مُّبِيْنٌ ﴿١١٠﴾ وَاِذْ اَوْحَيْتُ اِلَى الْحَوَارِيّٖنَ

چه نهٔ دے دا | مګر صرف | جادو دے | ښکاره ۔ | او کله چه | ما په زړهٔ کښې واچول | دَ حوارپانو

وویئیل چه دا خو دَ واضح جادو نه سوا بل هیڅ نهٔ دی ۔ او یاد کړه کله چه ما دَ حوارپانو په زړهٔ کښې واچول

اَنْ اٰمِنُوْا بِيْ وَبِرَسُوْلِيْ ۚ قَالُوْٓا اٰمَنَّا وَاشْهَدْ بِاَنَّنَا مُسْلِمُوْنَ ﴿١١١﴾

چه | ایمان راوړئ په ما | او زما په رسول | (نو) دوی وویئیل | مونږ ایمان راوړو | او ګواه شه | چه بیشکه مونږ | حکم منونکی یو ۔

چه په ما او زما په رسولانو باندِ ایمان راوړئ نو دوی وویئیل چه مونږ ایمان راوړو او اے الله ! ته ګواه اوسه چه مونږ

اِذْ قَالَ الْحَوَارِيُّوْنَ يٰعِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ هَلْ يَسْتَطِيْعُ رَبُّكَ اَنْ

هر کله چه وویئیل | حواریانو | اے عیسیٰ | ځویه دَ مریم ! | ایا کولے شی ؟ | ستا رب | چه

فرمانبرداریو (یاد کړه) کله چه حواریانو وویئیل چه اے عیسیٰ دَ مریم ځویه ! ایا ستا رب په مونږ باندِ له اسمان

يُّنَزِّلَ عَلَيْنَا مَآئِدَةً مِّنَ السَّمَآءِ ؕ قَالَ اتَّقُوا اللّٰهَ اِنْ كُنْتُمْ

راکوزه کړی | په مونږ باندِ | خوانچه | له اسمان نه | وویئیل هغهٔ | وویریږئ دَ الله نه | که چرې یئ تاسو

نه دَ خوراک یوه خوانچه راکوزولے شی ، عیسیٰ ورته وفرمائیل چه دَ الله تعالیٰ نه وویریږئ که چرې

مُّؤْمِنِيْنَ ﴿١١٢﴾ قَالُوْا نُرِيْدُ اَنْ نَّاْكُلَ مِنْهَا وَتَطْمَئِنَّ

مؤمنان | دوی وویئیل | چه مونږ غواړو | چه وُخورو | له دے نه | او ارام ونیسی

واقعی تاسو مؤمنان یئ ۔ هغوی وویئیل ، مونږ خو بس دا غواړو چه دَ هغې نه خوراک وُخورو او زړونه مو به

قُلُوْبُنَا وَنَعْلَمَ اَنْ قَدْ صَدَقْتَنَا وَنَكُوْنَ عَلَيْهَا

زمونږ زړونه تسلي شي | او پوهه شو مونږ | چه بیشکه | رښتیا وئیلی دی تا مونږ ته | او مونږ شو | په هغې باندې

او دا راته معلومه شي چه تا مونږ ته هر څه رښتیا رښتیا وئیلی دی او په دې خبره

مِنَ الشّٰهِدِيْنَ ﴿١١٣﴾ قَالَ عِيْسَى ابْنُ مَرْيَمَ اللّٰهُمَّ رَبَّنَآ

له ګواهانو نه | ووئیل | عیسیٰ | ځوئے | د مریم | (چه) اے الله زمونږ ربه

ګواهان شو ، عیسیٰ د مریم ځوئے ووئیل اے الله اے زمونږ ربه!

اَنْزِلْ عَلَيْنَا مَآئِدَةً مِّنَ السَّمَآءِ تَكُوْنُ لَنَا عِيْدًا

نازله کړه | په مونږ باندې | خوانچه | له اسمان نه | چه وی | مونږ د پاره | د خوشحالۍ ورځ

په مونږ باندې یوه خوانچه د اسمان نه راکوزه کړه ، چه زمونږ د پاره یعنی زمونږ د وړاندې یو

لِّاَوَّلِنَا وَاٰخِرِنَا وَاٰيَةً مِّنْكَ ۚ وَارْزُقْنَا وَاَنْتَ

زمونږ د وړومبو | او وروستنو د پاره | او یوه نخښه | ستا د طرف نه | او روزی راکړه مونږ ته | او ته

او وروستنو خلقو د پاره د خوشحالۍ موقعه شي او ستا د طرف نه یوه نخښه شي ، او مونږ له روزي راکړه ته ډیر

خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ ﴿١١٤﴾ قَالَ اللّٰهُ اِنِّيْ مُنَزِّلُهَا عَلَيْكُمْ ۚ فَمَنْ يَّكْفُرْ

ډیر ښه روزی ورکوونکے یې | وفرمائیل الله | بیشکه زه | نازلوونکے یم دا | په تاسو باندې | پس څوک چه انکار وکړی

ښه روزي رسان یې ۔ الله وړته وفرمائیل چه زه تاسو ته خوانچه در نازلوونکے یم خو په تاسو کښې چه څوک د دے

بَعْدُ مِنْكُمْ فَاِنِّيْٓ اُعَذِّبُهٗ عَذَابًا لَّآ اُعَذِّبُهٗٓ اَحَدًا مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ ﴿١١٥﴾

پس له دے له تاسو نه | نو زه به عذاب ورکړم هغه له | داسے عذاب | چه عذاب به نه ورکړم هغه | چا یل نه | له جهان والو نه

نه پس هم انکار وکړی نو زه به ورله داسے سزا ورکړم چه په دنیا کښې به مې بل چا له نه وی ورکړی

وَاِذْ قَالَ اللّٰهُ يٰعِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ ءَاَنْتَ قُلْتَ لِلنَّاسِ

او کله چه وفرمائی | الله | اے عیسیٰ ځوئے د مریم ! | آیا تا وئیلی وو | خلقو ته

او هر کله چه الله تعالیٰ (په حشر کښې) وفرمائی اے عیسیٰ د مریم ځویه! آیا تا خلقو ته وئیلی وو چه د الله نه

اتَّخِذُوْنِيْ وَاُمِّيَ اِلٰهَيْنِ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ؕ قَالَ سُبْحٰنَكَ

(چه) ونیسئ ما | او زما مور | دوه معبودان | په ځائے | د الله | دیه وائی | پاک یې ته

سوا ما او زما مور دواړه په خدايۍ ونیسئ ، هغه به ووائی اے الله! ته پاک یې

مَا يَكُوْنُ لِيْٓ اَنْ اَقُوْلَ مَا لَيْسَ لِيْ ۗ بِحَقٍّ ؕ اِنْ كُنْتُ قُلْتُهٗ

نه دی مناسب ما له | چه ووایم | هغه خبره | چه نه دے زما حق | که چرے | ما دا وئیلی وے

ما د اشنګه کولے شو چه هغه خبره مې د خلې نه ایستلے چه ما ته ئې حق حاصل نه وو ، که ما وئیلے وے نو تا ته

فَقَدْ عَلِمْتَهٗ ؕ تَعْلَمُ مَا فِيْ نَفْسِيْ وَلَآ اَعْلَمُ مَا فِيْ نَفْسِكَ ؕ

نو بیشکه هغه به معلوم وی تا ته | ته پوهیږې | په هغه څه چه زما زړه کښې دی | او زه نه پوهیږم | په هغه څه چه ستا په زړه کښې دی

به ضرور معلومه وے ، تا ته ښه معلوم دی څه چه زما په زړه کښې دی او ما ته نه دی معلوم څه چه ستا په علم کښې دی

وقف النبي صلى الله عليه وسلم

ع ١٥

اِنَّكَ اَنْتَ عَلَّامُ الْغُيُوْبِ ﴿١١٦﴾ مَا قُلْتُ لَهُمْ اِلَّا مَآ اَمَرْتَنِيْ بِهٖ

بیشکه هم ته | دیر ښهٔ پوهه یې | په غائبو باندِ ، | نهٔ دی وئیلی ما | دوی ته | مګر | څهٔ چه | حکم فرمائیلے وو تا ماته په هغې

بیشکه ته دَ غیبو په خبرو باندِ ښهٔ پوهه یې ! مادرته دَ دے نه سوا هیڅ نهٔ دو وئیلی، څهٔ چه تا حکم

اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ رَبِّيْ وَرَبَّكُمْ ۚ وَكُنْتُ عَلَيْهِمْ شَهِيْدًا

چه عبادت وکړه | دَ الله | چه زما رب | او ستاسو رب دے | او وم زهٔ | په دوی باندِ | باخبره

راکړے وو چه یوازے دَ الله عبادت کوئ چه زما او ستاسو دَ ټولو رب دے او زهٔ ترے نه ترهغه وخته خبر وُم ، ترڅو چه

مَّا دُمْتُ فِيْهِمْ ۚ فَلَمَّا تَوَفَّيْتَنِيْ كُنْتَ اَنْتَ الرَّقِيْبَ عَلَيْهِمْ ؕ

ترڅو چه زهٔ وُم | په دوی کښې | بیا هر کله چه | تا واخستلم زهٔ | نو وے ته | نګران | په دوی باند

ورکښې موجود وُم ، او هر کله چه تا پسته راواغوښتم ، نو بیا (یوازے) تهٔ دَ هغوی نه خبر وے،

وَاَنْتَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدٌ ﴿١١٧﴾ اِنْ تُعَذِّبْهُمْ فَاِنَّهُمْ عِبَادُكَ ۚ وَ

او تهٔ | په هر څیز باندِ | ښهٔ باخبره یې | که چرے ته عذاب ورکوې دوی ته | نو بیشکه دوی | ستا بندګان دی | او

او اے الله ! تهٔ دَ هر څیز نه ښهٔ خبردار یې ۔ اُوس که تهٔ سزا ورکوے نو دوی ستا بندګان دی، او

اِنْ تَغْفِرْ لَهُمْ فَاِنَّكَ اَنْتَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿١١٨﴾ قَالَ اللّٰهُ هٰذَا يَوْمُ

که ته دُ بخښنے | دوی | نو بیشکه ته | غالب | دَ حکمت خاوند یې | دو به فرمائی الله | دا هغه ورځ ده چه

که معافی ورته کوے ، نو تهٔ غالب او دَ حکمتونو خاوند یې ، الله تعالیٰ به ورته ووائی چه دا هغه ورځ

يَنْفَعُ الصّٰدِقِيْنَ صِدْقُهُمْ ؕ لَهُمْ جَنّٰتٌ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ

نفع رسوی | رښتینو ته | رښتیا دَ دوی | دوی له | باغونه دی | چه بهیږی | دَ هغې لاندِ | نهرونه

ده ، چه رښتینو خلقو ته به خپل رښتیا فائده ورکوی ، هغوی له داسے باغونه دی چه لاندِ ترے نه ویالے بهیږی

خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ؕ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَرَضُوْا عَنْهُ ؕ ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ﴿١١٩﴾

همیشه به وُسیږی | په هغې کښې | همیشه همیشه | راضی شو الله | له دوی نه | او راضی شول دوی له هغه نه | دا | کامیابی ده | لویه

او هغوی به په دے کښې همیشه همیشه وی ، الله دَ هغوی نه راضی شو او هغوی دَ الله نه راضی شول دا ډیره لویه کامیابی ده

لِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا فِيْهِنَّ ؕ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿١٢٠﴾ ع ١٦

الله دَ پاره ده | بادشاهی | دَ اسمانونو | او دَ زمکے | او دَ هغه څه چه په دے کښې دی | او هغه | په هر څیز باندِ | قادر دے

اسمانونه او زمکه او دَ دے ترمینځه چه څهٔ دی په ټولو دَ الله تعالیٰ حکومت دے او هغه په هر څیز باندِ قدرت لری

سُوْرَةُ الْاَنْعَامِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مِائَةٌ وَّ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | خَمْسٌ وَّسِتُّوْنَ اٰيَةً وَّعِشْرُوْنَ رُكُوْعًا

سورۃ انعام په مکه کښې نازل شو په دے کښې | (شروع) دَ الله په نوم چه لوئے مهربان زیات رحم کوونکے دے | ۱۶۵ اٰیتونه او ۲۰ رکوع ګانے دی

دَ الله په نوم شروع کوم چه بے اندازے مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَجَعَلَ

ټول تعریفونه | الله دَ پاره دی | هغه کوم چه | پیدا کړل | اسمانونه | او زمکه | او پیدا کړے

ټول تعریفونه هم الله تعالیٰ لره دی چا چه اسمانونه او زمکے پیدا کړی دی او تیارے

الظُّلُمٰتِ وَالنُّوْرَ ۬ ثُمَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ يَعْدِلُوْنَ ①

تیارے | او رنړا | بیا (هم) کوم خلق چه | کافران دی | خپل رب سره | (نور) برابر ګڼړی

او رنړائے جوړه کړے ده ۔ بیا هم کافران ، خلق خپل رب سره برابر ګڼړی ۔

هُوَ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ مِّنْ طِيْنٍ ثُمَّ قَضٰٓى اَجَلًا ؕ وَاَجَلٌ

او هم هغه دے | چا چه | پیدا کړئ تاسو | له خټے نه | بیائے | مقرر کړه | یوه موده | او یوه موده (نوره)

(الله) هغه دے چه تاسو ئے د خاوړے نه پیدا کړئ بیائے درله د ژوند یوه نیټه مقرر کړه ، او یوه بله

مُّسَمًّى عِنْدَهٗ ثُمَّ اَنْتُمْ تَمْتَرُوْنَ ② وَهُوَ اللّٰهُ فِى السَّمٰوٰتِ

مقرره | هغهٔ سره | بیا (هم) تاسو | شک کوئ | او هم هغه دے الله | په اسمانو نو کښے

نیټه (د قیامت) هم هغهٔ سره مقرره ده بیا هم تاسو شک کوئ ۔ او هم هغه یو خدائے دے چه اسمانو نو کښے هم دے

وَفِى الْاَرْضِ ؕ يَعْلَمُ سِرَّكُمْ وَجَهْرَكُمْ وَيَعْلَمُ مَا

او په زمکه کښے | او هغه پوهیږی | ستاسو په پټه | او ستاسو په ښکاره | او پوهیږی | په هغه څه

او په زمکه کښے هم دے هغه ستاسو په پټو او ښکاره ټولو خبرو پوهیږی ، او ستاسو عملونو باندې هم

تَكْسِبُوْنَ ③ وَمَا تَاْتِيْهِمْ مِّنْ اٰيَةٍ مِّنْ اٰيٰتِ رَبِّهِمْ اِلَّا كَانُوْا عَنْهَا

چه تاسو ئے کوئ | او نهٔ راځی دوی ته | څهٔ نخښه | له نخښو نه | د رب د دوی | مګر وو دوی | له هغے نه

پوهه دے او دے (کفارو) ته چه کله هم د الله تعالیٰ د نخښو نه څهٔ نخښه راشی نو دوی له دے نه

مُعْرِضِيْنَ ④ فَقَدْ كَذَّبُوْا بِالْحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمْ ؕ فَسَوْفَ يَاْتِيْهِمْ

مخ اړونکی | پس دوی دروغ وګڼړلو | حق | هر کله چه هغه راغلو دوی ته | پس زر | به راشی دوی ته

مخ اړوی ۔ (او س چه کوم پیغام د) حق دوی ته راغلو نو دوی دا (هم) دروغ وګڼړلو ، پس زر به دوی ته د

اَنْۢبٰٓؤُا مَا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ⑤ اَلَمْ يَرَوْا كَمْ اَهْلَكْنَا

خبر (حقیقت) | د هغه څهٔ کوم پورے | چه هغوی توقے کولے | ایا نهٔ دی کتلی دوی | چه څومره | هلاک کړل مونږ

هغه څیز حقیقت معلوم شی کوم پورے چه به دوی توقے کولے ۔ دوی نهٔ ګوری چه د دوی نه وړاندې مونږ

مِنْ قَبْلِهِمْ مِّنْ قَرْنٍ مَّكَّنّٰهُمْ فِى الْاَرْضِ مَا لَمْ نُمَكِّنْ

له دوی نه وړاندې | قومونه | مونږ طاقت ورکړے وو دوی ته | په زمکه کښے | چه | مونږ طاقت نهٔ دے درکړے

څومره قومونه هلاک کړی دی ، کوم له چه مونږ په زمکه کښے هغه اقتدار ورکړے وو چه تاسو له مو

لَّكُمْ وَاَرْسَلْنَا السَّمَآءَ عَلَيْهِمْ مِّدْرَارًا ۪ وَّجَعَلْنَا الْاَنْهٰرَ

تاسو ته | او رالیږلے وو مونږ | له اسمان نه | په دوی باندې | باران | او کړی وو مونږ | نهرونه

نهٔ دے درکړے او مونږ په هغوی باندې د ېره نه (د رحمت) بارانونه ورول او د هغوی د قدمونو لاندې

تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهِمْ فَاَهْلَكْنٰهُمْ بِذُنُوْبِهِمْ وَاَنْشَاْنَا

جاری | د دوی لاندې (قدمونو کښے) | بیا مونږ هلاک کړل دوی | په ګناهونو د دوی | او پیدا کړل مونږ

مونږ نهرونه جاری کړل ، بیا مونږ هغوی د هغوی د ګناهونو په وجه هلاک کړل او د هغوی نه پس

مِنْ بَعْدِهِمْ قَرْنًا اٰخَرِيْنَ ﴿٦﴾ وَلَوْ نَزَّلْنَا عَلَيْكَ كِتٰبًا

پس له دوی نه | قومونه | نور | اوکه چرې نازل کړې وی موږ | په تا بانډې | (سالم) کتاب

موږ نور قومونه پیدا کړل ، او (اے پیغمبره!) که چرے موږ په تا بانډې کاغذ بانډې لیکلے شوے

فِيْ قِرْطَاسٍ فَلَمَسُوْهُ بِاَيْدِيْهِمْ لَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اِنْ هٰذَآ

(لیکلے شوے) په کاغذ بانډې | او دوی لګولے وے دغه سره | لاسونه خپل | نو خامخا به وئیلی وو | هغو خلقو کوم چه | کافران دی | چه نه دے دا

یو کتاب نازل کړے او دوی خپل لاسونه (هم) هغے له وراوړی وے نو بیا به هم کافرو خلقو داوئیل چه دا خو

اِلَّا سِحْرٌ مُّبِيْنٌ ﴿٧﴾ وَقَالُوْا لَوْلَآ اُنْزِلَ عَلَيْهِ مَلَكٌ

مګر | جادو | ښکاره | او دوی وائي | ولے را ونه لیږلے شوه | په دهٔ بانډې | فرښته

ښکاره جادو دے ۔ او دے خلقو وئیل چه په دے (نبی) بانډې څوک فرښته ولے نه راکوزیږی؟

وَلَوْ اَنْزَلْنَا مَلَكًا لَّقُضِيَ الْاَمْرُ ثُمَّ لَا يُنْظَرُوْنَ ﴿٨﴾ وَلَوْ جَعَلْنٰهُ

او که چرې نازلولے موږ | فرښته | نو ختم شوے به وو | تول معامله | بیا به مهلت نه وو ورکړے شوے دوی ته | او که موږ جوړ وے هغه

او که موږ فرښته راکوزه کړے وے نو ټوله قصه به خلاصه شوے وه او بیا به دوی ته هیڅ مهلت نه وو ملاؤ شوے او که چرے

مَلَكًا لَّجَعَلْنٰهُ رَجُلًا وَّلَلَبَسْنَا عَلَيْهِمْ مَّا

فرښته | نو موږ به جوړ کړے وو هغه | سړے | او البته موږ به شبه غورزوله | په دوی بانډې | هم هغه

موږ فرښته پیغمبر جوړولے نو هغه به هم موږ د سړی په شکل راکوزوله او د غے په شک کښے به پراته وو

يَلْبِسُوْنَ ﴿٩﴾ وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِّنْ قَبْلِكَ فَحَاقَ

کومه شبه چه (اوس) کوی | او بیشکه توقے شوے دے | پیغمبرانو پورے | وړاندې له تا نه | نو راچاپیره شو

څنګه چه اوس په شک کښے پراته دی او (اے پیغمبره!) تا نه وړاندې هم ډیرو پیغمبرانو پورے خندا ګانے شوی دی خو اخر په هغه

بِالَّذِيْنَ سَخِرُوْا مِنْهُمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ﴿١٠﴾ ع

هغو خلقو بانډې کوم چه | توقے کړے دے | هغه (نبیانو) سوکا | هغه (عذاب) | کوم پورے چه به هغوی توقے کولے.

توقو کوونکو بانډې هم هغه عذاب راچاپیره شو کوم پورے چه دوی توقے کولے .

قُلْ سِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ ثُمَّ انْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ

ووایه | وګرځئ | په زمکه کښے | بیا | وګورئ | څنګه شو | انجام

ته ورته ووایه چه (اے خلقو!) د زمکے په مخ وګرځئ (او) بیا وګورئ چه (د حق) دروغ کوونکو څه

الْمُكَذِّبِيْنَ ﴿١١﴾ قُلْ لِّمَنْ مَّا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ قُلْ

د دروغ ګڼړونکو | تپوس وکړه | د چا دی | څه چه | په اسمانونو کښے | او زمکه (کښے دی)؟ | ووایه

انجام شو ؟ ته ووایه چه په اسمانونو او زمکه کښے څه دی هغه د چا دی ؟ (ته پخپله) ووایه

لِّلّٰهِ ۚ كَتَبَ عَلٰى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ ۚ لَيَجْمَعَنَّكُمْ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ

د الله دی | لازمه کړے ده | په خپل ځان بانډې | مهربانی | هغه به ضرور جمع کړی تاسو | په ورځ د قیامت

چه د الله تعالیٰ دی هغهٔ په خپل ځان بانډې رحم کول لازم کړی دی۔ هغه به تاسو ضرور د قیامت په ورځ راجمع کړی

لَا رَيْبَ فِيْهِ ؕ اَلَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۲﴾
نشته دَ څه شک | په دے کښے | کومو چه | نقصان کښے وُساتل | خپل ځانونه | پس هغوئ | ایمان نه راوړی
دَ کوم په راتلو کښے چه هیڅ شک نشته او کومو خلقو چه ځان په نقصان کښے اچولے دے هغوی ایمان راوړونکی دی

وَلَهٗ مَا سَكَنَ فِى الَّيْلِ وَالنَّهَارِ ؕ وَهُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿۱۳﴾
او دَ هغهٔ دی | څه چه آرام کوی | په شپه کښے | او ورځ (کښے) | او هغه دے | اَوریدونکے | پوهه
او دَ شپے په تیاره کښے او دَ ورځے په رڼا کښے هر څهٔ چه اوسیږی هغه ټول دَ الله (مخلوق) دی او هغه اوریدونکے (او) پوهه دے

قُلْ اَغَيْرَ اللّٰهِ اَتَّخِذُ وَلِيًّا فَاطِرِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ
ووایه | آیا بغیر | دَ الله نه | زهٔ ونیسم | بل دوست | چه پیدا کوونکے | دَ آسمانونو | او دَ زمکے دے
ته ووایه چه آیا زهٔ الله تعالیٰ پریږدم او بل څوک خپل کارساز جوړ کړم چه آسمانونه او زمکه ئے پیدا کړی دی؛

وَهُوَ يُطْعِمُ وَلَا يُطْعَمُ ؕ قُلْ اِنِّىْٓ اُمِرْتُ اَنْ اَكُوْنَ اَوَّلَ
او هغه | (په ټولو) خوړوی | او په هغهٔ څوک نه خوروی | ووایه | بیشکه ما ته حکم شوے دے | چه زهٔ شم | دَ ټولو نه وړومبے
او هغه ټولو ته روزی ورکوی او هغه له څوک روزی نهٔ ورکوی ورته ووایه چه ما ته خو دا حکم شوے دے چه زهٔ دِ په ټولو

مَنْ اَسْلَمَ وَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿۱۴﴾ قُلْ اِنِّىْٓ اَخَافُ
اسلام راوړونکے | او | مهٔ کیږه ته | له مشرکانو نه | ووایه | بیشکه زهٔ | ویریږم
کښے وړومبے اسلام قبول کړم او (ما ته حکم دے چه) ته له مشرکانو نه مهٔ شے. ورته ووایه چه که زهٔ دَ خپل رب

اِنْ عَصَيْتُ رَبِّىْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيْمٍ ﴿۱۵﴾ مَنْ يُّصْرَفْ عَنْهُ
که چرے | نافرمانی وکړم | دَ خپل رب | له عذاب | دَ ورځے | لوئے نه | دَ چا نه چه هغه واړولے شو
نافرمانی وکړم نو ما سره دَ یوے لوئے ورځے دَ عذاب ویره ده، څوک چه په دغه ورځ دَ عذاب

يَوْمَئِذٍ فَقَدْ رَحِمَهٗ ؕ وَذٰلِكَ الْفَوْزُ الْمُبِيْنُ ﴿۱۶﴾ وَاِنْ يَّمْسَسْكَ
په دغه ورځ | نو بیشکه هغهٔ رحم وکړو په هغهٔ | او دا ده | کامیابی | ښکاره | او که چرے | ورسوی تا ته
نه بچ شو نو په هغهٔ الله تعالیٰ ډیر رحم وکړو او دا لویه کامیابی ده. او که چرے الله تعالیٰ

اللّٰهُ بِضُرٍّ فَلَا كَاشِفَ لَهٗٓ اِلَّا هُوَ ؕ وَاِنْ يَّمْسَسْكَ
الله | (څهٔ) تکلیف | نو نشته | (څوک) لرے کوونکے | دَ هغے | دَ هغهٔ نه سوا | او که چرے | هغه ورسوی تا ته
تا ته څهٔ تکلیف ورسوی نو دَ هغهٔ نه بغیر هیڅوک نشته چه هغه لرے کړی او که چرے هغه در ته خیر

بِخَيْرٍ فَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَىْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۱۷﴾ وَهُوَ الْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهٖ ؕ
څهٔ خیر | نو هغه | په هر څیز باندے | قادر دے | او هغه | غالب دے | په خپلو بندګانو باندے
ورسوی نو هغه په هر څهٔ قدرت لری - او هغه په خپلو بندګانو باندے پوره پوره اختیار لری

وَهُوَ الْحَكِيْمُ الْخَبِيْرُ ﴿۱۸﴾ قُلْ اَىُّ شَىْءٍ اَكْبَرُ شَهَادَةً ؕ
او هغه | دَ حکمت خاوند | خبردار دے | ووایه | کوم یو څیز | ډیر لوئے دے | په شهادت کښے؟
او هغه دَ حکمت خاوند او په هر څهٔ خبر دے، ته تپوس وکړه چه دَ چا ګواهی دَ ټولو نه لویه ده؟

قُلِ اللّٰهُ شَهِيدٌۢ بَيْنِي وَبَيْنَكُمْ وَاُوحِيَ اِلَيَّ
وُوايه | الله دے | گواه | په مینځ زما | او په مینځ ستاسو کښې | او وحی شوې ده | زما طرف ته
(نه پخپله) ووایه! چه الله تعالیٰ زما او ستاسو ترمینځه گواه دے ، او په ما باندې دا قرآن
هٰذَا الْقُرْاٰنُ لِاُنْذِرَكُمْ بِهٖ وَمَنْۢ بَلَغَ ؕ اَىِٕنَّكُمْ لَتَشْهَدُوْنَ
دَ دے | قرآن | چه زهٔ وویرؤم تاسو | په دے سره | او ترچا چه دا ورسیږی | آیا تاسو | گواهی ورکوئ
نازل شوے دے ، چه دَ دے په ذریعه تاسوم (دَعذابنه) وویروم او چاته چه دا ورسیږی (هغهٔ هم) آیا تاسو داگواهی ورکوئ
اَنَّ مَعَ اللّٰهِ اٰلِهَةً اُخْرٰى ؕ قُلْ لَّاۤ اَشْهَدُ ۚ قُلْ اِنَّمَا هُوَ
چه | دَ الله سره دی | معبودان | نور (هم) | ووایه | زهٔ خو داگواهی نه ورکوم | ووایه | بیشکه | هم هغه دے
چه الله تعالیٰ سره نور معبودان هم (موجود) دی ، ته ووایه چه زهٔ داسے گواهی نهٔ ورکوم ، ووایه چه الله خو
اِلٰهٌ وَّاحِدٌ وَّاِنَّنِيْ بَرِيْۤءٌ مِّمَّا تُشْرِكُوْنَ ⑲ اَلَّذِيْنَ
معبود | یو | او بیشکه زهٔ | بیزاره یم | له هغه څهٔ نه | چه تاسو ئے شریکان کوئ | هغه خلق چه
هم هغه یو معبود دے او زهٔ دَ هغه څیزونو نه بیزاره یم کوم چه تاسو (دَالله سره) شریکوئ۔ چا ته چه مونږ
اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَعْرِفُوْنَهٗ كَمَا يَعْرِفُوْنَ اَبْنَآءَهُمْ
ورکړے دے مونږ دوی ته | کتاب | دوی پیژنی دا (رسول) | لکه څنګه چه دوی پیژنی | خپل ځامن
کتاب ورکړے دے ، هغوی دا (رسول) داسے ښهٔ پیژنی څنګه چه خپل ځامن ښهٔ پیژنی (خو)
اَلَّذِيْنَ خَسِرُوْۤا اَنْفُسَهُمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ⑳ وَمَنْ اَظْلَمُ
هغو کوموچه | نقصان کښے دُ لسرل | خپل ځانونه | پس هغوی | ایمان نهٔ راوړی | او څوک | زیات ظالم دے
کومو خلقو چه خپل ځان په زیان کښے اچولے دے ، هغوی به ایمان نهٔ راوړی ۔ او دَ هغه چا نه لوئے ظالم
مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اَوْ كَذَّبَ بِاٰيٰتِهٖ ؕ اِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ
له هغه چانه | چه وُ تړی | په الله باندې | دروغ | یا دروغ گڼړی | دَ هغهٔ آیتونه | بیشکه | نهٔ کامیابیږی
څوک دے چه په الله تعالیٰ دَ دروغو بهتان تړی ۔ یا دَ هغهٔ (رالیږلے) نخښے دروغژنے گڼړی داسے ظالمان
الظّٰلِمُوْنَ ㉑ وَيَوْمَ نَحْشُرُهُمْ جَمِيْعًا ثُمَّ نَقُوْلُ لِلَّذِيْنَ
ظالمان (خلق) | او په کومه ورځ چه | مونږ جمع کړو دوی | ټول | بیا | مونږ به ووایو | هغو ته کوموچه
هیچرے کامیابیږی نهٔ شی ۔ او په کومه ورځ چه مونږ دوی ټول راجمع کړو ، نو دَ مشرکانو نه به تپوس
اَشْرَكُوْۤا اَيْنَ شُرَكَآؤُكُمُ الَّذِيْنَ كُنْتُمْ تَزْعُمُوْنَ ㉒ ثُمَّ لَمْ تَكُنْ
شرک کړے وو | کوم ځائے دی | ستاسو شریکان | کوم چه | تاسو (دَالله سره شریک) گڼړل ۔ | بیا به نهٔ وی
وکړو چه ستاسو هغه جوړکړی شریکان څهٔ شول؟ چه تاسو ځان له خدایان جوړکړی وُو بیا به دَ دوی
فِتْنَتُهُمْ اِلَّاۤ اَنْ قَالُوْا وَاللّٰهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِيْنَ ㉓
دَ دوی (څهٔ بله) بهانه | سوا (دَ دے نه) | چه دوی به وائی | قسم دے په الله | چه زمونږ رب دے | نهٔ وُو مونږ | مشرکان
سره هیڅ عذر نه وی خو دومره قدر به وائی چه اے زمونږ ربه! په تا مو دِ قسم وی چه مونږ هرګز مشرکان نهٔ وُو

وقف لازم
وقف لازم
ع ٢ ١٠ ٨

اُنْظُرْ كَيْفَ كَذَبُوْا عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ وَضَلَّ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا

وګوره | چه څنګه | دروغ ئې وويل | په خپلو ځانونو باندې | او ورک شول | له دوی نه | هغه څه چه دوی به

وګوره څنګه دوی د خپل ځان په حقله دروغ وائي ، او هغه وخت به هغه ټول دروغ د دوی

يَفْتَرُوْنَ ﴿٢٤﴾ وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّسْتَمِعُ اِلَيْكَ ۚ وَجَعَلْنَا

ئې دروغ تړل | او ځينې له دوی نه هغه دي | چه غوږ ايږدي | تا ته | او مونږ اچولي دي

نه ورک شول كوم چه به دوی جوړول او په دوی كښې ځينې داسې دي چه ستا خبرو ته غوږ نيسي او مونږ

عَلٰى قُلُوْبِهِمْ اَكِنَّةً اَنْ يَّفْقَهُوْهُ وَفِيْٓ اٰذَانِهِمْ وَقْرًا ؕ وَاِنْ

د دوی په زړونو باندې | پردې | چه پوهه نه شي دوی په هغې | او د دوی په غوږونو كښې | درund والے | او كه چرې

د هغوی په زړونو پردې اچولي دي چه په هيڅ نه پوهيږي او په غوږونو كښې ئې كوڼ والے دے او كه چرې

يَّرَوْا كُلَّ اٰيَةٍ لَّا يُؤْمِنُوْا بِهَا ؕ حَتّٰٓى اِذَا جَآءُوْكَ يُجَادِلُوْنَكَ

ووينې دوی | ټولې معجزې | نو ايمان نه راوړي دوی په هغې باندې | تر دې چه | هر كله راشي دوی تا ته | چه جګړې كوی تا سره

دوی ټولې نخښې وګوري بيا به هم ايمان نه راوړي تر دې چه هر كله تا له راځي نو جګړې د در سره

يَقُوْلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اِنْ هٰذَآ اِلَّآ اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ ﴿٢٥﴾ وَهُمْ

نو وائي به | هغه خلق چه | كافران دي | نه دی دا | مګر | قصې | د پخوانو خلقو | او دوی

كوی ، نو څوك چه كافران دي هغوی داوائي چه دا خو نور څه نه دي تشې پخوانئ قصې دي او هغوی

يَنْهَوْنَ عَنْهُ وَيَنْئَوْنَ عَنْهُ ۚ وَاِنْ يُّهْلِكُوْنَ اِلَّآ اَنْفُسَهُمْ

منع كوی (خلق) | د دې نه | او (خپله هم) لرې كيږي | د دې نه | او دوی نه هلاكوی | مګر صرف خپل ځانونه

د دې (حق دين) د منلو نه خلق منع كوی او پخپله هم ترې لرې ګرځي او په دې چل نو رڅوك نه، خو تش خپل ځانونه

وَمَا يَشْعُرُوْنَ ﴿٢٦﴾ وَلَوْ تَرٰٓى اِذْ وُقِفُوْا عَلَى النَّارِ فَقَالُوْا

او | دوی نه پوهيږي | او كه چرې ته ووينې | كله چه دوی ودرولے شي | په اور | نو دوی به ووائي

هلاكوی او په دې هم نه پوهيږي او (اے نبی!) كه چرې ته دوی هغه وخت وګورې كله چه دوی د جهنم په غاړه ودرولے

يٰلَيْتَنَا نُرَدُّ وَلَا نُكَذِّبَ بِاٰيٰتِ رَبِّنَا وَنَكُوْنَ

اے كاش! | چه مونږ بيا واپس شو | او مونږ دروغ و نه ګڼړو | آيتونه | د رب خپل | او مونږ شو

شي نو دوی به وائي كاش! مونږ واپس (دنيا ته) وليږلے شو نو د خپل رب نخښې به دروغ و نه ګڼړو او مونږ به د

مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿٢٧﴾ بَلْ بَدَا لَهُمْ مَّا كَانُوْا يُخْفُوْنَ مِنْ قَبْلُ ؕ

له مؤمنانو نه | نه بلكه | ښكاره شو | په هغوی باندې | څه چه دوی پټول | وړاندې له دې نه

مؤمنانو نه شو . په حقيقت كښې د دوی مخ ته هغه خبرې ښكاره شو كوم چه به دوی وړاندې پټولو .

وَلَوْ رُدُّوْا لَعَادُوْا لِمَا نُهُوْا عَنْهُ وَاِنَّهُمْ لَكٰذِبُوْنَ ﴿٢٨﴾

او كه چرې | دوی واپس وګرځولے شي | نو ضرور به بيا هغه وكړي | د كوم نه چه منع كړے شوي دو | او بيشكه دوی | دروغژن دي .

او كه دوی دنيا ته واپس هم كړے شي نو بيا به هم هغه كار د نه كوی د كوم نه چه دوی منع كړے شوي وو او يقيناً دوی دروغژن دي

وَقَالُوْٓا اِنْ هِیَ اِلَّا حَیَاتُنَا الدُّنْیَا وَمَا نَحْنُ بِمَبْعُوْثِیْنَ ﴿۲۹﴾
او وائي | نه دي (څه نور) | مګر | دا دَ دُنیا ژوند زمونږ | او نه يُو مونږ ده | را اوچت کړے شوي
او دوي دو ټیل چه ژوند خو صرف هم دا دَ دُنیا ژوند دے او مونږ به دوباره (دَ قیامت په ورځ) نه پیدا کړے

وَلَوْ تَرٰٓی اِذْ وُقِفُوْا عَلٰی رَبِّهِمْ قَالَ اَلَیْسَ هٰذَا
او کاش! | ته وُوینے | هر کله چه وُدرولے شي | دَ خپل رب مخکښے | وُ به فرمائي الله | آیا نه دي | دا
او کاش! چه ته وُګورے کوم وخت چه دوي دَ خپل رب مخکښے ودرولے شي، الله تعالیٰ به وُ فرمائي آیا دا ژوندون

بِالْحَقِّ قَالُوْا بَلٰی وَرَبِّنَا قَالَ فَذُوْقُوا الْعَذَابَ بِمَا
رښتیا | دوي به وُ وائي | ولے نه | قسم دے په رب زمونږ | هغه به وُ فرمائي | نو وُ څکئ | دا عذاب | څکه چه
حق نه دے؟ وُ به وائي ولے نه زمونږ دَ رب قسم (حق دے) الله تعالیٰ به وُ فرمائي چه دَ خپل کفر (په سزا) کښے

كُنْتُمْ تَكْفُرُوْنَ ﴿۳۰﴾ قَدْ خَسِرَ الَّذِیْنَ كَذَّبُوْا بِلِقَآءِ اللّٰهِ ؕ ع ۱۰ ۳ ۹
تاسو به انکار کولو | بیشکه په نقصان کښے پاتے شول | هغه خلق کوم چه | دروغ وګڼړلو | ملاقات دَ الله
اوس دَ عذاب مزه وُڅکئ، بیشکه هغه خلق په تاوان کښے پاتے شول چه خدا سره دَ ملاقات خبره ئے دروغ

حَتّٰٓی اِذَا جَآءَتْهُمُ السَّاعَةُ بَغْتَةً قَالُوْا یٰحَسْرَتَنَا عَلٰی مَا
ترڅو چه | هر کله راشي په دوي | قیامت | ناګهانه | وُ به وائي دوي | افسوس دے | په دے چه
ګڼړله، ترڅو چه هر کله په دوي باندې قیامت ناګهانه راشي نو وائي به چه هلئے افسوس دے مونږ په دے

فَرَّطْنَا فِیْهَا ۙ وَهُمْ یَحْمِلُوْنَ اَوْزَارَهُمْ عَلٰی ظُهُوْرِهِمْ ؕ
مونږ کوتاهي وکړه | په دے (باره) کښے | او دوي | به پورته کړي وي | خپل پیټي | په خپلو شا ګانو
معامله کښے خو مره کوتاهي کړے ده او دَ خپلو ګناهونو پیټے به ئے به خپلو شا ګانو باندِ را بار کړے وي.

اَلَا سَآءَ مَا یَزِرُوْنَ ﴿۳۱﴾ وَمَا الْحَیٰوةُ الدُّنْیَآ اِلَّا لَعِبٌ وَّ
واورئ | بد دي | هغه څه چه دوي ئے پورته کوي | او نه دے | ژوند دَ دُنیا | مګر | لوبے | او
واورئ! دوي به ډیر خراب پیټے پورته کړے وي او دَ دنیا ژوند خو نور څه نه دے بس یوه لوبه تماشا

لَهْوٌ ؕ وَلَلدَّارُ الْاٰخِرَةُ خَیْرٌ لِّلَّذِیْنَ یَتَّقُوْنَ ؕ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿۳۲﴾
مشغولا ده | او البته کور | دَ آخرت | ډیر ښه دے | هغو خلقو له | چه پرهیزګاري | آیا نه پوهیږي
ده، البته دَ آخرت کور دَ هغه خلقو دَ پاره ډیر ښه دے چه پرهیزګاره دي آیا تاسو عقل نه لرئ

قَدْ نَعْلَمُ اِنَّهٗ لَیَحْزُنُكَ الَّذِیْ یَقُوْلُوْنَ فَاِنَّهُمْ لَا یُكَذِّبُوْنَكَ
بیشکه مونږ پوهیږو | چه ضرور غمژن کوي تا | هغه څه چه | دوي وائي | پس بیشکه دوي | نه دروغژن کوي تا
(اے پیغمبره!) مونږ ته ښه معلومه ده چه دَ دوئ په خبرو ته غمژن کیږے لیکن په حقیقت کښے دوي تا دروغژن

وَلٰكِنَّ الظّٰلِمِیْنَ بِاٰیٰتِ اللّٰهِ یَجْحَدُوْنَ ﴿۳۳﴾ وَلَقَدْ كُذِّبَتْ رُسُلٌ
بلکه (دا) ظالمان (خو) | دَ الله دَ آیتونو نه | انکار کوي | او بیشکه دروغژن کړے شوي وو | نور پیغمبران (هم)
نه ګڼړي بلکه دا ظالمان دَ الله تعالیٰ دَ آیتونو نه انکار کوي او بیشکه له تا نه وړاندِ هم پیغمبران

مِّنْ قَبْلِكَ فَصَبَرُوْا عَلٰى مَا كُذِّبُوْا وَاُوْذُوْا حَتّٰٓى اَتٰىهُمْ

له تانه وړاندې | پس هغوی صبر وکړو | په دروغژن بللے کیدلو | او تکلیف ورته ورسولے شو | تر دے چه | ورسیدو دوی ته

دروغژن گڼلے شوی وو خو په دروغژن کولو او په تکلیفونو باندې هغوی صبر وکړو، تر دے چه زمونږ مدد

نَصْرُنَا ۚ وَلَا مُبَدِّلَ لِكَلِمٰتِ اللّٰهِ ۚ وَلَقَدْ جَآءَكَ مِنْ نَّبَاِى

زمونږ مدد | او نشته هیڅوک بدلوونکے | د الله د خبرے | او بیشکه راغلی دی تاته | خبرونه

ورته ورسیدو او د الله تعالیٰ خبرے هیڅوک نه شی بدلولے ، او د پخوانو پیغمبرانو څه حالات تاته رارسیدلی

الْمُرْسَلِيْنَ ﴿٣٤﴾ وَاِنْ كَانَ كَبُرَ عَلَيْكَ اِعْرَاضُهُمْ فَاِنِ اسْتَطَعْتَ

(د هغه) رسولانو | او که چرے وی | درون | په تا باندې | د دوی مخ اړول | نو که چرته کولے شے

او (اے نبیﷺ) که د دے خلقو بے رُخی برداشت کولے نه شے ، نو که وس دے رسی نو

دی

اَنْ تَبْتَغِىَ نَفَقًا فِى الْاَرْضِ اَوْ سُلَّمًا فِى السَّمَآءِ فَتَاْتِيَهُمْ

چه ولټوے ته | سورے | په زمکه کښے | یا اندرپایه | په اسمان کښے | بیا ته راوړے دوی ته

په زمکه کښے چرته یو سُرنګ ولټوه ، یا اسمان ته یوه اندرپایه ولګوه او دوی له د یو نخښے راوړ

بِاٰيَةٍ ۚ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَجَمَعَهُمْ عَلَى الْهُدٰى فَلَا تَكُوْنَنَّ

(څه) نخښه | او که چرے غوښتلے الله | نو جمع کړی به ئے وو دوی | په هدایت باندې | پس مه کیږه ته

کوشش وکړه او که الله تعالیٰ غوښتلے نو ټول به ئے په هدایت یو ځائے کړی وو ، نو د ناپوهه خلقو په

مِنَ الْجٰهِلِيْنَ ﴿٣٥﴾ اِنَّمَا يَسْتَجِيْبُ الَّذِيْنَ يَسْمَعُوْنَ ؕ وَالْمَوْتٰى

له جاهلانو نه | بیشکه چه قبلوی | هغه خلق چه | اوری | او مړی

شان مه کیږه د (حق تعلیم) هغه څوک منی چه خبرے ته غوږ ایږدی او (پاتے شول) مړی

يَبْعَثُهُمُ اللّٰهُ ثُمَّ اِلَيْهِ يُرْجَعُوْنَ ﴿٣٦﴾ وَقَالُوْا لَوْلَا نُزِّلَ عَلَيْهِ

راپورته به کړی دوی | الله | بیا به هم د هغه طرفته | ورګرځولے شی | او دوی وائی | ولے نازله نه شوه | په ده باندې

نو هغوی خو به الله تعالیٰ د قبرونو نه راوچت کړی او هغه ته به پیش کړے شی . او دوی وائی چه ده ته ولے د الله تعالیٰ

اٰيَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ ؕ قُلْ اِنَّ اللّٰهَ قَادِرٌ عَلٰٓى اَنْ يُّنَزِّلَ

(څه) نخښه | د ده د رب له طرفه | ووایه | بیشکه | الله | قادر دے | په دے چه | نازله کړی

د طرف نه نخښه نه راځی . ته ووایه چه الله تعالیٰ د نخښے را کوزولو پوره پوره طاقت

اٰيَةً وَّلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٣٧﴾ وَمَا مِنْ دَآبَّةٍ فِى الْاَرْضِ

نخښه | او لیکن | اکثر له دوی نه | نه پوهیږی | او نشته | (هیڅ) ځناور (تلونکے) | په زمکه کښے

لری خو اکثر خلق په دے نه پوهیږی - او د زمکے په مخ دلے ځناور نشته

وَلَا طٰٓئِرٍ يَّطِيْرُ بِجَنَاحَيْهِ اِلَّآ اُمَمٌ اَمْثَالُكُمْ ؕ مَا فَرَّطْنَا

او نه (څه) مارغه | چه الوزی | په خپلو دواړو وزرو | مګر دوی جماعتونه دی | ستاسو په شان | مونږ کمے نه دے کړے

او نه (په هوا کښے) داسے مارغه شته چه په وزرو الوزی مګر دا ټول ستاسو غوندې (مخلوق) امتونه دی مونږ د دے نوشته

النصف

وقف منزل عند البعض على يسمعون

وقف غفران

فِي الْكِتٰبِ مِنْ شَيْءٍ ثُمَّ اِلٰى رَبِّهِمْ يُحْشَرُوْنَ ﴿۳۸﴾ وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا
په کتاب کښې | دَ څهٔ خبره | بیا | به خپل رب ته | جمع کولے شي | او کوم چه | دروغژن کړي دي
په کتاب کښې هیڅ کے نهٔ دے کړے او بیا به دا ټول خپل خدائے ته پیش کړے شي. او چا چه زمونږ نخښې دروغ
نصيبه ليکلو کښې هيڅ کے نهٔ دے کړے
بِاٰيٰتِنَا صُمٌّ وَّبُكْمٌ فِي الظُّلُمٰتِ ۗ مَنْ يَّشَاِ اللّٰهُ يُضْلِلْهُ ۗ وَمَنْ
زمونږ ایتونه | کانړه دي | او ګونګیان دي | په تیارو کښې دي | څوک چه وغواړي | الله | ګمراه ئے کړي | او څوک چه
وګڼړلے هغوی کانړهٔ او ګونګیان او په تیارو کښې پراتهٔ دي، الله چه د چا په حقله وغواړي نو ګمراه ئے کړي او د چا په
يَّشَاْ يَجْعَلْهُ عَلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿۳۹﴾ قُلْ اَرَءَيْتَكُمْ اِنْ اَتٰىكُمْ
وغواړي | کړي هغه | په نیغه لاره باندې | ووایه | ایا کتلي دي تاسو | که چرې راشي تاسو ته
حقله چه وغواړي نو په سمه لاره ئے روان کړي. ووایه چه فکر وکړئ او بیا ووایئ چه که په تاسو
عَذَابُ اللّٰهِ اَوْ اَتَتْكُمُ السَّاعَةُ اَغَيْرَ اللّٰهِ تَدْعُوْنَ ۚ اِنْ كُنْتُمْ
عذاب د الله | یا راشي تاسو ته | قیامت | نو ایا د الله نه سوا | به بل څوک رابلئ | که چرے تاسو
د الله عذاب راشي یا په تاسو قیامت راشي نو ایا تاسو به د الله تعالیٰ نه سوا بل چا ته اواز کوئ؟ (ووایئ) که تاسو
صٰدِقِيْنَ ﴿۴۰﴾ بَلْ اِيَّاهُ تَدْعُوْنَ فَيَكْشِفُ مَا تَدْعُوْنَ اِلَيْهِ
رښتونی یئ | نه بلکه | خاص هغه | به تاسو رابلئ | بیا هغه لرې کوي | هغه (تکلیف) د کوم د پاره چه تاسو هغه رابلئ
رښتونی یئ؟ نه بلکه هغه وخت تاسو یوازې خدائے ته اواز کوئ نو که الله وغواړي نو هغه مصیبت به درنه لرې
اِنْ شَآءَ وَتَنْسَوْنَ مَا تُشْرِكُوْنَ ﴿۴۱﴾ وَلَقَدْ اَرْسَلْنَآ اِلٰى اُمَمٍ ع ۱۱ ۱۰
که چرې هغه وغواړي | او تاسو هېروئ | هغه څهٔ چه | تاسو ئے شریکوئ | او بیشکه مونږ لیږلي دي (رسولان) | امتونو طرف ته
کړي، او په داسې موقع کښې خپل شریکان درنه هېر شي. او مونږ تا نه وړاندې نورو قومونو ته پیغمبران
مِّنْ قَبْلِكَ فَاَخَذْنٰهُمْ بِالْبَاْسَآءِ وَالضَّرَّآءِ لَعَلَّهُمْ يَتَضَرَّعُوْنَ ﴿۴۲﴾
له تا نه وړاندې | بیا مونږ ونیول دوی | په سختئ | او تکلیف کښې | د پاره د دے چه دوی | عاجزي وکړي
ولیږل، نو بیا مو هغوی په سختو او مصیبتونو کښې راګیر کړل، چه عاجزي شروع کړي.
فَلَوْلَآ اِذْ جَآءَهُمْ بَاْسُنَا تَضَرَّعُوْا وَلٰكِنْ قَسَتْ قُلُوْبُهُمْ
بیا ولې ونهٔ شو | کله چه | راغے دوی ته | زمونږ عذاب | نو عاجزي وکړه دوی | بلکه | سخت شول | د دوی زړونه
بیا چه کله زمونږ عذاب په دوی راغلو نو دوی زمونږ مخکښې ولې فریاد ونهٔ کړو، بلکه د دوی زړونه سخت پاتې شو
وَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۴۳﴾ فَلَمَّا نَسُوْا
او ښائسته کړل | دوی د پاره | شیطان | هغه (کارونه) | کوم چه دوی کول | بس هر کله چه | هېر کړل دوی
او شیطان دوی ته د دوی (خراب) عملونه ښائسته کړي وښودل. بیا هر کله چه دوی هغه نصیحت هېر
مَا ذُكِّرُوْا بِهٖ فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ اَبْوَابَ كُلِّ شَيْءٍ ۗ حَتّٰى اِذَا
هغه څهٔ چه نصیحت کړے شوے وو دوی ته په هغې سره | نو پرانستلے مونږ | په دوی | دروازے | د هر څیز | ترڅو چه | هر کله
کړو کوم چه دوی ته شوے وو نو مونږ په دوی د هر څیز دروازے پرانستلے، ترڅو چه دوی زمونږ

فَرِحُوْا بِمَآ اُوْتُوْٓا اَخَذْنٰهُمْ بَغْتَةً فَاِذَا هُمْ مُّبْلِسُوْنَ ۴۴ فَقُطِعَ

دوی خوشحاله شول | هغه څه چه دوی ته ورکړے شول | نو مونږ ونیول دوی | ناګهانه | بیا دغه وخت دوی نا اُمیده شول | پس پریکړے شوه

په ورکړو باندې بښنه خوشحاله شول نو مونږ دوی ناګهانه ونیول او دوی نا اُمیده پاتے شول ، بیا د دے ظالمانو

دَابِرُ الْقَوْمِ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا ؕ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۴۵

جرړه د (دے) قوم | کوم چه | ظلم کړے وو | او ټوله ثنا | الله لره ده | (چه) رب دے د ټولو جهانونو

خلقو جرړه پریکړے شوه ، او ټول تعریف الله لره دے چه پروردګار د ټول مخلوق دے.

قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ اَخَذَ اللّٰهُ سَمْعَكُمْ وَاَبْصَارَكُمْ وَخَتَمَ

ته ووایه | څه خیال دے ستاسو | که چرے | واخلی | الله | اوربدل ستاسو | او سترګے ستاسو | او مهر ووهی

(اے پیغمبره!) ووایه چه تاسو چرے په دے خبره فکر کړے دے چه که الله تعالیٰ ستاسو نه غوږن او سترګے واخلی

عَلٰى قُلُوْبِكُمْ مَّنْ اِلٰهٌ غَيْرُ اللّٰهِ يَاْتِيْكُمْ بِهٖ ؕ اُنْظُرْ كَيْفَ

ستاسو په زړونو | نو څوک دے بل معبود | سوا د الله نه | چه درکړی تاسو ته | دغه څیزونه | وګوره | څنګه

او په زړونو د ستاسو مهر ووهی نو د الله تعالیٰ نه سوا بل څوک معبود شته چه دا څیزونه درله بیرته درکړی ، ګوره مونږه

نُصَرِّفُ الْاٰيٰتِ ثُمَّ هُمْ يَصْدِفُوْنَ ۴۶ قُلْ اَرَءَيْتَكُمْ

مونږ بیا بیا بیانوو | اَیتونه | بیا (هم) | دوی | مخ اړوی | ووایه | آیا کتلی دی تاسو

دوی ته څنګه خپل اَیتونه بیا بیا بنایو او دوی ترے نه بیا هم مخ اړوی - ورته ووایه چه تاسو چرے فکر کړے

اِنْ اَتٰىكُمْ عَذَابُ اللّٰهِ بَغْتَةً اَوْ جَهْرَةً هَلْ يُهْلَكُ اِلَّا

که چرے راشی تاسو ته | عذاب | د الله | ناګهانه | یا په ښکاره | نو آیا | هلاک به شی څوک (نور) | سوا

دے که د الله تعالیٰ د طرف نه په تاسو باندې ناګهانه یا په ښکاره عذاب راشی ، نو آیا د ظالمانو نه سوا نور خلق

الْقَوْمُ الظّٰلِمُوْنَ ۴۷ وَمَا نُرْسِلُ الْمُرْسَلِيْنَ اِلَّا مُبَشِّرِيْنَ وَمُنْذِرِيْنَ ۚ

د قوم | د ظالمانو نه | او نه رالیږو مونږ | رسول | مګر زیرے ورکوونکی | او ویروونکی

به یکښې هلاکیږی ؟ او مونږ خو پیغمبران په دے غرض لیږو چه نیکانو ته زیرے ورکړی او بدانو ووېروی

فَمَنْ اٰمَنَ وَاَصْلَحَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ۴۸

پس څوک چه | ایمان راوړی | او اصلاح وکړی | نو نه به څه ویره وی | په دوی باندې | او نه | دوی | به غمژن وی

نو څوک چه د هغوی خبره ومنی او خپل عمل سم کړی نو په هغوی به نه ویره راځی او نه به چرے غمژن کیږی

وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا يَمَسُّهُمُ الْعَذَابُ بِمَا كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ ۴۹

او کوم خلق چه | دروغ وګڼل | آیتونه زمونږ | وبه رسیږی دوی ته | عذاب | څکه چه | دوی نافرمانی کوله

او څوک چه زمونږ آیتونه دروغژن وګڼړی هغوی ته به د هغوی د نافرمانۍ په وجه عذاب ورکولے شی ،

قُلْ لَّآ اَقُوْلُ لَكُمْ عِنْدِيْ خَزَآئِنُ اللّٰهِ وَلَآ اَعْلَمُ الْغَيْبَ

ووایه | نه وایم زه | تاسو ته | چه ماسره | خزانے دی | د الله | او نه | پوهیږم زه | په غیبو باندې

(اے پیغمبره!) ورته ووایه چه زه درته دا نه وایم چه ماسره د الله خزانے دی او نه دا چه زه په غیبو باندې خبریم

وَلَآ اَقُوْلُ لَكُمْ اِنِّىْ مَلَكٌ ۚ اِنْ اَتَّبِعُ اِلَّا مَا يُوْحٰٓى اِلَىَّ ؕ

اونه زه وایم | تاسوته | چه زه فرښته یم | زه تابعداري نه کوم | مګر د هغه څه چه وحي نے کولے شي | ماته

اونه درته دا وایم چه زه فرښته یم ، زه خو بس په هغه وحي پسے روان یم چه ماته رالیږلے شي ،

قُلْ هَلْ يَسْتَوِى الْاَعْمٰى وَالْبَصِيْرُ ؕ اَفَلَا تَتَفَكَّرُوْنَ ⑤٠

ووایه | ایا برابر دے | ړوند | او بینا | ایا تاسو فکر نه کوئ ؟

ووایه چه ایا ړوند او بینا دواړه یو برابر کیدے شي؟ ایا تاسو دومره قدرے فکر هم نه کوئ

وَاَنْذِرْ بِهِ الَّذِيْنَ يَخَافُوْنَ اَنْ يُّحْشَرُوْٓا اِلٰى رَبِّهِمْ لَيْسَ

او ووېروه په دے قرآن سره | هغه خلق | چه ویریږي | چه | جمع به کړے شي | خپل رب ته | نه به وي

او هغه خلق د دے (قرآن) په ذریعه خبردار کړه کوم چه د دے خبرے نه ویریږي چه دوی به د الله په وړاندے راجمع کولے شي،

لَهُمْ مِّنْ دُوْنِهٖ وَلِيٌّ وَّلَا شَفِيْعٌ لَّعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ ⑤١

دوی د پاره | د الله نه سوا | (څوک) دوست | اونه (څوک) شفاعت کوونکے | د پاره د دے چه دوی | پرهیزګاري وکړي

او د الله تعالیٰ نه سوا به د دوی دوست او سفارش کوونکے هیڅوک نه وي، پکار دي چه دوی پرهیزګاره شي

وَلَا تَطْرُدِ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَدٰوةِ وَالْعَشِىِّ يُرِيْدُوْنَ

او مه شړه | هغه خلق | چه بللي | خپل رب | صبا | او ماښام | غواړي

او هغه خلق د خپل ځان نه مه لرے کوه چه سحر ماښام خپل رب یادوي او د هغه رضامندي

وَجْهَهٗ ؕ مَا عَلَيْكَ مِنْ حِسَابِهِمْ مِّنْ شَىْءٍ وَّمَا مِنْ حِسَابِكَ

مخ د هغه | نشته دے په تا باندِ | د دوی له حساب نه | څه شیز | او نه | ستا له حساب نه

غواړي ، نه د هغوی حساب ستا په ذمه دے ، او نه ستا حساب د هغوی

عَلَيْهِمْ مِّنْ شَىْءٍ فَتَطْرُدَهُمْ فَتَكُوْنَ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ ⑤٢ وَكَذٰلِكَ

په دوی باندِ | څه شیز | چه ته دوی لرے کړے | پس شے به ته | له ظالمانو نه | او دغه شان

په ذمه دے ، (داسے ونه شي چه) ته دوی لرے کړے او ته د نامناسبه کارکوونکو نه شے . دغه شان

فَتَنَّا بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ لِّيَقُوْلُوْٓا اَهٰٓؤُلَآءِ مَنَّ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ

ازمایلي مونږ | ځنے خلق | په ځنو باندِ | چه دوی ووائي | ایا هم دا دي | چه احسان کړے دے الله | په دوی باندِ

مونږ دوی د یو بل په ذریعه په ازمیښت کښے اچولي دي چه دوی دا ووائي چه نښه هغه دا خلق دے چه الله زمونږ په

مِّنْۢ بَيْنِنَا ؕ اَلَيْسَ اللّٰهُ بِاَعْلَمَ بِالشّٰكِرِيْنَ ⑤٣ وَاِذَا جَآءَكَ

په مونږ کښو کښے | ایا نه دے الله | ښه پوهه | په شکرګذارو باندِ | او هر کله چه | راشي تاته

مینځ کښے په دوی باندِ مهرباني کړے ده ؟ ایا الله په خپلو شکرګذارو بندګانو په ښه شان نه پوهیږي؟ (اے نبي!) کله چه تاته

الَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِاٰيٰتِنَا فَقُلْ سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ كَتَبَ رَبُّكُمْ

هغه خلق | چه ایمان لري | زمونږ په ایتونو | نو ووایه | سلام (دے) | په تاسو باندِ | لازمه کړے ده | رب ستاسو

هغه خلق راشي چه زمونږ ایتونه مني نو هغوی ته ووایه چه په تاسو سلام وي ستاسو رب په خپل ځان باندِ

عَلٰى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ ۙ اَنَّهٗ مَنْ عَمِلَ مِنْكُمْ سُوْٓءًۢا بِجَهَالَةٍ ثُمَّ

په خپل ځان | مهرباني | داچه څوک | عمل وکړي | له تاسو نه | بد | په بې علمۍ کښې | بیا

رحم لازم کړے دے ، په تاسو کښې څوک چه په نادانۍ بد وکړي ، بیا وروستو توبه

تَابَ مِنْۢ بَعْدِهٖ وَاَصْلَحَ فَاَنَّهٗ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿٥٤﴾ وَكَذٰلِكَ

توبه وکړي | له دے نه پس | او عمل ښهٔ کړي | نو بیشکه هغه | بخښونکے | مهربان دے | او هم دغه شان

وُباسي ، او خپل عمل سم کړي نو الله تعالیٰ بخښونکے مهربان دے ۔ او دغه شان

ع ٥ ١٢ نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ وَلِتَسْتَبِيْنَ سَبِيْلُ الْمُجْرِمِيْنَ ﴿٥٥﴾ قُلْ

مونږ په تفصیل سره بیانوو | آیتونه | او دَپاره دَ دے چه ښکاره شي | لاره | دَ ظالمانو | ووایه

مونږ آیتونه په تفصیل سره بیانوو چه دَ مجرمانو لاره بالکل (جدا) څرګنده شي ورته ووایه

اِنِّيْ نُهِيْتُ اَنْ اَعْبُدَ الَّذِيْنَ تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ؕ قُلْ

بیشکه زهٔ منع کړے شوے یم | چه | زهٔ عبادت وکړم | دَ هغو (کوم چه) | تاسو بلئ | دَ الله نه سوا | ووایه

چه زهٔ دَ هغه معبودانو دَ عبادت نه منع کړے شوے یم کوم چه تاسو دَ الله تعالیٰ نه سوا بلئ ، ته ووایه

لَّاۤ اَتَّبِعُ اَهْوَآءَكُمْ ۙ قَدْ ضَلَلْتُ اِذًا وَّمَاۤ اَنَا

زهٔ پیروي نهٔ کوم | ستاسو دَ خواهشاتو | بیشکه زهٔ به ګمراه شم په دغه وخت کښے | او | نهٔ به یم زهٔ

چه زهٔ به ستاسو په خواهشاتو پاندې نهٔ چلیږم که داسے وکړم نو ګمراه به شم او په سمه لار به

مِنَ الْمُهْتَدِيْنَ ﴿٥٦﴾ قُلْ اِنِّيْ عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّيْ وَ

له لار موندونکو نه | ووایه | بیشکه زهٔ | په دلیل باندے یم | دَ خپل رب له طرفه نه | او

پاتے نهٔ شم ، ورته ووایه چه زهٔ دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه په واضح دلیل قایم ولاړ یم ، او

كَذَّبْتُمْ بِهٖ ؕ مَا عِنْدِيْ مَا تَسْتَعْجِلُوْنَ بِهٖ ؕ اِنِ الْحُكْمُ اِلَّا

او تاسو دروغ ګڼلو هغه | نشته دے ماسره | هغه څهٔ چه په تادۍ ئے غواړئ تاسو | نهٔ دے حکم | مګر

تاسو دَ هغے نه انکار کوئ او س دَ هغے (عذاب) اختیار زما په لاس کښے نهٔ دے په کوم پسے چه تاسو تلوسه کوئ فیصله یوازے

لِلّٰهِ ؕ يَقُصُّ الْحَقَّ وَهُوَ خَيْرُ الْفٰصِلِيْنَ ﴿٥٧﴾ قُلْ لَّوْ اَنَّ عِنْدِيْ

دَ الله دے | هغه بیانوي | حقه خبره | او هم هغه دے | دَ ټولو نه ښهٔ | فیصله کوونکے | ووایه | که چرے | وے ماسره

دَ الله په لاس کښے ده هغه حقے خبرے بیانوي او هغه غوره فیصله کوونکے دے ۔ ورته ووایه چه که هغه (عذاب)

مَا تَسْتَعْجِلُوْنَ بِهٖ لَقُضِيَ الْاَمْرُ بَيْنِيْ وَبَيْنَكُمْ ؕ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ

هغه دَ کوم چه تاسو تادي کوئ | نو فیصله شوے به وه | معامله | زما او ستاسو تر مینځه | او الله | ښهٔ پوهه دے

زما په لاس کښے وے په کوم پسے چه تاسو تلوسه کوئ نو زما او ستاسو تر مینځه به پخوا فیصله شوے وه او الله تعالیٰ ظالمان

بِالظّٰلِمِيْنَ ﴿٥٨﴾ وَعِنْدَهٗ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَاۤ اِلَّا هُوَ ؕ

په ظالمانو | او هغهٔ سره دي | کنجیانے | دَ غیبو | چه نهٔ پوهیږي په هغے (څوک) | سوا دَ هغهٔ نه

ډیر ښهٔ پیږني ، او دَ غیب کنجیانے خو هغه سره دي چه بې دَ هغهٔ نه پرته بل هیڅوک خبر نهٔ دے

وَيَعْلَمُ مَا فِى الْبَرِّ وَالْبَحْرِ ؕ وَمَا تَسْقُطُ مِنْ وَّرَقَةٍ اِلَّا يَعْلَمُهَا

او هغه پوهه دے | په هغه څه | چه په اوچه | او دریاب کښے دے | او نه | پریوځی | څه پاڼره | مګر هغه پوهه دے په هغې

او هغه پوهه دے په هغه څه چه په اوچه او دریاب کښے دے او څه نه دی پرېوځی چه هغه پرے خبر نه وی

وَلَا حَبَّةٍ فِى ظُلُمٰتِ الْاَرْضِ وَلَا رَطْبٍ وَّلَا يَابِسٍ اِلَّا فِى كِتٰبٍ مُّبِيْنٍ ﴿٥٩﴾

او نه څه دانه ده | په تیارو کښے | د زمکے | او نه څه لوند څیز | او نه څه اوچ | مګر (هغه) په روښانه کتاب کښے موجود دی

او د اوچے او د لوندے هر څیز ورته ښه معلوم دے او د اونے نه داسے پاڼره نه راپرېوځی چه هغه پرے خبر نه وی

او د زمکے په تیارو کښے موجود څه دانه یا څه لوند یا اوچ څیز داسے نشته چه په روښانه کتاب (لوح محفوظ) کښے لیکلے موجود نه وی

وَهُوَ الَّذِىْ يَتَوَفّٰىكُمْ بِالَّيْلِ وَيَعْلَمُ مَا جَرَحْتُمْ بِالنَّهَارِ

او هم هغه دے (کوم چه) | قبض کوی ستا (روحونه) | د شپے | او پوهیږی | په هغه څه چه تاسو کوئ | د ورځے

او الله هغه ذات دے چه تاسو د شپے (د خوب په صورت کښے) په قبضه کښے اخلی او د ورځے چه تاسو څه کوئ په هغې هم پوهه دے

ثُمَّ يَبْعَثُكُمْ فِيْهِ لِيُقْضٰٓى اَجَلٌ مُّسَمًّى ۚ ثُمَّ اِلَيْهِ مَرْجِعُكُمْ

بیا هغه راپاڅوی تاسو | په هغې کښے | چه پوره کړے شی | وخت | مقرر | بیا د هغه طرف ته دی | ستاسو واپس تلل

بیا تاسو ټول به الله تعالیٰ ته پسته ځئ بیا په صبا د دنیا کار وزګار ته راپاڅوی د پاره د دے چه مقرره نیټه پوره شی، بیا تاسو ټول به الله تعالیٰ ته پسته ځئ

ثُمَّ يُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿٦٠﴾ وَهُوَ الْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهٖ

بیا به هغه وښائی تاسو ته | هغه څه چه تاسو به کول | او هغه دے | غالب | د پاسه | د بندګانو خپلو

نو هغه به درته وښائی چه تاسو څه کارونه کول۔ او هغه په خپلو بندګانو پوره پوره قدرت لری

وَيُرْسِلُ عَلَيْكُمْ حَفَظَةً ۭ حَتّٰٓى اِذَا جَآءَ اَحَدَكُمُ الْمَوْتُ

او رالیږی | په تاسو باندے | نګرانے (فرښتے) | تر دے چه | کله راشی | چا ته په تاسو کښے | مرګ

او هغه په تاسو نګرانے (فرښتے) رالیږی، تر دے چه په تاسو کښے د چا د مرګ وخت راشی نو زمونږ

تَوَفَّتْهُ رُسُلُنَا وَهُمْ لَا يُفَرِّطُوْنَ ﴿٦١﴾ ثُمَّ رُدُّوْٓا

(نو) قبض کوی (د) هغه (روح) | زمونږ رالیږلے شوی (فرښتے) | او دوی | کوتاهی نه کوی | بیا | به دوی وګرځولے شی

رالیږلے (فرښتے) د هغه روح قبض کوی او هغوی (په خپل کار کښے) هیڅ کوتاهی نه کوی۔ بیا به دا ټول الله ته

اِلَى اللّٰهِ مَوْلٰىهُمُ الْحَقِّ ۭ اَلَا لَهُ الْحُكْمُ ۣ وَهُوَ اَسْرَعُ

د الله طرف ته | چه د دوی مالک دے | په حقه خبر شئ | د هغه دے | حکم | او هغه دے | ډیر زر

پستنه لاړ شی چه په حقه د دوی مولیٰ دے، خبر شئ چه حکم بس یوازے د هغه چلیږی او هغه په حساب اخستو

الْحٰسِبِيْنَ ﴿٦٢﴾ قُلْ مَنْ يُّنَجِّيْكُمْ مِّنْ ظُلُمٰتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ

حساب اخستونکے | ووایه | څوک | خلاصے در کوی تاسو ته | له تیارو نه | د اوچے | او د دریاب

کښے ډیر تیز دے۔ ورته ووایه چه څوک دے؟ چه د اوچے او سمندر په تورو تیارو کښے تاسو د خطرے نه بچ کوی

تَدْعُوْنَهٗ تَضَرُّعًا وَّخُفْيَةً ۚ لَئِنْ اَنْجٰىنَا مِنْ هٰذِهٖ لَنَكُوْنَنَّ

تاسو بلئ هغه | په عاجزئ | او په پټه | که چرے | هغه مونږ له خلاصے راکړی | د دے (مصیبت) نه | نو خامخا به یو مونږ

چه تاسو ئے په عاجزئ سره او په پټه پټه بلئ۔ (او وائی چه) که چرے مونږ الله د دے (مصیبت) نه بچ کړو نو مونږ

مِنَ الشّٰكِرِيْنَ ﴿٦٣﴾ قُلِ اللّٰهُ يُنَجِّيْكُمْ مِّنْهَا وَمِنْ كُلِّ كَرْبٍ
له شکر کوونکو نه | وُوایه | الله | خلاصے درکوی تاسو | له دے نه | او له هرے یوے سختئ نه
په ضرور د هغه شکرگزار یو، ته ووایه هم الله تعالیٰ تاسو د دے نه او د هر تکلیف نه خلاصوی ، بیا (هم)
ثُمَّ اَنْتُمْ تُشْرِكُوْنَ ﴿٦٤﴾ قُلْ هُوَ الْقَادِرُ عَلٰٓى اَنْ يَّبْعَثَ عَلَيْكُمْ
بیا (هم) تاسو شرک کوئی ۔ | وُوایه | هغه | قادر دے | په دے چه راولیږی هغه | په تاسو باندِ
تاسو شرک کوئی ۔ ورته ووایه چه هغه (الله تعالیٰ) په دِے خبره باندِ قادر دے چه په تاسو باندِ
عَذَابًا مِّنْ فَوْقِكُمْ اَوْ مِنْ تَحْتِ اَرْجُلِكُمْ اَوْ يَلْبِسَكُمْ شِيَعًا
(څه) عذاب | ستاسو د پاسه نه | یا ستاسو د ښپو د لاندِ نه | یا جمع کړی تاسو | ټولی ټولی
د بره نه یا ستاسو د قدمونو د لاندِ نه عذاب راولیږی ، یا تاسو په فرقو کښے تقسیم کړی
وَّيُذِيْقَ بَعْضَكُمْ بَاْسَ بَعْضٍ ؕ اُنْظُرْ كَيْفَ نُصَرِّفُ الْاٰيٰتِ
او وڅکوی | له تاسو نه څینو ته | جنګ د څینو | وګوره | څنګه | بیا بیا بیانوو | آیتونه
او په تاسو د یو بل د لاسه د جګړے مزه وڅکوی ، وګوره مونږ څنګه په بیل بیل شان خپلے نخښے بیانوو
لَعَلَّهُمْ يَفْقَهُوْنَ ﴿٦٥﴾ وَكَذَّبَ بِهٖ قَوْمُكَ وَهُوَ الْحَقُّ ؕ قُلْ لَّسْتُ
د پاره د دے چه دوی | پوهه شی | او دروغژن کړو | هغه | ستا قوم | او هغه حق دے | ووایه | زهٔ نهٔ یم
شاید چه دوی پرے پوهه شی ۔ او ستا قوم (کفار د مکے) دا قرآن دروغژن کړو حال دا دے چه دا رښتونے دے ووایه چه
عَلَيْكُمْ بِوَكِيْلٍ ؕ ﴿٦٦﴾ لِكُلِّ نَبَاٍ مُّسْتَقَرٌّ ز وَّسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ﴿٦٧﴾
په تاسو باندِ | (څهٔ) نګران | د پاره د هر خبر | (یو وخت) مقرر دے | او ډیر زر | به تاسو پوهه شئ
زهٔ ستاسو ذمه وار خو نهٔ یم ۔ د هر خبر (د واقع کیدو) یو وخت مقرر دے او تاسو به ډیر زر پوهه شئ
وَاِذَا رَاَيْتَ الَّذِيْنَ يَخُوْضُوْنَ فِيْٓ اٰيٰتِنَا فَاَعْرِضْ عَنْهُمْ حَتّٰى
او کله چه | تاسو ووینئ | هغه خلق | چه بحث کوی | زمونږ په آیتونو کښے | نو مخ واړوه | له دوی نه | تر دے چه
او هر کله چه ته ووینے چه خلق زمونږ په آیتونو باندِ نکته چینئ کوی نو د هغوئ نه یو اړخ ته شه تر دے چه (هغه
يَخُوْضُوْا فِيْ حَدِيْثٍ غَيْرِهٖ ؕ وَاِمَّا يُنْسِيَنَّكَ الشَّيْطٰنُ فَلَا تَقْعُدْ
دوی لګیا شی | په څهٔ بله خبره کښے | او که چرے هیر کړی له تا نه | شیطان | نو مهٔ کښینه
بحث پریږدی او) په بله خبره کښے مشغول شی ، او که چرے شیطان درنه (دا نصیحت) هیر کړی (او ته په دوی کښے
بَعْدَ الذِّكْرٰى مَعَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٦٨﴾ وَمَا عَلَى الَّذِيْنَ يَتَّقُوْنَ
پس د را یادیدو | د ظالمانو خلقو سره | او نشته دے | په هغو خلقو (چه) ډیر یږی (له الله نه)
کښینے) نو د یاد راتلو نه پس د دا سے ظالمانو سره مهٔ کښینه ، او کوم خلق چه پرهیزګاره دی په هغوی باندِ
مِنْ حِسَابِهِمْ مِّنْ شَيْءٍ وَّلٰكِنْ ذِكْرٰى لَعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ ﴿٦٩﴾
د هغو (جګړه کوونکو) له حساب نه | څهٔ څیز | لیکن | (صرف) نصیحت کول | چه دوی | پرهیزګاره شی ۔
د هغوی د حساب کتاب هیڅ ذمه واری نشته البته نصیحت کول د هغوی په ذمه دی چه شاید (دا ظالمان هم) د الله تعالیٰ

وَذَرِ الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا دِيْنَهُمْ لَعِبًا وَّلَهْوًا وَّغَرَّتْهُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا

اوپریږده | هغه خلق | چه جوړکړے دے دوی | خپل دین | لوبے | او تو تے | او دوکه ورکړه دوی ته | ژوند دَ دنیا

نه دو بیریږی ، او هغه خلق پریږده چه دَ خپل دین نه ئے لوبه تماشا جوړه کړے ده او دوی دَ دنیا ژوند په دوکه کښے

وَذَكِّرْ بِهٖٓ اَنْ تُبْسَلَ نَفْسٌۢ بِمَا كَسَبَتْ ۖ لَيْسَ لَهَا

او نصیحت ورکړه | په دے (قرآن) سره | (د دے ډاره وی) چه هلاک شی څوک نفس | دَ خپلو کړو په بدله کښے | نشته دے | دَ هغه

غوروزولی دی او دَ دے (قرآن) په ذریعه ورته نصیحت کوه چه څوک دَ عملونو په وبال کښے داسے کیر نه شی چه بیا دَ الله

مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلِيٌّ وَّلَا شَفِيْعٌ ۚ وَاِنْ تَعْدِلْ كُلَّ عَدْلٍ لَّا يُؤْخَذْ

دَ الله | نه سوا | (څوک) دوست | او نه څوک سفارشی | او که چرے هغه ادا کړی | پوره پوره (تاوان) | نو وا به نه خستے شی

نه بغیر بل هیڅوک ئے ملګرے یا سفارشی نه وی او که هغه هر قسم له څیزونه په فدیه کښے ورکول غواړی نو قبلیږ

مِنْهَا ۗ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ اُبْسِلُوْا بِمَا كَسَبُوْا ۚ لَهُمْ شَرَابٌ مِّنْ حَمِيْمٍ

دَ هغه نه | هم دا دی هغه خلق چه | هلاک کړے شول | دَ خپلو خرابو کارونو په بدله کښے | دوی له څښل دی | له یشیدلو اوبو نه

به نه شی ، (ځکه چه) دا خلق به دَ خپلو عملونو په سزا کښے ګرفتار دوی ، دغه خلقو له به دَ انکار په وجه

وَّعَذَابٌ اَلِيْمٌۢ بِمَا كَانُوْا يَكْفُرُوْنَ ﴿٧٠﴾ قُلْ اَنَدْعُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ

او عذاب (به وی) | دردناک | په وجه دَ دے چه | دوی کفر کولو | ووایه | آیا مونږ وبلو | دَ الله نه سوا

یشیدلے اوبه دَ څښلو دَ پاره او دردناک عذاب ورکولے شی . (اے پیغمبره!) ووایه ، چه آیا مونږ الله پریږدو او هغه

مَا لَا يَنْفَعُنَا وَلَا يَضُرُّنَا وَنُرَدُّ عَلٰٓى اَعْقَابِنَا بَعْدَ اِذْ هَدٰىنَا اللّٰهُ

هغه چه نفع نه راکوی مونږ ته | او نه نقصان راکوی | او بیرته وګرځولے شو مونږ | په پوندو خپلو | پس له دے نه چه هدایت وکړو مونږ ته الله

معبودان وبلو چه نه نفع راکولے شی او نه نقصان ؟ او دَ دے نه پس چه الله مونږ ته سمه لار ښودلے ده شا طرف ته واپس لاړشو

كَالَّذِى اسْتَهْوَتْهُ الشَّيٰطِيْنُ فِى الْاَرْضِ حَيْرَانَ ۖ لَهٗٓ اَصْحٰبٌ

په شان دَ هغه چا | چه بے لارے کړے وی هغه | شیطانانو | په زمکه کښے | حیرانه پاتے شوے | دَ هغه | ملګری دی

دَ هغه چا په شان چه شیطان په ځنګل کښے بے لارے کړے وی او اریان دریان ګرځی په داسے حال کښے چه

يَّدْعُوْنَهٗٓ اِلَى الْهُدَى ائْتِنَا ۗ قُلْ اِنَّ هُدَى اللّٰهِ هُوَ الْهُدٰى ۚ

(چه) بلی هغه | سمے لارے طرف ته | چه راشه مونږ ته | ووایه | بیشکه | هدایت دَ الله | هدایت دے

ملګری ورته بلنه کوی چه زمونږ اړخ ته راځه ، سمه لار دا ده ورته ووایه چه سمه لار هغه ده چه الله تعالیٰ ئے ښائی

وَاُمِرْنَا لِنُسْلِمَ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٧١﴾ وَاَنْ اَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاتَّقُوْهُ ۚ

او مونږ ته حکم دے | چه فرمانبردار شو | دَ جهانونو دَ پروردګار | او دا چه | قایم کړو | مونځ | او ویره کوئ دَ هغه نه

او مونږ ته حکم شوے دے چه دَ ټول مخلوق دَ پروردګار حکم ومنو او دا چه تاسو مونځ کوئ او دَ الله تعالیٰ نه ویره کوئ

وَهُوَ الَّذِىٓ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ﴿٧٢﴾ وَهُوَ الَّذِىْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ

او دے هغه ذات دے | چه دَ ده طرف ته | به تاسو جمع کولے شئ | او هم هغه دے | چا چه | پیدا کړل | آسمانونه

او هم هغه ته به ټول پیش کیږئ - او الله تعالیٰ هغه ذات دے چه آسمانونه او زمکه ئے برحق

وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ ۭ وَيَوْمَ يَقُوْلُ كُنْ فَيَكُوْنُ ڛ قَوْلُهُ الْحَقُّ ۭ وَلَهُ الْمُلْكُ
او زمکه | په حق سره | او په کومه ورځ چه دی ووائی | چه شه | نو هغه به شی | د ده خبره رښتیا ده | او د هغه حکومت دے
پیدا کړی دی او په کومه ورځ چه هغه دومره قدر ووائی چه (قیامت) د وشی نو وبه شی د هغه وینا حق ده او په کومه ورځ
يَوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّوْرِ ۭ عٰلِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ ۭ وَهُوَ الْحَكِيْمُ
په کومه ورځ | چه پوکے ووهلے شی | په شپیلئ کښے | هغه پوهه دے | (په ټولو) پټو | او ښکاره خبرو | او هغه دے | خاوند د حکمت
چه شپیلئ پوک وهلے شی نو ټوله بادشاهی به په برابر د هغه وی، هغه په غیب او ښکاره هر څیز باندے عالم دے او هغه
الْخَبِيْرُ ۞ ٧٣ وَاِذْ قَالَ اِبْرٰهِيْمُ لِاَبِيْهِ اٰزَرَ اَتَتَّخِذُ اَصْنَامًا اٰلِهَةً ۚ
خبردار | او کله چه | دوئیل | ابراهیم | خپل پلار | آزر ته | آیا ته نیسے | بتان | په خدائی
د حکمتونو خاوند او خبردار دے۔ او یاد کړه کله چه ابراهیمؑ خپل پلار آزر ته ووئیل آیا ته بتان په خدائی نیسے۔ زه
اِنِّيْٓ اَرٰىكَ وَقَوْمَكَ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ۞ ٧٤ وَكَذٰلِكَ نُرِيْٓ اِبْرٰهِيْمَ
بیشکه زه وینم تا | او ستا قوم | په ګمراهئ ښکاره کښے | او دغه شان | مونږ وښودلو | ابراهیم ته
خو وینم چه ته او ستا قوم په ښکاره ګمراهئ کښے پراته دی۔ او دغه شان مونږ ابراهیمؑ ته د اسمانونو او
مَلَكُوْتَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَلِيَكُوْنَ مِنَ الْمُوْقِنِيْنَ ۞ ٧٥ فَلَمَّا
حکومت | د اسمانونو | او زمکے | او چه هغه وی | له یقین کوونکو نه | بیا هر کله چه
د زمکے (د) بادشاهت (نظام) وښودو او دلکه چه د یقین په خاوندانو کښے شامل شی، نو هر کله
جَنَّ عَلَيْهِ الَّيْلُ رَاٰ كَوْكَبًا ۚ قَالَ هٰذَا رَبِّيْ ۚ فَلَمَّآ اَفَلَ
خوره شوه | په ده باندے | شپه | (نو) هغه وکتلو | یو ستورے | دوئیل | دا | زما رب دے | بیا کله چه هغه غائب شو
چه شپه پرے راخوره شوه نو هغه یو ستورے ولیدو نو وے وئیل چه زما رب دا دے نو چه هغه پریوتو نو
قَالَ لَآ اُحِبُّ الْاٰفِلِيْنَ ۞ ٧٦ فَلَمَّا رَاَ الْقَمَرَ بَازِغًا قَالَ هٰذَا
نو وے وئیل | زه نه خوښوم | پریوتونکی | پس هر کله چه ولیدلو | سپوږمئ | راختونکے | نو وے وئیل | دا
وے وئیل چه ډوبیدونکو سره مینه نه ساتم بیا چه ئے ځلنده سپوږمئ ولیده نو وے وئیل چه زما رب دا
رَبِّيْ ۚ فَلَمَّآ اَفَلَ قَالَ لَىِٕنْ لَّمْ يَهْدِنِيْ رَبِّيْ لَاَكُوْنَنَّ
زما رب دے؟ | بیا هر کله چه | هغه پریوتله | نو وے وئیل | که چرے هدایت نه وے کړے ماته | زما رب | نو شوے به یم زه
دے نو چه هغه پریوته نو وے وئیل چه که الله پاک راته سمه لار ونه ښائی، نو زه به په ګمراهانو کښے
مِنَ الْقَوْمِ الضَّاۤلِّيْنَ ۞ ٧٧ فَلَمَّا رَاَ الشَّمْسَ بَازِغَةً قَالَ هٰذَا رَبِّيْ
له ګمراهانو خلقو نه | بیا هر کله چه | هغه وکتلو | نمر | راختونکے | نو وے وئیل | دا زما رب دے
شمیر شم۔ بیا چه پرقنده نمر ئے ولیدلو نو وے وئیل چه زما رب دا دے، دا په
هٰذَآ اَكْبَرُ ۚ فَلَمَّآ اَفَلَتْ قَالَ يٰقَوْمِ اِنِّيْ بَرِيْۤءٌ مِّمَّا
دا د ټولو نه لوئے دے | بیا هر کله چه | هغه (هم) غائب شو | نو وے وئیل | اے زما قومه! | زه خو بیزاره یم | له هغه څه نه
ټولو کښے لوئے دے، خو هر کله چه هغه هم پریوتلو نو وے وئیل چه اے زما قومه! زه ستاسو د شرک نه

تُشْرِكُوْنَ ﴿٧٨﴾ اِنِّیْ وَجَّهْتُ وَجْهِیَ لِلَّذِیْ فَطَرَ السَّمٰوٰتِ
چه شریکوی ئے تاسو | بیشکه ما خو وګرځولو | خپل مخ | هغه (ذات) طرف ته | چه پیدا کړی ئے دی آسمانونه
چه شریکوی ئے تاسو بیشکه ما خو وګرځولو چه آسمانونه او زمکه ئے پیدا کړی دی ، زه
د بیزاره یم ، ما خو خپل مخ هغه ذات ته وګرځولو
وَالْاَرْضَ حَنِیْفًا وَّمَآ اَنَا مِنَ الْمُشْرِكِیْنَ ﴿٧٩﴾ وَحَآجَّهٗ قَوْمُهٗ ؕ قَالَ
او زمکه | په دې حال کښې چه زه حنیف یم | او نه یم زه | له مشرکانو نه | او جګړه د کړه د ده سره | قوم د ده | وویل ده
یو مخیزے یم اوزه د مشرکانو په تولی کښې شامل نه یم ، او د هغه قوم ورسره جګړه جوړه کړه هغه ورته
اَتُحَآجُّوْٓنِّیْ فِی اللّٰهِ وَقَدْ هَدٰىنِ ؕ وَلَآ اَخَافُ مَا تُشْرِكُوْنَ
ایا تاسو جګړه کوئ ما سره | د الله په حقله | حال دا دے چه هغه ما هدایت کړے دے | او زه نه ویریږم | د هغه څه نه چه تاسو شریک نیسئ
وویل ایا تاسو ما سره د الله په باره کښې جګړے کوئ حالانکه هغه ما ته هدایت کړے دے او زه د هغه څیزونو نه نه ویریږم
بِهٖٓ اِلَّآ اَنْ یَّشَآءَ رَبِّیْ شَیْـًٔا ؕ وَسِعَ رَبِّیْ كُلَّ شَیْءٍ عِلْمًا ؕ
هغه سره | مګر دا چه وغواړی | زما رب | څه څیز | احاطه کړے ده | زما رب | هر | څیز باندې | په علم سره
کوم چه تاسو د الله سره شریک نیسئ سوا د دے نه چه زما رب څه خبره وغواړی ، زما د رب علم هر څیز باندې خور دے
اَفَلَا تَتَذَكَّرُوْنَ ﴿٨٠﴾ وَكَیْفَ اَخَافُ مَآ اَشْرَكْتُمْ وَلَا تَخَافُوْنَ
پس ایا نصیحت نه مني | او څنګه | زه وویریږم | له هغه چا نه چه شریک مقرر کړی دی تاسو | او نه ویریږئ تاسو
نو ایا تاسو سوچ نه کوئ ، او زه به څنګه ستاسو د جوړو کړو شریکانو نه ویریږم حال دا دے چه تاسو نه ویریږئ
اَنَّكُمْ اَشْرَكْتُمْ بِاللّٰهِ مَا لَمْ یُنَزِّلْ بِهٖ عَلَیْكُمْ سُلْطٰنًا ؕ
له دې خبرې چه تاسو | شریک نیسئ | د الله سره | هغه | چه نه دے نازل کړے هغه د دے | په تاسو باندې | دلیل
چه د الله سره داسې څیزونه شریکوئ چه د هغې تاسو سره هیڅ سند نشته (دا د وایئ چه)
فَاَیُّ الْفَرِیْقَیْنِ اَحَقُّ بِالْاَمْنِ ۚ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿٨١﴾ اَلَّذِیْنَ اٰمَنُوْا وقف لازم
پس کوم فریق له دواړو نه | زیات حقدار دے | د امن | که چرے تاسو پوهیږئ | هغه خلق چه ایمان راوړی
په دواړو ډلو کښې څوک د امن زیات حقدار دے ، که تاسو پوهیږئ
چا چه ایمان راوړے دے
وَلَمْ یَلْبِسُوْٓا اِیْمَانَهُمْ بِظُلْمٍ اُولٰٓئِكَ لَهُمُ الْاَمْنُ وَهُمْ
او نه دے ملاو کړے دوی | خپل ایمان | بې انصافی سره | هم د دوی د پاره دے | امن | او هم دا دی
او خپل ایمان ئے د ظلم سره ګډ کړے نه دے ، هم هغوی په امن دی او هم هغوی په سمه لار
مُّهْتَدُوْنَ ﴿٨٢﴾ وَتِلْكَ حُجَّتُنَآ اٰتَیْنٰهَآ اِبْرٰهِیْمَ عَلٰی قَوْمِهٖ ؕ نَرْفَعُ
په سمه لار باندې | او دا دے | زمونږ دلیل (چه مونږ ورکړے دے) | ابراهیم ته | د ده د قوم خلاف | پورته کوو مونږ
روان دی او دا زمونږ هغه دلیل وو چه ابراهیم علیه السلام له مونږ د قوم په مقابله کښې ورکړے وو ، مونږ
دَرَجٰتٍ مَّنْ نَّشَآءُ ؕ اِنَّ رَبَّكَ حَكِیْمٌ عَلِیْمٌ ﴿٨٣﴾ وَوَهَبْنَا لَهٗٓ
درجے | د چا چه مونږ غواړو | بیشکه | ستا رب | خاوند د حکمت | پوهه دے | او ورکړو مونږ | هغه له
د چا په حقله وغواړو نو مرتبے ورله اوچتے کړو بیشکه چه ستا رب د حکمت خاوند او په هر څه پوهه دے او مونږ هغه له اسحٰق ؑ

إِسْحٰقَ وَيَعْقُوبَ ۚ كُلًّا هَدَيْنَا ۚ وَنُوحًا هَدَيْنَا

اسحاق ؑ | او یعقوب ؑ | (چه) هر یو له | هدایت ورکړو مونږ | او نوح ؑ له (هم) | مونږ هدایت ورکړو

(غوندې ځوئې) او یعقوب (غوندې نمسې) ورکړو او هر یو مو په سمه لاره روان کړو (هغه لاره چه) پخوا مو نوح علیه السلام

مِنْ قَبْلُ وَمِنْ ذُرِّيَّتِهِ دَاوُدَ وَسُلَيْمٰنَ وَأَيُّوبَ وَيُوسُفَ

له دې نه وړاندې | او د دوی له اولاد نه | داؤد ؑ | او سلیمٰن | او ایوب | او یوسف ؑ

ته ښودلې وه او بیا د هغه په اولاد کښې مو داؤد سلیمان ایوب یوسف

وَمُوسٰى وَهٰرُونَ ۚ وَكَذٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ ﴿٨٤﴾ وَزَكَرِيَّا

او موسیٰ ؑ | او هارون ؑ له (هم) | او دغه شان | مونږ بدله ورکوو | نیکی کوونکو ته | او زکریا ؑ

موسیٰ او هارون علیهم السلام ته ونښودله او نیکانو ته مونږ دغسې بدله ورکوو ، او زکریا

وَيَحْيٰى وَعِيسٰى وَإِلْيَاسَ ۚ كُلٌّ مِّنَ الصّٰلِحِينَ ﴿٨٥﴾

او یحییٰ ؑ | او عیسیٰ ؑ | او الیاس ؑ له (هم) | چه دوی ټول | له نیکوکارو نه ؤو

او یحییٰ او عیسیٰ او الیاس علیهم السلام ته مو ښودلې وه په دوی کښې هر یو نیک عمله وو،

وَإِسْمٰعِيلَ وَالْيَسَعَ وَيُونُسَ وَلُوطًا ۚ وَكُلًّا فَضَّلْنَا

او اسماعیل ؑ | او الیسع ؑ | او یونس ؑ | او لوط ؑ له (هم) | او هر یو له | مونږ فضیلت ورکړې وو

او اسمٰعیل ؑ او الیسع ؑ او یونس ؑ او لوط ؑ ته مو هدایت وکړو او په دوی کښې هر یو له مو (د خپلې زمانې)

عَلَى الْعٰلَمِينَ ﴿٨٦﴾ وَمِنْ اٰبَائِهِمْ وَذُرِّيّٰتِهِمْ وَإِخْوَانِهِمْ ۚ

په جهان والو باندې | او د دوی پلارانو | او د دوی اولاد | او د دوی ورونړو نه (هم ځینو ته)

په نورو خلقو فضیلت ورکړو او د دوی ځینو پلارانو او ځینو اولاد او ځینو ورونړو له مو فضیلت ورکړو

وَاجْتَبَيْنٰهُمْ وَهَدَيْنٰهُمْ إِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿٨٧﴾ ذٰلِكَ هُدَى اللّٰهِ

او غوره کړل مونږ دوی | او هدایت وکړو مونږ دوی ته | نیغې لارې طرف ته | دا دے | هدایت | د الله

او مونږ دوی غوره کړل او دوی ته مو د نیغې لارې هدایت وکړو ، دا د الله تعالیٰ هدایت دے

يَهْدِي بِهٖ مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ ۚ وَلَوْ أَشْرَكُوا لَحَبِطَ عَنْهُمْ

سمه لاره ښائی په دې سره | چا ته چه غواړی | له خپلو بندګانو نه | او که چیرې دې خلقو شرک کولے | نو ختما ضائع شوې به وو | له دوی نه

چه په خپلو بندیانو کښې چا له ئې خوښه وی هغه له ئې ورکوی ، خو که دې خلقو (بالفرض) شرک کړے وے نو

مَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿٨٨﴾ أُولٰٓئِكَ الَّذِينَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحُكْمَ وَالنُّبُوَّةَ ۚ

هغه چه دوی کول | دا هغه خلق دی | کوم ته چه | مونږ ورکړے وو | کتاب | او حکومت | او نبوت

ټول عملونه به ئې عبث تلی وو . دا هغه خلق دی چه مونږ ورته کتاب او حکمت او نبوت ورکړے وو . نو

فَإِنْ يَّكْفُرْ بِهَا هٰٓؤُلَآءِ فَقَدْ وَكَّلْنَا بِهَا قَوْمًا لَّيْسُوا بِهَا

پس که چیرې | انکار وکړی | د دې (خبرو) نه | دا خلق | نو مونږ مقرر کړی دی | په دوی | هغه خلق | چه نه دی د دے

که او س دا خلق ترې نه انکار وکړی ، نو مونږ دا نعمت داسې خلقو ته سپارلے دے چه په خپله هغوی

بِكٰفِرِيْنَ ﴿٨٩﴾ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ هَدَى اللّٰهُ فَبِهُدٰىهُمُ اقْتَدِهْ ؕ قُلْ

انکارکوونکی | هم داخلق دی | کوموته چه | هدایت کړے وو | الله | نو د دوی په لاره | چلیږه | ووایه

ترے نه منکرنهٔ دی ، دا هغه خلق وو چا ته چه الله تعالیٰ هدایت کړے وو نو ته هم د هغوی په لاره ځه ته ووایه

ع ٨ ١٦ لَآ اَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ اَجْرًا ؕ اِنْ هُوَ اِلَّا ذِكْرٰى لِلْعٰلَمِيْنَ ﴿٩٠﴾

نهٔ غواړم زهٔ له تاسو | په دے بانډې | (څهٔ) اجر | دا نهٔ دے | مګر صرف | نصيحت | د جهان د خلقو د پاره

چه زهٔ (د تبليغ) په دے کار تاسو نه اجر نهٔ غواړم ، دا د ټولے دنيا خلقو ته يو عام نصيحت دے.

وَمَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهٖٓ اِذْ قَالُوْا مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ عَلٰى بَشَرٍ

او قدر ونهٔ کړو دوی د الله | (لکه چه) حق دے د دهٔ د قدر د دانئ | کله چه دوی ووئيل | نهٔ دے نازل کړے | الله | په (چا) انسان

او دوی د الله (د انعام) قدر ونهٔ کړو لکه څنګه چه د هغهٔ حق دے هر کله چه دوی ووئيل چه الله تعالیٰ په چا بشر بانډې څه

مِّنْ شَيْءٍ ؕ قُلْ مَنْ اَنْزَلَ الْكِتٰبَ الَّذِيْ جَآءَ بِهٖ مُوْسٰى نُوْرًا

څهٔ شے | ووايه | چا | راليږلے وو | هغه کتاب | چه | راوړے وو هغه | موسیٰ | رنړا

نهٔ دی نازل کړی ته ووايه چه چا هغه کتاب (تورات) نازل کړے وو چه موسیٰ عليه السلام راوړے وُو ، تو لو خلقو

وَّهُدًى لِّلنَّاسِ تَجْعَلُوْنَهٗ قَرَاطِيْسَ تُبْدُوْنَهَا وَتُخْفُوْنَ

او هدايت | خلقو د پاره | چه جوړوئ تاسو هغه | پاڼړے پاڼړے | تاسو ښکاره کوئ هغه (څه ناڅه) | او تاسو پټوئ

له رنړا او هدايت وو کوم چه تاسو بيلو بيلو صفحو بانډې ليکلے دے (لږ) څهٔ ښکيے څرګندوئ او ډير څهٔ پټيے

كَثِيْرًا ۚ وَعُلِّمْتُمْ مَّا لَمْ تَعْلَمُوْٓا اَنْتُمْ وَلَآ اٰبَآؤُكُمْ ؕ قُلِ

ډيره (حصه) | او زده کړے شوی د تاسو | په څهٔ | چه نهٔ پوهيدئ | تاسو | او نهٔ ستاسو پلارنيکهٔ | ووايه

بهت ساتئ (او د دے کتاب په ذريعه) تاسو ته هغه خبرے معلومے شوے چه نهٔ تاسو او نهٔ ستاسو پلارانو نيکونو ته معلومے

اللّٰهُ ۙ ثُمَّ ذَرْهُمْ فِيْ خَوْضِهِمْ يَلْعَبُوْنَ ﴿٩١﴾ وَهٰذَا كِتٰبٌ

الله (راليږلے دی) | بيا پريږده دوی | په (فضول) شغل د دوی کښے | چه دوی لوبے کوی | او دا (قرآن هم) | يو کتاب دے

ووايه چه هغه الله نازل کړے وو ، بيا دوی پريږده چه په خپل فضول بحث کښے مشغول وی او دا (قرآن) مبارک کتاب دے

اَنْزَلْنٰهُ مُبٰرَكٌ مُّصَدِّقُ الَّذِيْ بَيْنَ يَدَيْهِ وَلِتُنْذِرَ اُمَّ الْقُرٰى

چه نازل کړے دے مونږ | ډير برکت والا | تصديق کوونکے | د هغو چه | له دهٔ نه وړاندې وو | او د پاره د دے چه ته وويروے | د مکے خلق

کوم چه مونږ نازل کړو او د هغے کتابونو تصديق کوی چه د دهٔ نه وړاندې وُو او د دے د پاره راغلے دے چه ته يرے مکے والا

وَمَنْ حَوْلَهَا ؕ وَالَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ يُؤْمِنُوْنَ بِهٖ

او کوم چه چاپيره د دے دی | او هغه خلق | چه يقين لری | په آخرت | او ايمان راوړی | په دے (کتاب)

او د خوا وُ شا خلق وويروے ، او څوک چه په آخرت بانډې باور لری ، هغوی په دے کتاب هم ايمان راوړی

وَهُمْ عَلٰى صَلَاتِهِمْ يُحَافِظُوْنَ ﴿٩٢﴾ وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى

او دوی | د خپل مونځ | حفاظت کوی | او څوک | زيات ظالم دے | د هغه چا نه | چه ډلے تړل

او د خپلو مونځونو ډير خيال ساتی ، او د هغه چا نه لوئے ظالم څوک کيدے شی چه په الله تعالیٰ

عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اَوْ قَالَ اُوْحِيَ اِلَيَّ وَلَمْ يُوْحَ اِلَيْهِ شَيْءٌ وَّمَنْ قَالَ

په الله باندِ | دروغ | یا دے وئیل | وحی شوے ده | ماته | او نه ده وحی شوے | هغهٔ ته | د هغهٔ څیز | او چا چه وُوئیل

بانږ دروغ وتړی یا دا ووائی چه ماته وحی راغلے ده او (په حقیقت کښے) هیڅ وحی ورته راغلے نهٔ وی او څوک چه دا

سَاُنْزِلُ مِثْلَ مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ ۭ وَلَوْ تَرٰٓى اِذِ الظّٰلِمُوْنَ فِيْ غَمَرٰتِ

زر دے چه زهٔ به نازل کړم | لکه څنګه چه | نازل کړو | الله | او که ته ووینے | هغه وخت چه ظالمان وی | په سختو

ووائی چه زهٔ به هم د خدائے غوندې کتاب را نازل کړم کاش! چه تهٔ هغه وخت وګورے چه دا ظالمان به د مرګ په

الْمَوْتِ وَالْمَلٰۗىِٕكَةُ بَاسِطُوْٓا اَيْدِيْهِمْ ۚ اَخْرِجُوْٓا اَنْفُسَكُمْ ۭ اَلْيَوْمَ

د مرګ کښے | او فرښتے به | راخوروی | خپل لاسونه | (چه) را وُباسئ | روحونه خپل | نن ورځ

سختو کښے اخته وی او فرښتو ورته لاسونه وراوږده کړی وی (ورته وائی) چه خپل روحونه راوباسئ، نن به

تُجْزَوْنَ عَذَابَ الْهُوْنِ بِمَا كُنْتُمْ تَقُوْلُوْنَ عَلَى اللّٰهِ غَيْرَ الْحَقِّ

به تاسو ته درکولے شی | عذاب | د ذلت | په سبب د دے چه تاسو به وئیل | په الله باندِ | ناحق

تاسو ته سپکونکے عذاب درکیدے شی ، ځکه چه تاسو په الله تعالیٰ بانږ دروغ تړل ـ

وَكُنْتُمْ عَنْ اٰيٰتِهٖ تَسْتَكْبِرُوْنَ ۝٩٣ وَلَقَدْ جِئْتُمُوْنَا فُرَادٰى

او تاسو به | د هغهٔ د اٰیتونو نه | غرور کولو | او بیشکه تاسو راغلی وئ مونږ ته | یوازے

او تاسو د هغهٔ د نخښو په مقابله کښے سرکشی کوله۔ (اوس) تاسو مونږ ته داسے یوازے راغلی یئ

كَمَا خَلَقْنٰكُمْ اَوَّلَ مَرَّةٍ وَّتَرَكْتُمْ مَّا خَوَّلْنٰكُمْ

لکه څنګه چه مونږ پیدا کړی وئ تاسو | په اول ځل | او تاسو پریښودل | هغه څهٔ | چه درکړی وو مونږ تاسو ته

لکه څنګه چه مونږ تاسو په اول ځل (یوازے) پیدا کړی وئ او مونږ چه تاسو له څهٔ درکړی وو هغه مو وروستو

وَرَاۗءَ ظُهُوْرِكُمْ ۚ وَمَا نَرٰى مَعَكُمْ شُفَعَاۗءَكُمُ الَّذِيْنَ زَعَمْتُمْ اَنَّهُمْ

له ورستو د شاګانو خپلو ته | او نهٔ وینو مونږ | تاسو سره | ستاسو سفارشیان | هغه چه | ګمان به کولو تاسو | چه دوی

پریښودل ، او مونږ (نن) تاسو سره هغه سفارشیان نهٔ ګورو چه ستاسو په خیال کښے ستاسو په

فِيْكُمْ شُرَكٰۗؤُا ۭ لَقَدْ تَّقَطَّعَ بَيْنَكُمْ وَضَلَّ عَنْكُمْ مَّا

ستاسو تر مینځه | (د الله) شریکان دی | بیشکه پرې کړے شو | ستاسو په مینځ کښے (تعلق) | او ورک شول | له تاسو نه | هغه څه

معامله کښے (زمونږ) شریکان دو یقینًا ستاسو په خپل مینځ کښے رشتے ختمے شوے او ورکے شوے دعوے چه مو

ع ١١/١٧ كُنْتُمْ تَزْعُمُوْنَ ۝٩٤ اِنَّ اللّٰهَ فَالِقُ الْحَبِّ وَالنَّوٰى ۭ يُخْرِجُ الْحَيَّ

چه تاسو به ئے ګمان کولو | بیشکه | الله | چوونکے دے | د دانے | او زړی | هغه راوُباسی | ژوندے

کولے هغه ټولے درنه هیرے شوے ، بیشکه الله د دانے او د زړی (زرغونے د پاره) چوونکے دے هغه د مړی

مِنَ الْمَيِّتِ وَمُخْرِجُ الْمَيِّتِ مِنَ الْحَيِّ ۭ ذٰلِكُمُ اللّٰهُ فَاَنّٰى تُؤْفَكُوْنَ ۝٩٥

له مړی نه | او راوېستونکے دے | مړے | له ژوندی نه | دا دے ستاسو | الله | نو کوم خوا | تاسو اړولی روان یئ

نه ژوندے راوباسی او د ژوندی نه مړے راوباسی هم دا ستاسو خدائے دے نو تاسو کوم خوا اړولی روان یئ

ع ٨

وَجَعَلْنَا لَكُمْ فِيهَا مَعَايِشَ ۗ قَلِيلًا مَّا تَشْكُرُونَ ⑩

او جوړ کړه موږ | تاسو دپاره | په هغې کښې | سامان (دژوند) | ډیر لږ دے | چه تاسو شکر کوئ

او تاسوله موږ هم په دے زمکه کښے دژوند سامان پیدا کړو (مګر) تاسو خلق ډیر کم شکر کوئ

وَلَقَدْ خَلَقْنَاكُمْ ثُمَّ صَوَّرْنَاكُمْ ثُمَّ قُلْنَا لِلْمَلَائِكَةِ اسْجُدُوا

او بیشکه | موږ پیدا کړئ تاسو | بیا موږ صورت جوړ کړه ستاسو | بیا ووئیل موږ | فرښتو ته | چه سجده وکړئ

او (ګورئ) موږ تاسو پیدا کړئ، بیا مو ستاسو شکل وصورت جوړ کړو، بیا مو فرښتو ته ووئیل چه آدم ته سجده

لِآدَمَ فَسَجَدُوا إِلَّا إِبْلِيسَ لَمْ يَكُن مِّنَ السَّاجِدِينَ ⑪

آدم ته | نو دوئ سجده وکړه | سوا | د ابلیس نه | نه وو دے | له سجده کوونکو نه

وکړئ، نو ټولو سجده وکړه بغیر د شیطان نه، چه په سجده کوونکو کښے شامل نه شو

قَالَ مَا مَنَعَكَ أَلَّا تَسْجُدَ إِذْ أَمَرْتُكَ ۖ قَالَ

وفرمائیل (الله) | څه څیز | منع کړے ته | چه تا سجده ونه کړه | کله چه ما تا ته حکم وکړو؟ | ده ووئیل

الله تعالیٰ ترے تپوس وکړو چه کوم څیز ته د سجدے کولو نه منع کړے هر کله چه ما درته حکم وکړو، شیطان

أَنَا خَيْرٌ مِّنْهُ خَلَقْتَنِي مِن نَّارٍ وَخَلَقْتَهُ مِن طِينٍ ⑫

زه | غوره یم | له ده نه | تا پیدا کړم زه | له اور نه | او تا پیدا کړو دے | له خټے نه

ووئیل چه زه د ده نه بهتر یم، تا زه د اور نه پیدا کړے یم او دے دِ د خاورے نه پیدا کړے دے.

قَالَ فَاهْبِطْ مِنْهَا فَمَا يَكُونُ لَكَ أَن تَتَكَبَّرَ فِيهَا فَاخْرُجْ

وے فرمائیل | پس کوز شه | د دے ځائے نه | چه نشته دے (څه حق) | ستا | چه ته تکبر وکړے | په دے کښے | پس اُوځه

الله ورته وفرمائیل د دے ځائے نه لاندِ کوز شه، تا له دا مناسب نه دی چه ته دلته غرور وکړے، بهر اُوځه

إِنَّكَ مِنَ الصَّاغِرِينَ ⑬ قَالَ أَنظِرْنِي إِلَىٰ يَوْمِ يُبْعَثُونَ ⑭

بیشکه ته (یې) | له خوار شوو نه | ده ووئیل | مهلت راکړه ما ته | تو هغې ورځے پورے چه راپا څولے شي خلق

یقیناً ته د ذلیلو خلقو د ډلے نه یې. شیطان ووئیل ما ته مهلت راکړه هغې ورځے پورے چه خلق به (د قبرونو نه) راپاڅو

قَالَ إِنَّكَ مِنَ الْمُنظَرِينَ ⑮ قَالَ فَبِمَا أَغْوَيْتَنِي لَأَقْعُدَنَّ

وفرمائیل | بیشکه تا ته | مهلت درکړے شوے دے | ده ووئیل | په وجه د دے چه | تا زه ګمراه کړم | خامخا به کښینم زه

شي. الله ورته وفرمائیل تا ته مهلت درکړے شو. شیطان ووئیل نو ځکه چه تا زه په ګمراهئ کښے اچولے یم د غصے به زه

لَهُمْ صِرَاطَكَ الْمُسْتَقِيمَ ⑯ ثُمَّ لَآتِيَنَّهُم مِّن بَيْنِ أَيْدِيهِمْ

دوی ته | ستا په لاره | نیغه کښے | بیا به خامخا زه راځم دوی ته | د دوی له وړاندِ نه

دے خلقو ته ستا په نیغه لاره کښے کښینم، بیا به یقیناً د دوی له وړاندِ نه او د دوی له وروستو نه

وَمِنْ خَلْفِهِمْ وَعَنْ أَيْمَانِهِمْ وَعَن شَمَائِلِهِمْ ۖ وَلَا تَجِدُ

او د دوی له وروستو نه | او د دوی له ښي طرف نه | او د دوی له کس اړخ نه | او نه به بیا نه موے

او د دوی له ښي اړخ نه او د دوی له کس اړخ نه دوی ته راځم، او په دوی کښے اکثر خلق به

أَكْثَرَهُمْ شٰكِرِينَ ۝١٧ قَالَ اخْرُجْ مِنْهَا مَذْءُومًا مَّدْحُورًا ۚ

اکثر له دوی نه | شکر کوونکی | وفرمائیل الله | اُوځه | دَ دے ځائے نه | ذلیل شوے | رټلے شوے

اکثر له دوی نه شکر گذار بیا نهٔ مومے ۔ الله تعالیٰ ورته ووئیل ، اُوځه دَ دے ځائے نه ذلیل شوے خوار شوے

لَّمَن تَبِعَكَ مِنْهُمْ لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنكُمْ أَجْمَعِينَ ۝١٨

البته څوک چه | پیروی وکړی ستا | له دوی نه | زهٔ به خامخا ډک کړم | دوزخ | له تاسو ټولو نه

یقین وکړه چه څوک ستا په لاره بانډِ روان شی ، نو زهٔ به ستاسو دَ ټولو نه دوزخ ډک کړم ۔

وَيَا آدَمُ اسْكُنْ أَنتَ وَزَوْجُكَ الْجَنَّةَ فَكُلَا

او اے آدمَ ! | اوسیږه | ته | او ستا ښځه | په جنّت کښے | بیا خورئ تاسو دواړه

او اے آدمَ ! ته او ستا ښځی دواړه په جنت کښے اوسیږئ ، او چه دَ کوم ځائے نه

مِنْ حَيْثُ شِئْتُمَا وَلَا تَقْرَبَا هَٰذِهِ الشَّجَرَةَ فَتَكُونَا

کوم ځائے نه | چه تاسو غواړئ | او مهٔ نزدے کیږئ | دے | اونی ته | پس شئ به تاسو

مو خهٔ خوښ وی هغه خورئ ، خو دغه اونی ته نزدے مهٔ ځئ کنی په ظالمانو

مِنَ الظَّالِمِينَ ۝١٩ فَوَسْوَسَ لَهُمَا الشَّيْطَانُ لِيُبْدِيَ

له ظالمانو نه | پس وسوسه واچوله | دے دواړو ته | شیطان | دَ پاره دَ دے چه ښکاره کړی

کښے به شمیر شئ ۔ بیا شیطان دَ دوی په زړونو کښے وسوسه واچوله چه دَ پردے هغه

لَهُمَا مَا وُورِيَ عَنْهُمَا مِن سَوْآتِهِمَا وَقَالَ

دوی ته | څهٔ چه | پټ وو | له دوی نه | له شرمگاهونو دَ دوی نه | او ووئیل دهٔ

اندامونه ورته څرګند کړی کوم چه تر دے نه پټ وُو او ورته ئے ووئیل

مَا نَهَاكُمَا رَبُّكُمَا عَنْ هَٰذِهِ الشَّجَرَةِ إِلَّا أَن تَكُونَا

نهٔ یئ منع کړی تاسو دواړه | ستاسو رب | له دے اونی نه | مګر دَ پاره دَ دے چه | شئ به تاسو

چه تاسو دواړه دَ دے اونی نه صرف په دے وجه خپل رب منع کړی یئ چه فرښتے نهٔ شئ

مَلَكَيْنِ أَوْ تَكُونَا مِنَ الْخَالِدِينَ ۝٢٠ وَقَاسَمَهُمَا إِنِّي لَكُمَا

فرښتے | یا به شئ تاسو | له همیشه اوسیدونکو نه | او قسم ئے وخوړو دوی ته | چه بیشکه زهٔ تاسو ته

یا په دے کښے همیشه پاتے نهٔ شئ او دواړو ته ئے قسم وخوړو چه زهٔ

لَمِنَ النَّاصِحِينَ ۝٢١ فَدَلَّاهُمَا بِغُرُورٍ ۚ فَلَمَّا ذَاقَا

له نصیحت کوونکو نه یم | پس هغه رانټه کړل دوی | په دوکه | بیا هر کله چه | دواړو وڅکله

ستاسو یقینی خیرخواه یم ۔ نو دواړه ئے په چل ول راکوز کړل نو هر کله چه دَ اونی مزه

الشَّجَرَةَ بَدَتْ لَهُمَا سَوْآتُهُمَا وَطَفِقَا يَخْصِفَانِ عَلَيْهِمَا

هغه اُونه | نو ښکاره شول | دوی ته | شرمګاهونه دَ دوی | او شروع وکړه دواړو | چه انښلولے ئے | په خپلو ځانونو

ئے وڅکله نو دواړو نه خپل خپل سترونه ښکاره شول او په خپلو شرمګاهونو بانډِ ئے دَ جنت پاڼے

مِنْ وَّرَقِ الْجَنَّةِ ؕ وَنَادٰىهُمَا رَبُّهُمَآ اَلَمْ اَنْهَكُمَا

پاڼې | دَ جنت | او آواز وکړو دوی ته | رب دَ دوی | آیا ما نهٔ وئ منع کړی تاسو

اینبول شروع کړل ، او دَ دوی رب دوی ته آواز وکړو وُئې فرمائیل، آیا ما تاسو دواړه دَ دې

عَنْ تِلْكُمَا الشَّجَرَةِ وَاَقُلْ لَّكُمَآ اِنَّ الشَّيْطٰنَ لَكُمَا عَدُوٌّ

له دغې اونې نه | او (نهٔ) وُو وئیلی ما تاسو ته | چه شیطان | ستاسو | دُښمن دے

اونې نه نهٔ وئ منع کړی ؟ او آیا دا مې درته نهٔ وو وئیلی چه شیطان ستاسو ښکاره دُښمن

مُّبِيْنٌ (٢٢) قَالَا رَبَّنَا ظَلَمْنَآ اَنْفُسَنَا ۫ وَاِنْ لَّمْ تَغْفِرْلَنَا

ښکاره | دواړو وویل | اے زمونږ ربه! | مونږ ظلم وکړو | په خپلو ځانونو | او که چرے | ته نهٔ وبښې مونږ ته

دے ۔ دواړو عرض وکړو، اے زمونږ ربه! مونږ په خپل ځان زیاتے کړے دے او که چرے ته مونږ ونهٔ بښې

وَتَرْحَمْنَا لَنَكُوْنَنَّ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ (٢٣) قَالَ اهْبِطُوْا

او په مونږ رحم و(نهٔ) کړے | نو خامخا به شو مونږ | له تاوانیانو نه | وفرمائیل الله | کوز شئ

او مونږ باندې رحم ونهٔ کړے نو مونږ به ضرور نقصان بیا مومو ۔ الله وُفرمائیل، لاندې کوز شئ

بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ ۚ وَلَكُمْ فِى الْاَرْضِ مُسْتَقَرٌّ

له تاسو نه ځنې | دَ ځنو | به دښمنان وی | او تاسو دَپاره | په زمکه کښې | استوګنه

تاسو ټول به دَ یو بل دُښمنان یئ ، او تر یو ټاکلي وخته پورے تاسو له په زمکه باندې استوګنه

وَّمَتَاعٌ اِلٰى حِيْنٍ (٢٤) قَالَ فِيْهَا تَحْيَوْنَ وَفِيْهَا

او (دَ ژوند) سامان دے | تر یو وخته پورے | وُفرمائیل الله | په دې (زمکه) کښې | به تاسو ژوند تیروئ | او په دې کښې

او دَ ژوند سامان مقرر شوے دے ۔ ورته ئې وفرمائیل چه په دې (زمکه) کښې به ژوند تیروئ او هم په

تَمُوْتُوْنَ وَمِنْهَا تُخْرَجُوْنَ (٢٥) يٰبَنِىْٓ اٰدَمَ قَدْ اَنْزَلْنَا ع ١٥ ٩ ٢

به تاسو مرئ | او له دے نه | به تاسو را وبیستلے شئ | اے بنی آدمو ! | بیشکه مونږ رالیږلی دی

دے کښې به مرئ او بیا هم دَ دے زمکے نه به را وبیستلے شئ ۔ اے دَ آدم اولاده ! مونږ تاسو له جامې

عَلَيْكُمْ لِبَاسًا يُّوَارِىْ سَوْاٰتِكُمْ وَرِيْشًا ؕ وَلِبَاسُ التَّقْوٰى

په تاسو باندې | جامے | چه پټوی | شرمګاهونه ستاسو | او ښائست (هم دې) | او جامے | دَ پرهیزګارئ

درکړی دی چه ستاسو دَ ستر ځایونه پټ کړی او دَ ښائست ذریعه هم وی او دَ پرهیزګارئ جامه

ذٰلِكَ خَيْرٌ ؕ ذٰلِكَ مِنْ اٰيٰتِ اللّٰهِ لَعَلَّهُمْ يَذَّكَّرُوْنَ (٢٦) يٰبَنِىْٓ اٰدَمَ

غوره دی | دا | دَ الله نخښې دی | دَ پاره دَ دې چه دوی | نصیحت قبول کړی | اے بنی آدمو

ډیره غوره ده ، دا دَ الله تعالیٰ نخښې دی شاید چه خلق ترے نه سبق واخلی ، اے دَ آدم اولاده!

لَا يَفْتِنَنَّكُمُ الشَّيْطٰنُ كَمَآ اَخْرَجَ اَبَوَيْكُمْ مِّنَ الْجَنَّةِ

په فتنه کښې دې نهٔ غورزوی تاسو | شیطان | لکه چه دهٔ را وُویستل | ستاسو مور او پلار | له جنّت نه

هسې نه چه شیطان مو بیا په فتنه کښې وغورزوی لکه چه ستاسو نیا نیکهٔ ئې دَ جنّت نه را وبیستلی وُو

يَنْزِعُ عَنْهُمَا لِبَاسَهُمَا لِيُرِيَهُمَا سَوْاٰتِهِمَا ۭ اِنَّهٗ يَرٰىكُمْ
دباسی | له دوی نه | جامے دَ دوی | چه ښکاره کړی دوی ته | ستروني دَ دوی | بیشکه ګوری تاسو ته
داسے حالت کښے چه دَ هغوی نه ئے جامے غورزولے چه ستروني ئے یو بل ته ښکاره کړی، هغه او دَ هغهٔ
هُوَ وَقَبِيْلُهٗ مِنْ حَيْثُ لَا تَرَوْنَهُمْ ۭ اِنَّا جَعَلْنَا الشَّيٰطِيْنَ
او دَ هغهٔ قوم | کوم ځائے نه چه | تاسو نهٔ وینئ دوی | بیشکه مونږ جوړکړل | شیطانان
قبیله تاسو دَ داسے ځائے نه وینی چه تاسو ئے لیدلے نهٔ شئ، مونږ شیطانان دَ هغو خلقو دوستان
اَوْلِيَاۗءَ لِلَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ ٢٧ وَاِذَا فَعَلُوْا فَاحِشَةً قَالُوْا
دوستان | دَ هغو خلقو | چه ایمان نهٔ راوړی | او کله چه | دوی کوی | څهٔ خراب کار | نو وائی
کړی دی چه ایمان نهٔ راوړی - او هر کله چه دوئ دَ بے شرمئ یو کار وکړی نو وائی
وَجَدْنَا عَلَيْهَآ اٰبَاۗءَنَا وَاللّٰهُ اَمَرَنَا بِهَا ۭ قُلْ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَاْمُرُ
موندلی دی مونږه | په دے باندِ | خپل پلاران | او الله | مونږ ته حکم دَ کړو دَ دے | دُوایه | بیشکه الله | حکم نهٔ ورکوی
چه مونږ خپل پلاران نیکهٔ په دے کار کولو موندلی دی او الله راته هم دغسے حکم کړے دے، ورته ووایه چه الله دَ بے شرمئ دَ
بِالْفَحْشَاۗءِ ۭ اَتَقُوْلُوْنَ عَلَى اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ٢٨ قُلْ
دَ بے حیائ | آیا تاسو وایئ | دَ الله په حقله | هغه څهٔ چه تاسو پرے نهٔ پوهیږئ | دُوایه
کار و حکم هیچرے نهٔ کوی، آیا تاسو په الله تعالیٰ باندِ داسے خبرے تړئ چه خبر ترے نهٔ هم نهٔ یئ۔ ووایه
اَمَرَ رَبِّيْ بِالْقِسْطِ ۣ وَاَقِيْمُوْا وُجُوْهَكُمْ عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ
حکم کړے دے | زمارب | دَ انصاف | او نیغ ساتئ | خپل مخونه | دَ هر مونځ په وخت
چه زمارب دَ اعتدال ساتلو حکم کړے دے۔ او دا چه دَ هر مونځ په وخت کښے خپل مخونه (بیت الله ته) مخامخ ساتئ
وَّادْعُوْهُ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ ڛ كَمَا بَدَاَكُمْ
او هغه بلئ | خالص ساتئ | هغهٔ دَ پاره | دین | لکه څنګه چه هغهٔ اول پیدا کړئ تاسو
او دا چه یوازے هغه بلئ خپل دین دَ هغهٔ دَ پاره خالص ساتئ، لکه چه څنګه ئے پیدا کړی یئ دغسے
تَعُوْدُوْنَ ٢٩ فَرِيْقًا هَدٰى وَفَرِيْقًا حَقَّ عَلَيْهِمُ
دِ بیرته راشئ دم دَغه شان | یوے ډلے ته | هغهٔ هدایت وکړو | او بوه ډله ده | (چه) واجب شوه | په دوی باندِ
بیرته راځئ ، یوے ډلے ته الله سمه لار ښودلے ده او په بلے ډلے باندِ ګمراهی ثابته
الضَّلٰلَةُ ۭ اِنَّهُمُ اتَّخَذُوا الشَّيٰطِيْنَ اَوْلِيَاۗءَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ
ګمراهی | بیشکه دوی | جوړ کړل | شیطانان | دوستان | سوا دَ الله نه
شوے ده۔ ځکه چه دوئ دَ الله تعالیٰ په ځائے شیطانان خپل مشران کړی دی
وَيَحْسَبُوْنَ اَنَّهُمْ مُّهْتَدُوْنَ ٣٠ يٰبَنِيْٓ اٰدَمَ خُذُوْا زِيْنَتَكُمْ
او دوی ګمان کوی | چه دوی | په سمه لار باندِ دی | اے بنی آدمو! | اغوندئ | خپلے ښائسته جامے
او بیا هم دا خیال کوئ چه ګنی په سمه لار باندِ روان دی۔ اے دَ آدم اولادَ! دَ هر عبادت په موقع باندِ

عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ وَّ كُلُوْا وَاشْرَبُوْا وَلَا تُسْرِفُوْا ۚ اِنَّهٗ

دَ هر مونځ په وخت | او خورئ | او څښئ | او فضول خرچي مه کوئ | بېشکه هغه

خپلې ښائسته جامې اغوندئ او حلال څيزونه خورئ او څښئ او اسراف مه کوئ بېشکه

لَا يُحِبُّ الْمُسْرِفِيْنَ ۝٣١ قُلْ مَنْ حَرَّمَ زِيْنَةَ اللّٰهِ الَّتِيْٓ ٣ع٢ ١٠

نهٔ خوښوی | فضول خرچي کوونکي | ووايه | چا حرام کړې ده | ښائست دَ الله | کوم چه

الله تعالیٰ دَ حد نه تيريدونکي نهٔ خوښوی. (اے پيغمبره!) ووايه چه دَ الله تعالیٰ هغه زينت چا حرام کړے دے

اَخْرَجَ لِعِبَادِهٖ وَالطَّيِّبٰتِ مِنَ الرِّزْقِ ۗ قُلْ

هغهٔ پيدا کړے دے | دَ خپلو بندګانو دَ پاره | او | پاکيزه څيزونه | له رزق نه | ووايه

چه خپلو بنديانو له ئے مقرر کړے دے او (چا) پاکيزه رزقونه (حرام کړي دي) ووايه

هِيَ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا خَالِصَةً يَّوْمَ الْقِيٰمَةِ ۗ

دا خو هغو خلقو دَ پاره دي | چه ايمان راوړي | دَ دُنيا په ژوند کښې | او خاص (طور باندې) | دَ قيامت په ورځ

چه دا څيزونه په دے دنيا کښې هم مؤمنانو له پيدا شوي دي او دَ قيامت په ورځ خو به خالص دَ هغوی دَ پاره

كَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ ۝٣٢ قُلْ

دغه شان | مونږ بيانوؤ | آيتونه | دَ پاره دَ هغې ډلې | چه پوهيږي | ووايه

دي. مونږ دغه شان خپل آيتونه دَ هغو خلقو دَ پاره په تفصيل سره بيانوو کوم چه پوهيږي. (اے پيغمبره!)

اِنَّمَا حَرَّمَ رَبِّيَ الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ

بېشکه حرام کړي دي | زما رب | دَ بے حيايئ خبرے | هغه چه ښکاره دي | له دے نه | او هغه چه | پټې دي

زما رب خو دَ بے حيايئ خبرے حرام کړي دي ، که څرګندے دي ، او که پټے.

وَالْاِثْمَ وَالْبَغْيَ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَاَنْ تُشْرِكُوْا بِاللّٰهِ مَا

او ګناه | او ظلم | ناحق | او دا چه | شريک مقرر کړئ | دَ الله سره | هغه چه

او دَ ګناه کارونه او برناحقه زياتے. او دا چه تاسو الله له شريک پيدا کړئ چه الله

لَمْ يُنَزِّلْ بِهٖ سُلْطٰنًا وَّاَنْ تَقُوْلُوْا عَلَى اللّٰهِ مَا

نهٔ دے نازل کړے هغهٔ | دَ دے | (څهٔ) دليل | او دا چه | تاسو وايئ | په الله باندې | هغه څه

دَ هغے هيڅ سند نهٔ دے رالیږلے. او دا چه تاسو په الله تعالیٰ باندې داسے خبرے وُتړئ

لَا تَعْلَمُوْنَ ۝٣٣ وَلِكُلِّ اُمَّةٍ اَجَلٌ ۚ فَاِذَا جَآءَ اَجَلُهُمْ

تاسو پرے نهٔ پوهيږئ | او هرے ډلے دَ پاره | يو وخت مقرر دے | پس کله چه راشي | دَ دوی وخت

چه تاسو پرے نهٔ پوهيږئ. او دَ هر قوم دَ پاره (دَ مهلت) يوه نيټه مقرر ده نو هر کله چه دَ هغوی نيټه پوره شي

لَا يَسْتَاْخِرُوْنَ سَاعَةً وَّ لَا يَسْتَقْدِمُوْنَ ۝٣٤ يٰبَنِيْٓ اٰدَمَ

نو نهٔ به وروستو شي دوی | يو ساعت | او | نهٔ به مخکښې شي | اے بنی آدمو!

نو نهٔ به يو ساعت وروستو کيدے شي او نهٔ به يو ساعت وړاندې کيدے شي. اے دَ آدم اولاده!

إِمَّا يَأْتِيَنَّكُمْ رُسُلٌ مِّنكُمْ يَقُصُّونَ عَلَيْكُمْ آيَاتِي
کہ راشی تاسوتہ | پیغمبران | لہ تاسو نہ | چہ بیان کری | ستاسو مخکښے | زما آیتونہ
کہ تاسو تہ ستاسو دَ قوم نہ پیغمبران راشی چہ زما حکمونہ درتہ اُوروی ـــــ
فَمَنِ اتَّقَىٰ وَأَصْلَحَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ
نو چا چہ پرهیز وکړو دَ کفر او شرک نہ | او اصلاح ئے وکړه | نو نہ بہ څۀ ویره وی | پہ دوی | او نۂ بہ دوی
نو چا چہ ځان بچ کړو او نیک کارونہ ئے وکړل نو پہ هغوی نۀ څۀ ویره شتہ او نۀ څۀ
يَحْزَنُونَ ۝٣٥ وَالَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَاسْتَكْبَرُوا عَنْهَا
غمژن وی | او کوم خلق چہ | دروغ وګڼړل | زمونږ آیتونہ | او تکبر ئے وکړو | لہ هغے نہ
غم ـ نو چا چہ زمونږ حکمونہ دروغ وګڼړل او دَ دے نہ ئے تکبر وکړو
أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ ۖ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ۝٣٦ فَمَنْ أَظْلَمُ
هم دا خلق | اوسیدونکی دَ دوزخ دی | دوی | پہ دِے کښے | همیشہ بہ وی | پس څوک | زیات ظالم دے
هغہ خلق دوزخیان دی ، هغوی بہ پہ دے کښے همیشہ وی ، نو دَ هغہ چا نہ لوئے
مِمَّنِ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا أَوْ كَذَّبَ بِآيَاتِهِ ۚ أُولَٰئِكَ
لہ هغۀ نہ | چا چہ وُتړل | پہ اللہ باندِ | دروغ | یا هغۀ دروغ کړل | دَ هغۀ آیتونہ | هم دغہ دی
ظالم څوک کیدے شی چہ پہ اللہ تعالیٰ باندِ دروغ تړی یا دَ هغۀ حکمونہ دروغ ګڼړی ، دَ دِے خلقو
يَنَالُهُمْ نَصِيبُهُم مِّنَ الْكِتَابِ ۖ حَتَّىٰ إِذَا جَاءَتْهُمْ
چہ وُبہ رسیږی دوی تہ | دَ دوی برخہ | لہ کتاب نہ | تردے چہ | هر کلہ | راشی دوی تہ
پہ نصیبہ کښے چہ څۀ لیکلی دی هغہ بہ دوی تہ ملاوُ شی ، تر دے چہ کلہ زمونږ فرښتے دَ دوی
رُسُلُنَا يَتَوَفَّوْنَهُمْ ۙ قَالُوا أَيْنَ مَا كُنتُمْ تَدْعُونَ
زمونږ رالیږلے شوے فرښتے | چہ قبض کړی روحونہ دَ دوی | وُبہ وائی | کوم ځائے دی | هغہ څۀ | چہ تاسو بہ بللل
دَ روح قبض کولو دَ پاره دَ دوی تہ راشی نو دوی تہ بہ ووائی چہ کوم ځائے دی هغہ (معبودان) کوم چہ
مِن دُونِ اللَّهِ ۖ قَالُوا ضَلُّوا عَنَّا وَشَهِدُوا عَلَىٰ أَنفُسِهِمْ
سوا دَ اللہ نہ | دوی بہ ووائی | هغہ ورک شول | لہ موتږ نہ | او ګواهی بہ ورکړی | پہ خپلو ځانونو
تاسو دَ اللہ تعالیٰ نہ سوا بلل ، دوی بہ ووائی هغہ خو موتږ نہ غیب شول او پہ خپل ځان بہ پہ خپلہ ګواهی وکړی
أَنَّهُمْ كَانُوا كَافِرِينَ ۝٣٧ قَالَ ادْخُلُوا فِي أُمَمٍ قَدْ خَلَتْ
چہ بیشکہ دوی | وُو . | کافران | وُبہ فرمائی اللہ | داخل شئ | پہ هغہ اُمتونو کښے | چہ تیر شوی دی
چہ دوی یقینًا کافران وو ـ اللہ تعالیٰ بہ ورتہ وفرمائی چہ دَ هغہ امتونو سره پہ دوزخ کښے داخل
مِن قَبْلِكُم مِّنَ الْجِنِّ وَالْإِنسِ فِي النَّارِ ۖ كُلَّمَا دَخَلَتْ
لہ تاسو نہ وړاندِ | لہ پیریانو نہ | او لہ بنیادمونہ | پہ اور کښے | هر کلہ چہ | داخل شی
شئ چہ تاسو نہ وړاندِ تیر شوی دی کۀ پیریان دی او کۀ بنیادم دی ـ هر کلہ چہ یو ټولے بہ دوزخ

أُمَّةٌ لَّعَنَتْ أُخْتَهَا ۖ حَتَّىٰ إِذَا ادَّارَكُوا فِيهَا

يو قوم | نو لعنت به كوي | د ځان په شان په بل قوم | ترڅو چه | هركله | جمع شي | په دے كښے

ته ځي نو په بل ټولى به لعنت كوي ترڅو چه هغه ټول په دے كښے جمع

جَمِيعًا قَالَتْ أُخْرَاهُمْ لِأُولَاهُمْ رَبَّنَا هَٰؤُلَاءِ

ټول | وُبه وائي | وروستنۍ ډله د دوی | په حق د وړومبنۍ كښے | اے زمونږ ربه! | دوی

شي، نو هر يو وروستنے ټولے به د وړاندينى ټولى په حقله وائي چه اے زمونږ ربه داخلق

أَضَلُّونَا فَآتِهِمْ عَذَابًا ضِعْفًا مِّنَ النَّارِ ۖ قَالَ لِكُلٍّ ضِعْفٌ

ګمراه كړو مونږ | پس وركړه دوی ته | عذاب | دوچند | له دوزخ ته | وُبه فرمائي | (چه) هر يو ته دوچند دے

دی چه مونږ ئے ګمراه كړی وو نو دوئ له د اور دوه دونړه عذاب وركړه الله تعالى به ورته وفرمائي چه عذاب

وَلَٰكِن لَّا تَعْلَمُونَ ﴿٣٨﴾ وَقَالَتْ أُولَاهُمْ لِأُخْرَاهُمْ

ليكن | تاسو نۀ پوهيږئ | او | وُبه وائي | د دوئ وړومبنۍ (ډله) | وروستنۍ ته

هر يو له دوه دونړه دے خو تاسو پرے ناخبره يئ. او وړاندينے ټولے به وروستنى ته ووائي (كه مونږ د عذاب

فَمَا كَانَ لَكُمْ عَلَيْنَا مِن فَضْلٍ فَذُوقُوا الْعَذَابَ بِمَا

چه نشته دے | تاسو ته | په مونږ باندې | (هيڅ) فضيلت | نو وُڅكئ | عذاب | په وجه د هغه عمل

قابل يُو) نو تاسو ته (هم) هم زمونږ په مقابله كښے هيڅ فضيلت حاصل نۀ دے نو د خپل عمل په وجه د عذاب

كُنتُمْ تَكْسِبُونَ ﴿٣٩﴾ إِنَّ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَاسْتَكْبَرُوا

چه تاسو به كولو | بيشكه | كوم چه | دروغ كړل | زمونږ ايتونه | او تكبر ئے وكړو

خوند وُڅكئ، بيشكه چا چه زمونږ ايتونه دروغ وګڼړل او د هغے نه ئے تكبر

عَنْهَا لَا تُفَتَّحُ لَهُمْ أَبْوَابُ السَّمَاءِ وَلَا يَدْخُلُونَ

له هغے نه | نۀ به شي پرانستلے | دوی ته | دروازے | د اسمان | او نۀ | به دوی داخليږي

وكړو، هغوی ته به د اسمان دروازے هيڅكله پرانستلے نۀ شي او جنت ته به تر هغے وخته

الْجَنَّةَ حَتَّىٰ يَلِجَ الْجَمَلُ فِي سَمِّ الْخِيَاطِ ۚ وَكَذَٰلِكَ

په جنت كښے | ترڅو چه | ننوځي اُوښ | په سُم كښے | د ستنے | او دغه شان

ننوتلے نۀ شي چه يو اُوښ د ستنے په سُم كښے تير نۀ شي، او مونږ مجرمانو

نَجْزِي الْمُجْرِمِينَ ﴿٤٠﴾ لَهُم مِّن جَهَنَّمَ مِهَادٌ وَمِن فَوْقِهِمْ

مونږ سزا وركوو | مجرمانو ته | دوی له به وی | له دوزخ نه | بچاؤنړه | او د پاسه د دوی نه

له هم داسے بدله وركوو د هغوی د لاندې به د اور بچاؤنړه غوړيدلی وی او د پاسه به ئے

غَوَاشٍ ۚ وَكَذَٰلِكَ نَجْزِي الظَّالِمِينَ ﴿٤١﴾ وَالَّذِينَ آمَنُوا

د اغوستنے څيز | او دغه شان | مونږ بدله وركوو | ظالمانو ته | او څوك چه | ايمان راوړی

د اور څادر (اغوستے) وی. او مونږ دغه شان ظالمانو ته سزا وركوو او هغه خلق چه ايمان ئے راوړی

وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَا نُكَلِّفُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَآ ز
او عملونه ئې وکړل | نیک | مونږ تکلیف نۀ ورکوو | هیڅ نفس ته | مګر | د دهٔ د طاقت مطابق
او نیک کارونه ئې کړی وی ، نو مونږ یو کس له هم د هغهٔ د طاقت نه زیات تکلیف نۀ ورکوو

اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ ج هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿۴۲﴾ وَنَزَعْنَا
هم دا خلق دی | جنت والا | دوی به | په هغې کښې | همیشه وی | او مونږ به راوُباسو
هم دا خلق جنتیان دی دوی به همیشه په دے کښې وی . او د دوی په زړونو

مَا فِيْ صُدُوْرِهِمْ مِّنْ غِلٍّ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهِمُ الْاَنْهٰرُ ج
څۀ چه | د دوی په سینو کښې دی | له کینے نه | بهیږی به | د دے لاندې | نهرونه
کینے چه د یو بل خلاف څۀ دنیوی کینه پرته وه هغه به مونږ لرے کړو او د دوی (د قدمونو) لاندې نهرونه بهیږی

وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ هَدٰىنَا لِهٰذَا قف وَمَا كُنَّا
او دوی به ووائی | ټول تعریف د | الله د پاره | چا چه | لاره وښوده مونږ ته | د دے (جنت) | او | نه وُو مونږ
او دوی به ووائی چه ټول تعریفونه الله تعالیٰ د پاره دی چا چه مونږ ته دا لاره وښودله او که الله تعالیٰ راته دا

لِنَهْتَدِيَ لَوْلَآ اَنْ هَدٰىنَا اللّٰهُ ج لَقَدْ جَآءَتْ رُسُلُ رَبِّنَا
چه مونږ لار موندلے | که چرته نه وے کړے هدایت مونږ ته | الله | بیشکه | راغلی وُو | پیغمبران | زمونږ د رب
لاره نۀ ښودله نو مونږ خو پخپله موندلے نۀ شوه مونږ ته د الله تعالیٰ پیغمبران په حقه

بِالْحَقِّ ط وَنُوْدُوْٓا اَنْ تِلْكُمُ الْجَنَّةُ اُوْرِثْتُمُوْهَا بِمَا
د حق دین سره | او دوی ته به آواز وشی | چه دا | جنت دے | تاسو به د دے وارثان یئی | د هغو عملونو په بدله کښې
راغلی دی او یو آواز به ورته وُشی چه دا جنت تاسو ته د خپلو (نیکو) عملونو په سبب

كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۴۳﴾ وَنَادٰٓى اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ اَصْحٰبَ النَّارِ
چه تاسو به (دنیا کښې) کول | او آواز به وُکړی | جنتیان | دوزخیانو ته
درکړے شوے دے او بیا به جنتیان دوزخیانو ته آواز وکړی چه

اَنْ قَدْ وَجَدْنَا مَا وَعَدَنَا رَبُّنَا حَقًّا فَهَلْ وَجَدْتُّمْ مَّا
چه | مونږ خو بیا موندل | چه څۀ وعده کړے وه مونږ سره | زمونږ رب | رښتینے | پس آیا | وموندل تاسو (هم) | هغه څۀ
مونږ خو د خپل رب ټولے وعدے رښتینے بیا موندلے ، نو آیا تاسو هم د خپل رب (د عذاب)

وَعَدَ رَبُّكُمْ حَقًّا ط قَالُوْا نَعَمْ ج فَاَذَّنَ مُؤَذِّنٌ م بَيْنَهُمْ
چه وعده کړے وه | ستاسو رب | حقه | دوی به ووائی | هو ! | بیا به آواز وکړی | یو آواز کوونکے | د دوی په مینځ کښې
وعدے رښتینے بیا موندلے که نا ؟ هغوی به ووائی چه هو ! بیا به یو آواز ورکوونکے د دوی د مینځ نه

اَنْ لَّعْنَةُ اللّٰهِ عَلَى الظّٰلِمِيْنَ ﴿۴۴﴾ لا الَّذِيْنَ يَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ
چه | لعنت دے | د الله | په ظالمانو باندې | هغه چه | منع کول به ئې (خلق) | د الله د لارے نه
آواز وکړی چه په ظالمانو باندې د الله لعنت دے ، چه خلق به ئې د الله تعالیٰ د لارے نه منع کول

وَيَبْغُوْنَهَا عِوَجًا ۚ وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ كٰفِرُوْنَ ﴿٤٥﴾ وَبَيْنَهُمَا

اولټولو ئې په دې کښې | کوږوالے | او دوی | دَ آخرت | منکران دی | او دَ دواړو په لوترمينځ

او په هغې کښې به ئې کوږوالے لټولو او دوی دَ آخرت نه هم منکر وو ۔ او دَ دې دواړو په لوترمينځ

حِجَابٌ ۚ وَعَلَى الْاَعْرَافِ رِجَالٌ يَّعْرِفُوْنَ كُلًّا ۢ بِسِيْمٰىهُمْ ۚ

به يوه پرده وی | او په اعراف باندِ | به سړی وی | چه پيژنی به دوی | هريو | دَ دوی دَ مخونو نه

به يوه پرده وی ، او دَ هغې په اُوچت سر (اعراف) به ځنې خلق دی چه هر يو (جنتی او دوزخی) به په خپلو خپلو نخښو

وَنَادَوْا اَصْحٰبَ الْجَنَّةِ اَنْ سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ ۣ لَمْ يَدْخُلُوْهَا

او دوی به آواز وکړی | جنتيانو ته | چه | سلام دِوی | په تاسو | دوی به لا نهٔ وی داخل شوی په هغې کښې

پيژنی او جنتيانو ته به آواز وکړی ، چه په تاسو دِ سلامتيا دی ، دا (اعراف خلق) به لا په جنت کښې نهٔ وی داخل

وَهُمْ يَطْمَعُوْنَ ﴿٤٦﴾ وَاِذَا صُرِفَتْ اَبْصَارُهُمْ تِلْقَآءَ اَصْحٰبِ النَّارِ ۙ

او دوی | به طمع کوی | او هر کله چه | وګرځولے شی | سترګے دَ دوی | په طرف | دَ دوزخيانو

شوی خو اميدوار به ناست وی ، او څهٔ وخت چه دَ دوی سترګے دَ دوزخيانو طرف ته وګرځی

قَالُوْا رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا مَعَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٤٧﴾ وَنَادٰٓى

نو وُبه وائی | اے زمونږ ربه! | مهٔ بوځئے کوه مونږ | ظالمانو خلقو سره | او آواز به وکړی

نو وُبه وائی چه اے زمونږ ربه! مونږ دَ ظالمانو دَ ډلے سره مهٔ شاملوه ۔ او دَ اعراف والا به

اَصْحٰبُ الْاَعْرَافِ رِجَالًا يَّعْرِفُوْنَهُمْ بِسِيْمٰىهُمْ قَالُوْا

دَ اعراف خلق | (څهٔ) خلقو ته | چه دوی به پيژنی هغوی | دَ هغوی دَ نښو نه | وُبه وائی

هغو خلقو ته کوم چه به هغوی دَ دوی دَ نخښو نه پيژنی آواز به وکړی (او) وُبه وائی

مَآ اَغْنٰى عَنْكُمْ جَمْعُكُمْ وَمَا كُنْتُمْ تَسْتَكْبِرُوْنَ ﴿٤٨﴾ اَهٰٓؤُلَآءِ

چه په کار را نغلے | ستاسو | ډلے ستاسو | او نهٔ دَ فخر هغه خبرے چه تاسو به کولے . آيا هم دا هغه (خلق)

چه ستاسو لښکرے او ستاسو غرور کول ستاسو هيڅ په کار را نهٔ غلل ، او ګورئ دا (جنتيان)

الَّذِيْنَ اَقْسَمْتُمْ لَا يَنَالُهُمُ اللّٰهُ بِرَحْمَةٍ ۭ اُدْخُلُوا الْجَنَّةَ

دَ کوم (په نسبت) | چه تاسو قسمونه خوړل | چه دوی ته به نهٔ رسوی | الله | څهٔ رحمت | داخل شئ تاسو | په جنت کښې

ګنی هغه خلق نهٔ دی چه تاسو به پرے قسمونه خوړل چه په دوی به الله هيڅکله رحمت نهٔ کوی (نن هم هغوی ته وويلے شول)

لَا خَوْفٌ عَلَيْكُمْ وَلَآ اَنْتُمْ تَحْزَنُوْنَ ﴿٤٩﴾ وَنَادٰٓى اَصْحٰبُ النَّارِ

نشته دے هيڅ ويره | په تاسو | او نهٔ به تاسو | غمژن يئ | او آواز به وکړی | دوزخيان

چه) جنت ته ورننوځئ ، نهٔ در له اندېښنه شته او نهٔ څهٔ غم ۔ او دوزخيان به جنتيانو ته

اَصْحٰبَ الْجَنَّةِ اَنْ اَفِيْضُوْا عَلَيْنَا مِنَ الْمَاۗءِ اَوْ مِمَّا

جنتيانو ته | چه | تاسو را توے کړئ | په مونږ باندِ | څهٔ اُوبهٔ | يا (څهٔ) له هغې نه

آواز وکړی ، چه په مونږ باندِ لږے شان اوبهٔ را توے کړئ يا څهٔ چه الله تاسو ته دَ خوراک دَ پاره

رَزَقَكُمُ اللّٰهُ ؕ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ حَرَّمَهُمَا عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ﴿۵۰﴾
درکړی دی تاسو ته | الله | دوی به وائی دوی | بیشکه الله | حرام کړی دی دا دواړه | په کافرانو باندې۔
چه درکړی دی الله هغې نه مونږ له هم راکړئ، هغوی به ووائی چه الله تعالیٰ دا دواړه څیزونه په کفارو حرام کړی دی
الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا دِيْنَهُمْ لَهْوًا وَّلَعِبًا وَّغَرَّتْهُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا ۚ
کوم چه | جوړ کړو | دین خپل | لوبه | او تماشه | او دوکه ورکړه دوی ته | ژوند | دَ دُنیا
هغو خلقو باندې چا چه خپل دین نه لوبه تماشه جوړه کړې وه او چا له چه دَ دنیا ژوند دوکه ورکړې وه
فَالْيَوْمَ نَنْسٰهُمْ كَمَا نَسُوْا لِقَآءَ يَوْمِهِمْ هٰذَا ۙ وَمَا
پس نن ورځ | به هیر کړو مونږ دوی | لکه څنګه چه هیر کړې وو دوی | ملاقات | دَ دې ورځې | او لکه څنګه (چه)
نو نن به ئې مونږ هم داسې هیر کړو لکه هغوی چه دَ دې ورځې ملاقات هیر کړې وو ، او زمونږ دَ
كَانُوْا بِاٰيٰتِنَا يَجْحَدُوْنَ ﴿۵۱﴾ وَلَقَدْ جِئْنٰهُمْ بِكِتٰبٍ فَصَّلْنٰهُ
دوی زمونږ دَ ایتونو نه انکار کولو | او بیشکه مونږ لیږلې دې دوی ته | یو کتاب | چه مونږ په تفصیل سره بیان کړې دی
ایتونو نه به ئې انکار کولو ۔ او دوی ته مونږ داسې کتاب رالیږلې دې چه په خپل علم مو
عَلٰى عِلْمٍ هُدًى وَّرَحْمَةً لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴿۵۲﴾ هَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّا
په علم سره | هدایت | او رحمت (دې) | دَ هغو دَ پاره | چه ایمان راوړی | دوی انتظار نه کوی | مګر
ښه واضحه کړې دې او دَ مؤمنانو دَ پاره هدایت او رحمت دې ۔ آیا دا خلق دَ دې دَ رښتینوالی او
تَاْوِيْلَهٗ ؕ يَوْمَ يَاْتِيْ تَاْوِيْلُهٗ يَقُوْلُ الَّذِيْنَ نَسُوْهُ
دَ دې دَ انجام | په کومه ورځ چه | ښکاره شی | دَ دې انجام | (نو) وُبه وائی | هغه خلق | چا چه هیر کړې وو دا
انجام ښکاره کید و انتظار کوی، په کومه ورځ چه دَ دې انجام ښکاره شی نو کوم خلقو چه دا وړاندې هیر کړې وو
مِنْ قَبْلُ قَدْ جَآءَتْ رُسُلُ رَبِّنَا بِالْحَقِّ ۚ فَهَلْ لَّنَا
له دې نه وړاندې | چه بیشکه راغلی وو | پیغمبران | زمونږ دَ رب | په رښتیا سره | پس آیا | شته دې مونږ دَ پاره
وُبه وائی چه بیشکه زمونږ دَ رب پیغمبرانو حقې خبرې راوړې وې نو آیا اوس مونږ دَ پاره څوک
مِنْ شُفَعَآءَ فَيَشْفَعُوْا لَنَآ اَوْ نُرَدُّ فَنَعْمَلَ غَيْرَ الَّذِيْ
څوک سفارشی | چه سفارش وکړی | زمونږ | یا مونږ واپس ولیږی | چه مونږ عمل وکړو | خلاف دَ هغې
سفارش کونکې شته چه زمونږ سفارش وکړی یا مونږ واپس واستولې شو نو دَ پخوانی عمل نه بالکل بدل
كُنَّا نَعْمَلُ ؕ قَدْ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ وَضَلَّ عَنْهُمْ مَّا
کوم چه مونږ کولو | بیشکه | نقصان ورکړو دوی | خپلو ځانونو ته | او ورک شول | له دوی نه | هغه څه
عملونه به وکړو ، یقیناً دِې خلقو خپل ځانونه په نقصان کښې واچول ، او کوم دروغ چه به ئې جوړول
كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ﴿۵۳﴾ اِنَّ رَبَّكُمُ اللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ
چه دوی به دروغ تړل | بیشکه | ستا رب | (هغه) الله دې | کوم چه | پیدا کړل | آسمانونه
هغه ټول ترې نه خطا شول ۔ بیشکه ستاسو رب هغه الله دې چه آسمانونه او مزکه ئې په شپږو

وَالْأَرْضَ فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوَىٰ عَلَى الْعَرْشِ ۚ يُغْشِي

او زمکه | په شپږو ورځو کښې | بیا قائم شو | په عرش باندې | هغه پرده اچوي

ورځو کښې پیدا کړل ، بیا په عرش قائم شو ، هغه د شپې په

اللَّيْلَ النَّهَارَ يَطْلُبُهُ حَثِيثًا وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ وَالنُّجُومَ

د شپې | په ورځ باند | چه د دې نه وروستو راځي | په منډه منډه | او نمر | او سپوږمۍ | او ستوري

تیاره ې باندې د ورځې رڼا پټوي ، په دې شان چه (شپه په ورځې پسې) په منډه منډه راځي او نمر او سپوږمۍ او ستوري

مُسَخَّرَاتٍ بِأَمْرِهِ ۗ أَلَا لَهُ الْخَلْقُ وَالْأَمْرُ ۗ تَبَارَكَ اللَّهُ

لګیا دي | په حکم د هغه | واورئ ! | هم د هغه د پاره دي | پیدا کول | او حکم ورکول | ډیر د برکت خاوند دے الله

ستوري د هغه د حکم تابع دي خبر شئ چه ټول مخلوق هم د هغه دے او هم د هغه حکم پکښې چلیږي الله د برکتونو

رَبُّ الْعَالَمِينَ ﴿٥٤﴾ ادْعُوا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَخُفْيَةً ۚ إِنَّهُ لَا يُحِبُّ

پروردګار دے د جهانونو | وُبلئ | خپل رب | په عاجزئ | او په پټه | بیشکه هغه | نه خوښوي

مالک دے د ټول مخلوق پالونکے دے تاسو خپل رب ته په زارئ او په پټه پټه خواست کوئ ، هغه د حد نه تیریدونکي

الْمُعْتَدِينَ ﴿٥٥﴾ وَلَا تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ بَعْدَ إِصْلَاحِهَا وَادْعُوهُ

د حد نه تیریدونکي | او فساد مه خورووئ | په زمکه کښې | پس | د سمیدو د دې نه | او بلئ هغه

خلق نه خوښوي . او د مزکے په مخ د بند وبست سمیدو نه پس فساد مه کوئ او الله تعالی نه د

خَوْفًا وَطَمَعًا ۚ إِنَّ رَحْمَتَ اللَّهِ قَرِيبٌ مِنَ الْمُحْسِنِينَ ﴿٥٦﴾

په وېره | او په امید سره | بیشکه | رحمت | د الله | نزدې دے | نیکي کوونکو ته

د وېرې او طمع نه مینه خواستونه کوئ ، بیشکه د الله تعالی رحمت نیکانو خلقو ته ډیر نزدے دے .

وَهُوَ الَّذِي يُرْسِلُ الرِّيَاحَ بُشْرًا بَيْنَ يَدَيْ رَحْمَتِهِ ۖ حَتَّىٰ

او دے هغه ذات دے | چه لیږي | هواګانې | زیرے ورکوونکي | وړاندې له رحمت (باران) خپل نه | تر دې چه

او الله تعالی هغه ذات دے چه د خپل رحمت (باران) نه وړاندې بادونه د زیري په طور رالیږي ، هرکله چه

إِذَا أَقَلَّتْ سَحَابًا ثِقَالًا سُقْنَاهُ لِبَلَدٍ مَيِّتٍ فَأَنْزَلْنَا

هرکله را اوچت کړي | دریځې | درنې | نو روانې کړو مونږ دا | طرف د یو ښار | مړه ته | بیا مونږ ورولو

دا بادونه درنې درنې وریځې اوچتې کړي نو مونږ ئې یو مړې (اوچې) علاقې ته ولیږو او باران

بِهِ الْمَاءَ فَأَخْرَجْنَا بِهِ مِنْ كُلِّ الثَّمَرَاتِ ۚ كَذَٰلِكَ

له دې نه | اوبه | بیا مونږ راوباسو | په دې سره | هر قسمه میوه | دغه شان

پرې ووروو ، بیا د دې په ذریعه هر قسم میوې پیدا کوو ، (باد ساتئ) دغه شان مونږ

نُخْرِجُ الْمَوْتَىٰ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ ﴿٥٧﴾ وَالْبَلَدُ الطَّيِّبُ يَخْرُجُ

مونږ به راوباسو | مړي | د پاره د دې چه | تاسو نصیحت قبول کړئ | او ښار | پاکیزه | راوځي

به مړي دوباره ژوندي کړو شاید چه تاسو ترې نه سبق واخلئ او آباده (سمسوره) زمکه خپل ښېګړې د

نَبَاتُهٗ بِاِذْنِ رَبِّهٖ ۚ وَالَّذِیْ خَبُثَ لَا یَخْرُجُ اِلَّا نَكِدًا ؕ

زرغونه د هغې | د هغې د رب په حکم | او کومه (زمکه) | چه خرابه ده | نه راوځي (د هغې نه) | مګر په کمه (زرغونه)

د خدائ په حکم راوباسی او کومه (زمکه) چه خرابه وی هغې نه صرف بیکاره زرغونه پیدا کیږی

كَذٰلِكَ نُصَرِّفُ الْاٰیٰتِ لِقَوْمٍ یَّشْكُرُوْنَ ﴿۵۸﴾ لَقَدْ

دغه شان | مونږ بیا بیا بیانوو | آیتونه | هغه خلقو د پاره | چه شکر اداکوی | بیشکه

مونږ دغسې بیا بیا خپلې نخښې بیانوو هغو خلقو ته چه شکر ادا کوی۔ یقیناً مونږ

اَرْسَلْنَا نُوْحًا اِلٰى قَوْمِهٖ فَقَالَ یٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ

مونږ لیږلے وو | نوح | د هغه قوم ته | پس هغه ووئیل | اے زما قومه! | عبادت کوئ | د الله

نوح (علیه السلام) د هغه خپل قوم ته ولیږلو نو ورته ئے ووئیل چه اے زما قومه! د الله تعالیٰ عبادت کوئ

مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَیْرُهٗ ؕ اِنِّیْۤ اَخَافُ عَلَیْكُمْ عَذَابَ یَوْمٍ عَظِیْمٍ ﴿۵۹﴾

نشته ستاسو د پاره | څوک بل معبود | سوا د هغه نه | بیشکه زه | اویریږم | په تاسو باندې | له عذابه | د ورځې | لوئې نه

د هغه نه سوا ستاسو بل معبود نشته ، ماسره ستاسو په حقله د لوئې ورځې د (هولناک) عذاب اندیښنه ده

قَالَ الْمَلَاُ مِنْ قَوْمِهٖۤ اِنَّا لَنَرٰىكَ فِیْ ضَلٰلٍ مُّبِیْنٍ ﴿۶۰﴾ قَالَ

ووئیل | سردارانو | د هغه د قوم نه | بیشکه | مونږ وینو تا | په ګمراهۍ ښکاره کښې | هغه ووئیل

د هغه د قوم سردارانو ورته جواب ورکړو چه مونږ ته خو دا ښکاري چه ته په ښکاره ګمراهۍ کښې پروت یې، نوح

یٰقَوْمِ لَیْسَ بِیْ ضَلٰلَةٌ وَّلٰكِنِّیْ رَسُوْلٌ مِّنْ رَّبِّ الْعٰلَمِیْنَ ﴿۶۱﴾

اے زما قومه! | نشته په ما کښې | څه ګمراهي | او لیکن زه خو | یو رسول یم | د پروردګار | د ټولو جهانونو

ووئیل اے زما قومه! ما کښې د ګمراهۍ هیڅ خبره نشته بلکه زه خو د ټولو جهانونو د پروردګار له طرف نه رالیږلے شوے یم

اُبَلِّغُكُمْ رِسٰلٰتِ رَبِّیْ وَاَنْصَحُ لَكُمْ وَاَعْلَمُ مِنَ اللّٰهِ

زه رسوم تاسو ته | پیغامونه | د خپل رب | او نصیحت کوم | تاسو ته | او پوهیږم | د الله د طرف نه

تاسو ته د خپل پروردګار حکمونه رسوم ، او ستاسو خیرخواه یم او د الله تعالیٰ د طرف نه ما ته د هغو

مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۶۲﴾ اَوَعَجِبْتُمْ اَنْ جَآءَكُمْ ذِكْرٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ

په هغه څه | چه تاسو نه پوهیږئ | ایا تاسو تعجب کوئ | چه راغے تاسو ته | نصیحت | ستاسو د رب له طرف نه

خبرو علم دے په کومو چه تاسو نه پوهیږئ ۔ ایا تاسو تعجب کوئ چه تاسو ته ستاسو د رب د طرف نه څه نصیحت خبره

عَلٰى رَجُلٍ مِّنْكُمْ لِیُنْذِرَكُمْ وَلِتَتَّقُوْا وَلَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ﴿۶۳﴾

د یو سړی په (ذریعه) | له تاسو نه | چه هغه وویروی تاسو | او تاسو بچ شئ | او چه په تاسو | رحم وکړے شی

د داسې سړی په ذریعه راغلے ده چه هم له تاسو نه دے چه تاسو (د نافرمانۍ د انجام نه) ووېروی او تاسو پرهیزګاره شئ او په

فَكَذَّبُوْهُ فَاَنْجَیْنٰهُ وَالَّذِیْنَ مَعَهٗ فِی الْفُلْكِ وَاَغْرَقْنَا

بیا دوی هغه دروغژن کړو | نو مونږ خلاص کړو | او هغوی ته چه د هغه سره وو | په کشتۍ کښې | او مونږ غرق کړل

تاسو رحم وکړے شی بیا هغوی د هغه دروغژن وګڼلو نو مونږ هغه او هغه خلق چه په کشتۍ کښې د هغه سره وو

ع ٦ ١٥

الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا ؕ اِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمًا عَمِيْنَ ٦٤

هغه خلق چه | دروغ ئې وګڼل | زمونږ ايتونه | بيشکه دوی | وو | قوم | ړانده

وو خلاصے ورکړو او چا چه زمونږ ايتونه دروغ ګڼلی وو هغوی مو ډوب کړل ، دوئ يقينًا ( په زړونو ) ړانده شوی وو

وَاِلٰى عَادٍ اَخَاهُمْ هُوْدًا ؕ قَالَ يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ

او ( وموليږلو قوم د ) عاد ته | د دوی ورور | هود | دهٔ ووئيل | اے زما قومه ! | عبادت وکړئ | د الله

او ( د عاد قوم ) عاد طرف ته مونږ د دوی ورور هود ولېږلو هغهٔ ورته ووئيل چه ای زما قومه ! د الله تعالیٰ عبادت کوئ

مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ ؕ اَفَلَا تَتَّقُوْنَ ٦٥ قَالَ الْمَلَاُ

نشته دے تاسو د پاره | هڅوک بل معبود | سوا د هغهٔ نه | پس ايا تاسو نهٔ ويرېږئ | ووئيل | سردارانو

چه بے د هغهٔ نه ستاسو بل معبود نشته لو ايا تاسو د هغهٔ ( د نافرمانئ نه ) نهٔ ويرېږئ ، د قوم کافرو غټانو ورته

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ قَوْمِهٖۤ اِنَّا لَنَرٰىكَ فِيْ سَفَاهَةٍ وَّاِنَّا لَنَظُنُّكَ

کوم چه | کفر وکړو | د هغهٔ له قوم نه | بيشکه مونږ وينو تا | په بے عقلئ کښے | او بيشکه مونږ ګمان کوو په تا

جواب ورکړو ، چه مونږ نه خو دا سے ښکاری چه ته په حماقت کښے پروت يې او زمونږ ګمان دے چه

مِنَ الْكٰذِبِيْنَ ٦٦ قَالَ يٰقَوْمِ لَيْسَ بِيْ سَفَاهَةٌ وَّلٰكِنِّيْ

له دروغژنو نه | هغهٔ ووئيل | اے زما قومه ! | نشته دے ما کښے | څهٔ بے وقوفي | او ليکن زهٔ

ته په دروغژنو کښے شامل يې ، هغهٔ ووئيل چه زما قومه ! په ما کښے پوښے قدر له کم عقلی هم نشته بلکه زهٔ خو

رَسُوْلٌ مِّنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ ٦٧ اُبَلِّغُكُمْ رِسٰلٰتِ رَبِّيْ

يو رسول يم | د ټولو جهانونو د پروردګار | زهٔ تاسو ته رسوم | پيغامونه | د خپل رب

د ټول کائنات د رب د طرف نه رالېږلے شوے يم ۔ زهٔ تاسو ته د خپل پروردګار حکمونه در رسوم ۔ او

وَاَنَا لَكُمْ نَاصِحٌ اَمِيْنٌ ٦٨ اَوَعَجِبْتُمْ اَنْ جَآءَكُمْ ذِكْرٌ

او زهٔ يم ستاسو | خيرخواه | امانت دار | او ايا تاسو تعجب کوئ | چه راغے تاسو ته | نصيحت

زهٔ ستاسو ريښتينے خيرخواه يم ۔ ايا تاسو په دے خبره تعجب کوئ چه تاسو ته د الله تعالیٰ د طرف نه

مِّنْ رَّبِّكُمْ عَلٰى رَجُلٍ مِّنْكُمْ لِيُنْذِرَكُمْ ؕ وَاذْكُرُوْۤا

ستاسو د رب له طرف نه | په يو سړی باندِ | له تاسو نه | د پاره د دے چه ووېروی تاسو | او ياد کړئ

ستاسو په يو سړی باندِ نصيحت راغے ؟ چه تاسو د نافرمانئ د انجام نه ) ويروی ۔ او ياد کړئ کله چه د نوح

اِذْ جَعَلَكُمْ خُلَفَآءَ مِنْۢ بَعْدِ قَوْمِ نُوْحٍ وَّزَادَكُمْ

کله چه | هغهٔ جوړ کړئ تاسو | جانشينان | پس له | قومه | د نوح نه | او زيات ئې درکړو تاسو ته

د قوم نه پس هغهٔ تاسو جانشين مقرر کړئ ، او په قد قامت ( او طاقت ) کښے

فِي الْخَلْقِ بَصْۜطَةً ۚ فَاذْكُرُوْۤا اٰلَآءَ اللّٰهِ لَعَلَّكُمْ

جسامت | لوئے | پس ياد کړئ | نعمتونه | د الله | د پاره د دے چه تاسو

ئے د نورو نه زيات کړئ ، پس د الله تعالیٰ نعمتونه ياد کړئ چه په دنيا او اخرت

وَنَذَرَ وَحْدَهٗ اللّٰهَ لِنَعْبُدَ اَجِئْتَنَا قَالُوْٓا ﴿٦٩﴾ تُفْلِحُوْنَ

او پرېږدو | چه يوازې دے | دَ الله | دَ الله | چه مونږ عبادت وکړو | ايا ته را غلے يې مونږ ته | دوی وويل | کامياب شئ

کښې کامياب شئ ۔ هغوی ورته وويل بيا! ته مونږ ته په دے پسے راغلے يې چه مونږ يوازے دَ الله تعالىٰ

تَعِدُنَآ بِمَا فَاْتِنَا اٰبَآؤُنَا ۚ كَانَ يَعْبُدُ مَا

دَ کوم چه ته مونږ سره وعده کوے | هغه (عذاب) | پس راوله په مونږ | زمونږ پلار نيکه | دَ کومو چه عبادت کولو | هغه

عبادت شروع کړو او دَ پلار نيکه نو رټول معبودان پرېږدو ۔ بنه ده! هغه عذاب اوس راوله چه مونږ ترے نه ويروے

عَلَيْكُمْ قَدْ وَقَعَ قَالَ ﴿٧٠﴾ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ كُنْتَ اِنْ

په تاسو باندِ | واجب شوے دے | هغهٔ ووئيل | له رښتيا ويونکو نه | ته يې | که چرے

که چرے ته د رښتينو يې ۔ هودٓ ووئيل (که هم داخبره وی نو) ستاسو دَ رب دَ طرف نه په تاسو

فِيْٓ اَسْمَآءٍ اَتُجَادِلُوْنَنِيْ ۗ وَّغَضَبٌ رِجْسٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ

دَ هغه نامو (په حقله) | ايا تاسو جګړه کوئ ما سره | او قهر | عذاب | ستاسو دَ رب له طرف نه

عذاب او غضب واقع شو ، ايا تاسو ما سره په داسے نومونو باندِ جګړه کوئ

بِهَا اللّٰهُ مَّا نَزَّلَ وَاٰبَآؤُكُمْ اَنْتُمْ سَمَّيْتُمُوْهَآ

په هغے | الله | چه نهٔ دے نازل کړے | او ستاسو پلارانو | تاسو | کوم نومونه چه ايښې دی

چه تاسو او ستاسو پلارانو پخپله ايښې دی ، او الله تعالىٰ دَ هغے هيڅ سند نهٔ دے

فَاَنْجَيْنٰهُ ﴿٧١﴾ مِنَ الْمُنْتَظِرِيْنَ مَعَكُمْ اِنِّيْ فَانْتَظِرُوْٓا ۗ مِنْ سُلْطٰنٍ

پس خلاص کړو مونږ هغهٔ ته | له انتظار کوونکونه يم | تاسو سره | زهٔ (هم) | پس تاسو انتظار کوئ | څهٔ سند

رالېږلے نو تاسو هم انتظار کوئ ، زهٔ هم تاسو سره انتظار کوم ـ نو مونږ هغه او

كَذَّبُوْا الَّذِيْنَ دَابِرَ وَقَطَعْنَا مِّنَّا بِرَحْمَةٍ مَعَهٗ وَالَّذِيْنَ

چه دروغ يې ګڼړل | جرړه دَ هغو خلقو | او پريکړله مونږ | په خپل رحمت سره | دهٔ سره وو | او هغو ته چه

او دَ هغهٔ ملګری په خپل رحمت سره بچ کړل او دَ هغو خلقو جرړے مو پرے کړے چه زمونږ اٰيتونه يې

صٰلِحًا اَخَاهُمْ وَاِلٰى ثَمُوْدَ ﴿٧٢﴾ ع مُؤْمِنِيْنَ وَمَا كَانُوْا بِاٰيٰتِنَا

ع ٩

صالح ؑ | دَ دوی ورور | او (وليږلو قوم دَ) ثمود ته | ايمان راوړونکی | او دوی نهٔ وو | زمونږ اٰيتونه

دروغ ګڼړل او هغوی هيڅ کله ايمان نهٔ راوړی ـ او ثمود يانو ته مو دَ هغوی ورور صالح عليه السلام وليږلو

تَاْتِكُمْ قَدْ جَآءَ غَيْرُهٗ ۗ مِّنْ اِلٰهٍ مَا لَكُمْ اعْبُدُوا اللّٰهَ يٰقَوْمِ قَالَ

راغلے دے تاسو ته | دَ هغهٔ نه سوا | هيڅوک بل معبود | چه نشته دے تاسو له | عبادت کوئ دَ الله | اے زما قومه! | وے وئيل

هغه ورته ووئيل چه اے زما قومه! صرف دَ الله عبادت کوئ هغهٔ نه بغير ستاسو بل معبود نشته ـ تاسو ته دَ خپل

اٰيَةً لَكُمْ نَاقَةُ اللّٰهِ هٰذِهٖ ۗ مِّنْ رَّبِّكُمْ بَيِّنَةٌ

بوه نخښه ده | تاسو دَ پاره | اوښه دَ الله | دا | له طرفه دَ رب ستاسو | دليل

رب دَ غاړے نه ښکاره دليل راغلے دے ، دا دَ الله تعالىٰ دَ نامے اوښه تاسو دَ پاره نخښه ده ، نو

فَذَرُوْهَا تَأْكُلْ فِيْٓ اَرْضِ اللّٰهِ وَلَا تَمَسُّوْهَا بِسُوْٓءٍ

پس پرېږدئ دا | (چه) خربړي | دَ الله په زمکه کښې | او مهٔ ورڅېرئ لاس دې ته | په خراب نيت سره

دا پرېږدئ چه دَ الله تعالیٰ په زمکه خوراک کوي او په بد نيت ورته لاس مهٔ وروړئ

فَيَأْخُذَكُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿٧٣﴾ وَاذْكُرُوْٓا اِذْ جَعَلَكُمْ خُلَفَآءَ

رَګنی ؤ به نيسي تاسو | عذاب | دردناک | او ياد کړه | کله چه هغهٔ جوړ کړئ تاسو | جانشينان

کني دردناک عذاب به مو راؤنيسي . او هغه وخت ياد کړئ چه دَ عاد نه پس ئے تاسو جانشين

مِنْۢ بَعْدِ عَادٍ وَّبَوَّاَكُمْ فِي الْاَرْضِ تَتَّخِذُوْنَ مِنْ سُهُوْلِهَا

پس | دَ قوم دَ عاد نه | او آباد ئے کړئ تاسو | په زمکه کښې | چه تاسو جوړوئ | دَ دې په هوارو ميدانونو کښې

مقرر کړئ ، او په زمکه کښې ئے تاسوله ځائے درکړو چه دَ دې په ميدانونو کښې تاسو ځان

قُصُوْرًا وَّتَنْحِتُوْنَ الْجِبَالَ بُيُوْتًا ۚ فَاذْكُرُوْٓا اٰلَآءَ اللّٰهِ

محلونه | او تراشئ | دَ غرونو نه | کورونه | پس ياد کړئ | نعمتونه دَ الله

له مانړئ جوړوئ او په غرونو کښې ئے ځان له کورونه تراشئ ، نو دَ الله تعالیٰ نعمتونه ياد کړئ

وَلَا تَعْثَوْا فِي الْاَرْضِ مُفْسِدِيْنَ ﴿٧٤﴾ قَالَ الْمَلَاُ الَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْا

او مهٔ ګرځئ | په زمکه کښې | فساد کوونکي | ووئيل | سردارانو | هغو کومو چه | تکبر وکړو

او دَ زمکې په مخ فساد مهٔ کوئ . نو دَ هغهٔ دَ قوم مغرورو سردارانو دَ هغه

مِنْ قَوْمِهٖ لِلَّذِيْنَ اسْتُضْعِفُوْا لِمَنْ اٰمَنَ مِنْهُمْ

دَ دهٔ دَ قوم | هغو خلقو ته | چه کمزوري ګڼړلے شول | خاص هغه چا ته چه ايمان ئے راوړے وو | له دوي نه

کمزورو خلقو نه چه ايمانونه ئے راوړي وو تپوس وکړو ، آيا تاسو ته

اَتَعْلَمُوْنَ اَنَّ صٰلِحًا مُّرْسَلٌ مِّنْ رَّبِّهٖ ؕ قَالُوْٓا اِنَّا

آيا تاسو پوهېږئ چه بيشکه | صالح | رالېږلے شوے دے | دَ خپل رب له طرف نه | ووئيل دوي | بيشکه مونږ

معلومه ده چه صالح عليه السلام واقعي دَ خپل رب له طرف نه رالېږلے شوے دے؟ هغوي ووئيل چه بيشکه

بِمَآ اُرْسِلَ بِهٖ مُؤْمِنُوْنَ ﴿٧٥﴾ قَالَ الَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْٓا اِنَّا

په هغه څهٔ چه دَ رالېږلے شوے په هغے | ايمان لرو | ووئيل | هغو خلقو چه | کبرژن وو | بيشکه مونږ

دَ کومو حکمونو سره چه هغه رالېږلے شوے دے مونږ په هغې ايمان دے . مغرورو خلقو ووئيل چه په کومه خبره

بِالَّذِيْٓ اٰمَنْتُمْ بِهٖ كٰفِرُوْنَ ﴿٧٦﴾ فَعَقَرُوا النَّاقَةَ

له هغه خبرے نه | په کومه چه تاسو ايمان راوړے دے | انکار کوونکي يُو | پس دوي ووژله | هغه اُوښه

تاسو ايمان راوړے دے مونږ خو دَ هغې نه انکار کوو ، غرض دا چه هغوي هغه اُوښه ووژله

وَعَتَوْا عَنْ اَمْرِ رَبِّهِمْ وَقَالُوْا يٰصٰلِحُ ائْتِنَا بِمَا تَعِدُنَآ

او سرکشي ئے وکړه | دَ خپل رب دَ حکم نه | دوي ووئيل | اے صالحهٔ! | راوله په مونږ | هغه څهٔ | دَ کوم نه چه ته مونږ وېروې

او دَ خپل رب دَ حکم نه ئے سرکشي وکړه او وُ ئے وئيل اے صالحهٔ! کهٔ چرے تهٔ واقعي رسول ئے

إِنَّا بِمَا أُرْسِلَ بِهِ — كُنتَ مِنَ الْمُرْسَلِينَ ﴿٧٧﴾ فَأَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ فَأَصْبَحُوا

کېږې | یې ته | له پېغمبرانو نه | پس ونیول دوی | زلزلے | پس شول دوی

نو کوم عذاب چه ته دعده کوے هغه راوله ، نو هغوی ناڅاپه سخته زلزلے ونیول ، او په خپلو کورونو

فِي دَارِهِمْ جٰثِمِينَ ﴿٧٨﴾ فَتَوَلّٰى عَنْهُمْ وَقَالَ يٰقَوْمِ

په خپلو کورونو کښے | پرمخے پراته | پس مخ ئے واړولو | له دوی نه | او وئے وئیل | اے زما قومه!

کښے پرمخے پراته پاتے شول نو هغه دخت صالح ع تر ے نه مخ واړولو او وئے وئیل اے زما قومه!

لَقَدْ أَبْلَغْتُكُمْ رِسَالَةَ رَبِّي وَنَصَحْتُ لَكُمْ وَلٰكِن

بیشکه ما ورسولو تاسو ته | پیغام | د خپل رب | او نصیحت م وکړو | تاسو ته | لیکن

ما خو تاسو ته د خپل خدائے حکمونه رارسولی وو ، او ستاسو خیرخواهی م لټولے وه خو خیرخواه

لَّا تُحِبُّونَ النّٰصِحِينَ ﴿٧٩﴾ وَلُوطًا إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِ أَتَأْتُونَ

نه خوښوئ تاسو | نصیحت کوونکی | او (ومولیږلو) لوط ع | کله چه هغه ووئیل | خپل قوم ته | آیا تاسو کوئ

خلق ستاسو هډو خوښ نه وی ، او مونږ لوط علیه السلام ولیږلو کله چه هغه خپل قوم ته ووئیل آیا تاسو داسے

الْفَاحِشَةَ مَا سَبَقَكُم بِهَا مِنْ أَحَدٍ مِّنَ الْعٰلَمِينَ ﴿٨٠﴾ إِنَّكُمْ لَتَأْتُونَ

هغه بے حیائی | چه نه دہ کړے وړاندے له تاسو | چا (هم) | له عالمونو نه | بیشکه تاسو | راځئ

د بے حیائی کارکوئ چه له تاسو نه وړاندے په ټوله دنیا کښے چا نه دے کړے ؟ تاسو د ښځو په

الرِّجَالَ شَهْوَةً مِّن دُونِ النِّسَاءِ ۚ بَلْ أَنتُمْ

سړو ته | په شهوت سره | سوا | د ښځو نه | بلکه | تاسو یئ

ځائے نارینه هلکانو سره خپل شهوت پوره کوئ ، بلکه تاسو د حد نه

قَوْمٌ مُّسْرِفُونَ ﴿٨١﴾ وَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهِ إِلَّا أَن قَالُوا

خلق | حد نه تیریدونکی | او نه وو | جواب | د دهٔ د قوم | مګر دا چه | دوی ووئیل

تیریدونکی خلق یئ پس د دهٔ د قوم جواب د دے نه سوا بل نه وو چه په خپل مینځ کښے ئے ووئیل

أَخْرِجُوهُم مِّن قَرْيَتِكُمْ ۖ إِنَّهُمْ أُنَاسٌ يَتَطَهَّرُونَ ﴿٨٢﴾

اُوباسئ دوی | د خپل کلی نه | بیشکه دوی | داسے خلق دی | چه پاکیزگی غوښتونکی دی

چه دوئ د خپل کلی نه اُوباسئ ځکه چه دوی ځان ډیر پاک ساتل غواړی -

فَأَنجَيْنٰهُ وَأَهْلَهُ إِلَّا امْرَأَتَهُ ۖ كَانَتْ مِنَ الْغٰبِرِينَ ﴿٨٣﴾

پس مونږ نجات ورکړو دهٔ ته | او د دهٔ کوروالو ته | سوا | د دهٔ د ښځے نه | چه وه | (شامله) وروستو پاتے کیدونکو کښے

نو مونږ هغه او د هغهٔ کورنئ بچ کړل خو ښځه ئے بچ نه شوه ځکه چه هغه په وروستو پاتے کیدونکو کښے شامله

ع ١٠ ١٢ ١٧ وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهِم مَّطَرًا ۖ فَانظُرْ كَيْفَ كَانَ عٰقِبَةُ الْمُجْرِمِينَ ﴿٨٤﴾

او ووروولو مونږ | په دوی باندے | باران (د کاڼو) | پس وګوره | چه څنګه | شو | انجام | د مجرمانو

وه او مونږ په هغوی باندے (د کاڼو) باران ووروولو نو وګوره چه د مجرمانو انجام څنګه شو ؟

وَإِلَىٰ مَدْيَنَ أَخَاهُمْ شُعَيْبًا ۗ قَالَ يَٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ

او (مونږ لیږلی و) قوم دَ مدین ته | دَ دوی ورور | شعیب | دهٔ ووئیل | اے زما قومه! | عبادت وکړئ | دَ الله

او دَ مدین خلقو ته مو دَ هغوی ورور شعیب ولیږلو، هغهٔ ورته ووئیل چه اے زما قومه! هم دَ الله عبادت

مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ ۖ قَدْ جَاءَتْكُم بَيِّنَةٌ

نشته دے تاسو دَپاره | هیڅوک معبود | بے له دهٔ نه | بیشکه راغلے دے تاسو ته | بیو (واضح) دلیل

کوئ، دَ هغهٔ نه بغیر ستاسو بل معبود نشته، تاسو ته دَ خپل رب دَ طرف نه ښکاره دلیل

مِّن رَّبِّكُمْ ۖ فَأَوْفُوا الْكَيْلَ وَالْمِيزَانَ وَلَا تَبْخَسُوا النَّاسَ

له رب ستاسو نه | پس پوره کوئ | پیمانه | او تله | او کم مهٔ ورکوئ | خلقو ته

راغلے دے، نو پیمانه او تول پوره پوره کوئ او خلقو ته دَ هغوی څیزونه

أَشْيَاءَهُمْ وَلَا تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ بَعْدَ إِصْلَاحِهَا ۚ ذَٰلِكُمْ

دَ دوی څیزونه | او فساد مهٔ کوئ | په زمکه کښے | پس دَ دے دَ اصلاح نه | دا کار

کم مهٔ ورکوئ، او دَ حالت سمیدو نه پس دَ مزکے په مخ فساد مهٔ کوئ دا خبره

خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴿٨٥﴾ وَلَا تَقْعُدُوا بِكُلِّ صِرَاطٍ

غوره دے | تاسو له | که چرے یئ تاسو | مؤمنان | او مهٔ کښینئ | په هره لاره

درله ډیره ښهٔ ده که چرے یئ تاسو مؤمنان ۔ او په هره یوه لاره مهٔ کښینئ

تُوعِدُونَ وَتَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ مَنْ آمَنَ بِهِ

چه تاسو ویروئ | او تاسو منع کوئ | دَ الله دَ لارے نه | هغه څوک | چه ایمان ئے راوړو | په هغه

چه خلق ویروئ او چا چه ایمان راوړے دے هغوی دَ الله تعالیٰ دَ لارے نه منع کوئ

وَتَبْغُونَهَا عِوَجًا ۚ وَاذْكُرُوا إِذْ كُنتُمْ قَلِيلًا فَكَثَّرَكُمْ ۖ

او لټوئ په هغے کښے | خرابی | او یاد کړئ | کله چه وئ تاسو | لږ | بیا هغهٔ زیات کړئ تاسو

او په دے کښے عیب لټوئ، او هغه وخت یاد کړئ کله چه تاسو په لږ تعداد کښے وئ او هغهٔ تاسو زیات کړئ

وَانظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُفْسِدِينَ ﴿٨٦﴾ وَإِن كَانَ طَائِفَةٌ

او غور وکړئ | څنګه | شو | انجام | دَ فساد کوونکو | او که چرے | ده | یوه ډله

او (دے خبرے ته هم) وګورئ چه دَ فساد کوونکو انجام څنګه شو؟ او که په تاسو کښے یوے ډلے

مِّنكُمْ آمَنُوا بِالَّذِي أُرْسِلْتُ بِهِ وَطَائِفَةٌ لَّمْ يُؤْمِنُوا

له تاسو نه | چه ایمان ئے راوړو | په هغه څهٔ | چه رالیږلے شوے یم زهٔ په هغے | او یوے ډلے | ایمان نهٔ دے راوړے

په هغه تعلیم باندے چه ما ته راکړے شوے دے ایمان راوړے دے او بلے ډلے پرے نهٔ دے راوړے

فَاصْبِرُوا حَتَّىٰ يَحْكُمَ اللَّهُ بَيْنَنَا ۚ وَهُوَ خَيْرُ الْحَاكِمِينَ ﴿٨٧﴾

نو صبر وکړئ | تر دے چه | فیصله وکړی | الله | زمونږ مینځ کښے | او هغه | دَ ټولو نه ښهٔ | فیصله کوونکے دے

نو لږ صبر وکړئ چه الله تعالیٰ بخپله زمونږ ترمینځه فیصله وکړی او هغه ډیر ښهٔ فیصله کوونکے دے

قَالَ الْمَلَاُ الَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْا مِنْ قَوْمِهٖ لَنُخْرِجَنَّكَ

ووئیل | سردارانو | کوم چه | کبرژن وو | دَ هغهٔ له قوم نه | چه مونږ به خامخا اوباسو تا

دَ ددی دَ قوم مغروره سردارانو ووئیل چه اے شعیبه! مونږ به تا او تاسره

يٰشُعَيْبُ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَعَكَ مِنْ قَرْيَتِنَآ اَوْ لَتَعُوْدُنَّ

اے شعیبؑ! | او هغه خلق | چه ایمان ئے راوړے | تا سره | دَ خپل کلی نه | یا به واپس راځئ تاسو

مؤمنان یقیناً دَ خپل کلی نه بهر اُوباسو ، او یا به تاسو زمونږ

فِیْ مِلَّتِنَا ؕ قَالَ اَوَلَوْ كُنَّا كٰرِهِیْنَ ﴿۸۸﴾ قَدِ افْتَرَیْنَا عَلَی اللّٰهِ

زمونږ په دین کښے | دهٔ ووئیل | آیا اگر که یُو مونږ | ابن کښونکی | بیشکه تړلی به وی مونږ | په الله باندې

مذهب ته واپس راشئ شعیبؑ ورته ووئیل چه آیا که مونږ دا نهٔ خوښوو بیا هم ؟ بیا خو به بے شکه مونږ په الله تعالیٰ

كَذِبًا اِنْ عُدْنَا فِیْ مِلَّتِكُمْ بَعْدَ اِذْ نَجّٰىنَا اللّٰهُ مِنْهَا ؕ

دروغ | که چرے مونږ واپس شو | ستاسو په دین کښے | پس (له دے نه) | چه نجات راکړو مونږ ته | الله | له دے نه

باندې دروغ تړلی وی که چرے مونږ ستاسو دین ته بیا واپس شو ، سره دَ دے چه الله تعالیٰ ترے نه راله

وَمَا یَكُوْنُ لَنَآ اَنْ نَّعُوْدَ فِیْهَآ اِلَّآ اَنْ یَّشَآءَ اللّٰهُ رَبُّنَا ؕ

او نهٔ ده ممکنه مونږ له | چه مونږ واپس شو | په دے کښے | مگر | دا چه وُغواړی | الله | رب زمونږ

خلاصے راکړے دے او اُوس خو دا سے واپس کیدل راله ممکن نهٔ دی ، مگر دا چه الله زمونږ رب وُغواړی

وَسِعَ رَبُّنَا كُلَّ شَیْءٍ عِلْمًا ؕ عَلَی اللّٰهِ تَوَكَّلْنَا ؕ رَبَّنَا

احاطه کړے ده | زمونږ رب | دَ هر څیز | په علم سره | هم په الله باندې | زمونږ توکل دے | اے زمونږ ربه!

زمونږ دَ رب علم په هر څیز باندې چاپیره دے ، په الله تعالیٰ باندې زمونږ توکل دے ، اے زمونږ ربه!

افْتَحْ بَیْنَنَا وَبَیْنَ قَوْمِنَا بِالْحَقِّ وَاَنْتَ خَیْرُ الْفٰتِحِیْنَ ﴿۸۹﴾

فیصله وُکړه | زمونږ او زمونږ دَ قوم په مینځ کښے | په انصاف سره | او هم ته | دَ ټولو نه ښهٔ فیصله کوونکے یئے!

زمونږ او زمونږ دَ قوم ترمینځه په حقه فیصله وکړه ، او ته دَ ټولو نه ښهٔ فیصله کوونکے یئے .

وَقَالَ الْمَلَاُ الَّذِیْنَ كَفَرُوْا مِنْ قَوْمِهٖ لَىِٕنِ اتَّبَعْتُمْ شُعَیْبًا

او ووئیل | سردارانو | کوم چه کفر وکړو | دَ دهٔ له قوم نه | که چرے تاسو تابعداری وُکړه | دَ شعیبؑ

نو دَ هغهٔ دَ قوم انکار کوونکو سردارانو (خپل قوم ته) ووئیل که تاسو شعیبؑ پسے روان شوئ

اِنَّكُمْ اِذًا لَّخٰسِرُوْنَ ﴿۹۰﴾ فَاَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ فَاَصْبَحُوْا فِیْ دَارِهِمْ

نو بیشکه تاسو به | هغه وخت | نقصان موندونکی یئ | پس ونیول دوی | زلزلے | نو دوی شول دَ صبا | په خپلو کورونو کښے

نو خامخا برباد به شئ . بیا دوی زلزلے ونیول ، نو په خپلو کورونو کښے پرمخے

جٰثِمِیْنَ ﴿۹۱﴾ الَّذِیْنَ كَذَّبُوْا شُعَیْبًا كَاَنْ لَّمْ یَغْنَوْا فِیْهَا ۛ

پرمخے پرانهٔ | کوم چه | دروغ وگڼړلو | شعیب | لکه چه دوی هلته اوسیدلی نهٔ وو | په دے کښے

پریوتل ، چا چه شعیبؑ دروغژن وگڼړلو هغوی داسے شول لکه چه په دے کلو کښے هلته اوسیدلی نهٔ وو

مع

الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا شُعَيْبًا كَاْنُوْا هُمُ الْخٰسِرِيْنَ ﴿٩٢﴾ فَتَوَلّٰى عَنْهُمْ
کوم چه | دروغژن کړلو | شعیب | وو دوی | زیان کاران | بیا واپس شو | د هغوی نه
چا چه شعیب ته دروغژن ووئیل، هغوی پخپله برباد شول ـ نو شعیب ترے مخ وګرځولو
وَقَالَ يٰقَوْمِ لَقَدْ اَبْلَغْتُكُمْ رِسٰلٰتِ رَبِّيْ وَنَصَحْتُ لَكُمْ
او وے وئیل | اے زما قومه! | بیشکه ما درسولی دی تاسو ته | پیغامونه | د خپل رب | او نصیحت مے کړے دے | تاسو ته
او ورته ئے ووئیل چه اے زما قومه! ما تاسو د خپل رب حکمونه درسولی دو او ستاسو خیرخواهی مے غوښتے
فَكَيْفَ اٰسٰى عَلٰى قَوْمٍ كٰفِرِيْنَ ﴿٩٣﴾ وَمَآ اَرْسَلْنَا فِيْ قَرْيَةٍ ع ٩
پس څنګه | زۀ افسوس وکړم | په کافر قوم باندِ | او نۀ دے لیږلے مونږ | په هیڅ کلی کښے
وه نو اوس زۀ څنګه د هغې قوم په حال افسوس وکړم چه منونکی نۀ دو ـ او هر کله چه مونږ یو کلی ته یو پیغمبر
مِّنْ نَّبِيٍّ اِلَّآ اَخَذْنَآ اَهْلَهَا بِالْبَاْسَآءِ وَالضَّرَّآءِ لَعَلَّهُمْ
څوک پیغمبر | مګر | ونیول مونږ | اوسیدونکی د هغې | په سختئ | او تکلیف سره | چه دوی
لیږلے دے نو اول مو د هغې اوسیدونکی په سختئ او په تکلیف کښے راینولی دی د پاره د دے چه عاجزی
يَضَّرَّعُوْنَ ﴿٩٤﴾ ثُمَّ بَدَّلْنَا مَكَانَ السَّيِّئَةِ الْحَسَنَةَ حَتّٰى عَفَوْا
زاری وکړی | بیا بدل کړو مونږ | د سختئ په ځائے | راحت | تر دے چه | ډیر شول دوی
اختیار کړی ـ بیا مونږ د هغوی بدحالی په خوشحالئ بدله کړه تر دے چه هغوی بنه ترقی وکړه
وَّقَالُوْا قَدْ مَسَّ اٰبَآءَنَا الضَّرَّآءُ وَالسَّرَّآءُ فَاَخَذْنٰهُمْ بَغْتَةً
او دوی ووئیل | بیشکه رسیدلے وه | زمونږ پلار نو ته | سختئ | او راحت | بیا مونږ ونیول دوی | ناګهانه
او دائے ووئیل چه زمونږ په پلار نیکۀ هم داسے سختئ او راحت راغلی دے بیا مونږ دوی ناګهانه ونیول
وَّهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ ﴿٩٥﴾ وَلَوْ اَنَّ اَهْلَ الْقُرٰٓى اٰمَنُوْا وَاتَّقَوْا لَفَتَحْنَا
او دوی | بے خبره وو | او که چرے | د کلو اوسیدونکو | ایمان راوړے وے | او پرهیزګاری کړے کولے | نو مونږ به پرانستلی
او دوی نه (د دے عذاب) خبر هم نۀ وو ـ او که د دغه کلو خلقو ایمان راوړے وے او ځان د ګناهونو نه بچ کولے نو مونږ به
عَلَيْهِمْ بَرَكٰتٍ مِّنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ وَلٰكِنْ كَذَّبُوْا فَاَخَذْنٰهُمْ
په دوی باند | برکتونه | له طرفه د آسمان | او زمکے | لیکن دوی دروغ وګڼړل | نو مونږ ونیول دوی
په دوی باند د آسمان او زمکے دواړو نه برکتونه راباندې کړی وو لیکن دوی (زمونږ تعلیم) دروغ وګڼړلو نو
بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ﴿٩٦﴾ اَفَاَمِنَ اَهْلُ الْقُرٰٓى
په بدله د هغو (عملونو) کښے | چه دوی به کول | پس آیا په امن شول | اوسیدونکی د کلو
مونږ دوی د خپلو عملونو په سزا کښے راونیول، آیا د کلو خلق د دے خبرے نه بے غمه
اَنْ يَّاْتِيَهُمْ بَاْسُنَا بَيَاتًا وَّهُمْ نَآئِمُوْنَ ﴿٩٧﴾ اَوَاَمِنَ
له دے نه چه راشی په دوی باندِ | زمونږ عذاب | د شپے | او دوی | اوده وی | آیا په امن شول
شوی دی چه شپه په شپه په دوی باندِ زمونږ عذاب راشی او دوی اوده وی ـ آیا د کلو خلق به په

أَهْلُ الْقُرَىٰ أَنْ يَأْتِيَهُمْ بَأْسُنَا ضُحًى وَهُمْ يَلْعَبُونَ ﴿۹۸﴾

اوسیدونکی دَ کلو | له دے نه چه راشی دوی ته | عذاب زمونږ | دَ څاښت په وخت | او دوی | لوبے کوی

عقله بے غمه شوی دی چه زمونږ عذاب ورته دَ غرمے راشی چه دوی بے خبره لګیا وی لوبے کوی.

ع ۲۶/۱۲
أَفَأَمِنُوا مَكْرَ اللَّهِ ۚ فَلَا يَأْمَنُ مَكْرَ اللَّهِ إِلَّا الْقَوْمُ الْخَاسِرُونَ ﴿۹۹﴾

آیا په امن شول | دَ الله دَ تدبیر نه | پس نه په امن کیږی | دَ الله دَ تدبیر نه | مګر صرف | نقصان موندونکی خلق.

آیا دا خلق دَ الله دَ تدبیر نه بے ویرے شول؟ خو (یاد ساتئ) چه دَ الله دَ پټو تدبیرونو نه هغه خلق بے فکره کیږی چه تباه کیدونکی

أَوَلَمْ يَهْدِ لِلَّذِينَ يَرِثُونَ الْأَرْضَ مِنْ بَعْدِ أَهْلِهَا

او آیا نه ده | کړے رهنمائی | دَ هغو خلقو | چه وارثان شول | دَ زمکے | پس له هلاکیدو دَ اوسیدونکو دَ دے

دی. آیا دے واقعاتو هغو کسانو ته چه دَ پخوانو اوسیدونکو نه پس دَ ملک وارثان شوی دی هیڅ سبق ورنه کړو

أَنْ لَوْ نَشَاءُ أَصَبْنَاهُمْ بِذُنُوبِهِمْ ۚ وَنَطْبَعُ

چه که چرے | غوښتے وے مونږ | نو مصیبت به مو غورزولے وو په دوی | دَ دوی دَ ګناهونو په بدله کښے | او مهر مو وهلو

چه که چرے مونږ غوښتے نو دَ دوی دَ ګناهونو په وجه به مو دوی په عذاب کښے نیولی وو او په زړونو

عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ فَهُمْ لَا يَسْمَعُونَ ﴿۱۰۰﴾ تِلْكَ الْقُرَىٰ نَقُصُّ عَلَيْكَ

دَ دوی په زړونو | پس دوی | نه اوری | دا کلی دی | چه مونږ اوروو | تا ته

به ورله تاپے ولګوو پس دوی (دَ نصیحت خبره هم) نه آوری. (اے پیغمبره!) دا بوخو کلی دی دَ کومو حالات چه مونږ

مِنْ أَنْبَائِهَا ۚ وَلَقَدْ جَاءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنَاتِ ۚ فَمَا كَانُوا

دَ دے (څه) احوال | او بیشکه راغلی وُو دوی ته | پیغمبران دَ دوی | (واضحه) دلیلونو سره | بیا دوی داسے نه وُو

تا ته بیانوُو او یقیناً دے خلقو ته دَ دوی پیغمبران معجزو سره راغلی وُو، خو دوی چه کومه خبره

لِيُؤْمِنُوا بِمَا كَذَّبُوا مِنْ قَبْلُ ۚ كَذَٰلِكَ يَطْبَعُ اللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِ

چه ایمان ئے راوړے وے | په دے وجه چه دروغژن ګڼلی وو | له دے نه وړاندے | دغه شان | مهر وهی | الله | په زړونو

یوځل دروغ ګڼلے وه هغه ئے بیا ونه منله، هم دغه شان الله تعالیٰ دَ کافرانو په زړونو

الْكَافِرِينَ ﴿۱۰۱﴾ وَمَا وَجَدْنَا لِأَكْثَرِهِمْ مِنْ عَهْدٍ ۖ وَإِنْ وَجَدْنَا

دَ کافرانو | او نه موندله مونږ | په اکثرو دَ دوی کښے | وفا په وعده | او بیشکه وموندل مونږ

مهر لګوی، او مونږ په دوی کښے اکثر خلق بے لوظه موندلی دی او اکثر کسان مو دَ سره

أَكْثَرَهُمْ لَفَاسِقِينَ ﴿۱۰۲﴾ ثُمَّ بَعَثْنَا مِنْ بَعْدِهِمْ مُوسَىٰ بِآيَاتِنَا

اکثر له دوی نه | نافرمان | بیا مونږ ولیږلو | له دوی نه پس | موسیٰ | خپلو نخښو سره

نافرمانه (او بدعمله) بیا موندلی دی. بیا دَ دوی نه پس مو موسیٰ علیه السلام دَ خپلو نخښو سره فرعون

إِلَىٰ فِرْعَوْنَ وَمَلَئِهِ فَظَلَمُوا بِهَا ۖ فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ

فرعون ته | او دَ دهٔ سردارانو ته | پس دوی نا انصافی وکړه | دَ دے نخښو سره | پس وګوره | څنګه | شو

او دَ دهٔ سردارانو ته ولیږلو نو هغوی زمونږ دَ نخښو سره زیاتے وکړو، نو وګوره چه دَ مفسدانو انجام

عَاقِبَةُ الْمُفْسِدِيْنَ ۝١٠٣ وَقَالَ مُوْسٰى يٰفِرْعَوْنُ اِنِّيْ رَسُوْلٌ

انجام | دَ فساد کوونکو | او ووئیل | موسیٰ | اے فرعونه | بیشکه زهٔ | رسول یم

څهٔ شو ؟ او موسیٰ ورته ووئیل اے فرعونه ! زهٔ دَ ټول مخلوق دَ رب له

مِّنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝١٠٤ حَقِيْقٌ عَلٰٓى اَنْ لَّآ اَقُوْلَ عَلَى اللّٰهِ اِلَّا الْحَقَّ

دَ جهانونو دَ پروردګار | مالهٔ مناسب دی | چه بیان نهٔ کړم | په الله باندې | مګر رښتیا خبره

طرف نه پیغمبر راغلے یم - ما دَ پاره هم دا مناسب دی چه دَ الله تعالیٰ په حقله هغه خبره وکړم چه رښتونی

قَدْ جِئْتُكُمْ بِبَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ فَاَرْسِلْ مَعِيَ

ما راوړے دے تاسو ته | واضحه دلیل | ستاسو دَ رب له طرف نه | پس ولیږه | ما سره

وی ، تاسو ته مې ستاسو دَ رب دَ طرف نه واضحه دلیلونه راوړی دی . نو ته بنی اسرائیل ما سره

بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ۝١٠٥ قَالَ اِنْ كُنْتَ جِئْتَ بِاٰيَةٍ فَاْتِ بِهَآ

بنی اسرائیل | دهٔ ووئیل | کهٔ چرے تا | راوړې وی | څهٔ معجزه | نو راوړه | هغه

رخصت کړه - فرعون جواب ورکړو چه کهٔ تا څهٔ نخښنه راوړې وی نو هغه وښایه کهٔ ته

اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ۝١٠٦ فَاَلْقٰى عَصَاهُ فَاِذَا هِيَ ثُعْبَانٌ

کهٔ چرے ته یې | له رښتیا ویونکو نه | پس وغورځوله دهٔ | همسا خپله | نو فورًا هغه | اژدها (شوه)

(په خپله دعویٰ کښې) رښتینے یې - په دے خبره موسیٰ خپله کونټۍ وغورځوله نو هغه یوه ژوندۍ

مُّبِيْنٌ ۝١٠٧ وَّنَزَعَ يَدَهٗ فَاِذَا هِيَ بَيْضَآءُ لِلنّٰظِرِيْنَ ۝١٠٨ قَالَ

ښکاره | او راوویستلو دهٔ | لاس خپل | نو فورًا هغه (ښکاره شو) | روښانه | لیدونکو ته | ووئیل

اژدها شوه او لاس ئے (دَ بغل نه) راوویستلو نو هغه دَ ټولو لیدونکو په وړاندې تک سپین برقیدو - دَ فرعون

الْمَلَاُ مِنْ قَوْمِ فِرْعَوْنَ اِنَّ هٰذَا لَسٰحِرٌ عَلِيْمٌ ۝١٠٩ يُّرِيْدُ اَنْ

سردارانو | دَ قوم دَ فرعون نه | چه بیشکه دا خو | جادوګر دے | پوهه | دے غواړی | چه

دَ قوم سردارانو ووئیل چه بیشکه دا خو دَ لوئے علم خاوند جادوګر دے - دے غواړی چه

يُّخْرِجَكُمْ مِّنْ اَرْضِكُمْ فَمَاذَا تَاْمُرُوْنَ ۝١١٠ قَالُوْٓا اَرْجِهْ

اُوباسی تاسو | ستاسو له زمکے نه | پس څهٔ حکم کوئ تاسو | دوی ووئیل | مهلت ورکړه دهٔ ته

تاسو ستاسو دَ ملک نه بهر اُوباسی وواییٔ چه په دے حقله ستاسو څهٔ صلاح ده - دوی ووئیل چه موسیٰ

وَاَخَاهُ وَ اَرْسِلْ فِى الْمَدَآئِنِ حٰشِرِيْنَ ۝١١١ يَاْتُوْكَ

او دَ دهٔ ورور ته | او | ولیږه | په ښارونو کښې | جمع کوونکی | چه دوی راولی تا ته

او دَ دهٔ ورور ته مهلت ورکړه او ټولو ښارونو ته کارندګان ولیږه - چه ټول پوهه جادوګر

بِكُلِّ سٰحِرٍ عَلِيْمٍ ۝١١٢ وَجَآءَ السَّحَرَةُ فِرْعَوْنَ قَالُوْٓا اِنَّ لَنَا لَاَجْرًا

هر جادوګر | پوهه | او راغلل | جادوګر | فرعون ته | دوی ووئیل | بیشکه موږ له اجر پکار دے

در له راټول کړی - او جادوګر دَ فرعون (دربار) ته راغلل ، دوی ووئیل کهٔ چرے موږ غالب شو

اِنْ كُنَّا نَحْنُ الْغٰلِبِيْنَ ﴿١١٣﴾ قَالَ نَعَمْ وَاِنَّكُمْ لَمِنَ الْمُقَرَّبِيْنَ ﴿١١٤﴾

که چیرې شو | موږ غالب | ده ووئیل | هو ! | او بیشکه تاسو به یئ | له نزدیکانو نه

نو موږ ته به څه انعام ملاویږی؟ فرعون ووئیل هو ! او تاسو به په نزدیکانو (درباریانو) کښې شامل شئ۔

قَالُوْا يٰمُوْسٰٓى اِمَّآ اَنْ تُلْقِىَ وَاِمَّآ اَنْ نَّكُوْنَ نَحْنُ الْمُلْقِيْنَ ﴿١١٥﴾

دوی ووئیل | اے موسیٰ | یا خو | ته وغورځوه | او یا | به شو موږ | غورځوونکی

جادوګرو ووئیل اے موسیٰ! اول ته غورځوے که موږ (خپل پړی) وغورځوو ؟

قَالَ اَلْقُوْا ۚ فَلَمَّآ اَلْقَوْا سَحَرُوْٓا اَعْيُنَ النَّاسِ

موسیٰ ووئیل | تاسو وغورځوئ | پس هرکله چه | دوی وغورځول (خپل څیزونه) | نو جادوئے وکړو | په سترګو | د خلقو

موسیٰ ووئیل چه اول تاسو وغورځوئ۔ نو هرکله چه هغوی (خپل څیزونه) وغورځول نو د خلقو نظربندی ئے وکړه

وَاسْتَرْهَبُوْهُمْ وَجَآءُوْ بِسِحْرٍ عَظِيْمٍ ﴿١١٦﴾ وَاَوْحَيْنَآ اِلٰى مُوْسٰٓى

او وئے ویرول دوی | او راوړئے دلو | جادو | ډیر لوئے | او وحی راولیږله موږ | موسیٰ طرف ته

او په خلقو ئے هیبت راوستلو او هغوی ډیر لوئے جادو وکړو۔ او موږ موسیٰ ته وحی وکړه چه خپله

اَنْ اَلْقِ عَصَاكَ ۚ فَاِذَا هِىَ تَلْقَفُ مَا يَاْفِكُوْنَ ﴿١١٧﴾ فَوَقَعَ

چه وغورځوه | خپله همسا | نو فوراً به هغه | تیرکړی | څه چه | دوی جوړول | پس ثابت شو

همسا وغورځوه ، نو ناګهانه هغه د اڅیزونه تیرول شروع کړل ، نو حق ثابت

الْحَقُّ وَبَطَلَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿١١٨﴾ فَغُلِبُوْا هُنَالِكَ وَانْقَلَبُوْا

حق | او باطل شول | هغه څه چه دوی کول | پس دوی مغلوب شول | په دغه ځائے کښې | او واپس شول

شو او د هغوی جوړکړی څیزونه ټول باطل شول۔ نو په دغه موقع هغوی لاندې راغلل او

صٰغِرِيْنَ ﴿١١٩﴾ وَاُلْقِىَ السَّحَرَةُ سٰجِدِيْنَ ﴿١٢٠﴾ قَالُوْٓا اٰمَنَّا

ذلیله | او وغورځیدل | جادوګر | په سجده کښې | دوی ووئیل | موږ ایمان راوړو

په ملامته واپس شول۔ او جادوګر (بے اختیاره) په سجده پریوتل۔ وئے وئیل چه موږ په

بِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿١٢١﴾ رَبِّ مُوْسٰى وَهٰرُوْنَ ﴿١٢٢﴾ قَالَ فِرْعَوْنُ اٰمَنْتُمْ بِهٖ

په پروردګار د عالمونو | چه رب دے د موسیٰ | او د هارون | ووئیل فرعون | تاسو ایمان راوړو په هغه

رب العلمین ایمان راوړو چه د موسیٰ او د هارون علیهما السلام رب دے فرعون ووئیل چه تاسو زما د اجازت

قَبْلَ اَنْ اٰذَنَ لَكُمْ ۚ اِنَّ هٰذَا لَمَكْرٌ مَّكَرْتُمُوْهُ فِى الْمَدِيْنَةِ

وړاندې د دے نه چه | زه اجازت درکړم | تاسو ته | بیشکه دا خو | یو چال دے | چه تیار کړے دے تاسو | په دے ښار کښې

نه وړاندې ایمان راوړو ، دا خو ستاسو یو چال دے چه تاسو په دے ښار کښې ځکه وچلولو

لِتُخْرِجُوْا مِنْهَآ اَهْلَهَا ۚ فَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ﴿١٢٣﴾ لَاُقَطِّعَنَّ

چه اوباسئ تاسو | له دے ښار نه | د دے اوسیدونکی | پس زر به تاسو ته معلومه شی . | خامخا به پرې کړم زه

چه د دے ښار اوسیدونکی د دے ځائے نه بهر اوباسئ پس زر به تاسو ته (د دے نتیجه) معلومه شی۔ زه به ستاسو لاسونه

اَیۡدِیَکُمۡ وَاَرۡجُلَکُمۡ مِّنۡ خِلَافٍ ثُمَّ لَاُصَلِّبَنَّکُمۡ اَجۡمَعِیۡنَ ﴿١٢٤﴾

ستاسو لاسونه | او ستاسو پښې | دَ مخالف طرف نه | بیا | به په سُولئ کړم تاسو | ټول

او پښې دَ مخالفو اړخونو نه پرېکړم بیا به تاسو ټول په سولئ وخېژوم.

قَالُوۡۤا اِنَّاۤ اِلٰی رَبِّنَا مُنۡقَلِبُوۡنَ ﴿١٢٥﴾ وَمَا تَنۡقِمُ مِنَّاۤ اِلَّاۤ اَنۡ

دوی ووئیل | بیشکه مونږ | خپل رب طرف ته | واپس تلونکی یُو | او ته بدله نه اخلې | له مونږ نه | مگر هُکه چه

هغوی ووئیل چه مونږ ټول خو خپل رب ته واپس تلونکی یُو. او ته خو مونږ نه دومره قدر بدله اخلې چه مونږ

اٰمَنَّا بِاٰیٰتِ رَبِّنَا لَمَّا جَآءَتۡنَا ؕ رَبَّنَاۤ اَفۡرِغۡ عَلَیۡنَا

مونږ ایمان راوړو | په نخښو دَ رب خپل | هر کله چه هغه راغلې مونږ ته | اے زمونږ ربه! | راواړوه | په مونږ باندې

خپل رب په نخښو (ولے) ایمان راوړے دے هر کله چه مونږ ته راورسیدے. اے زمونږ ربه! مونږ له صبر راکړه

صَبۡرًا وَّتَوَفَّنَا مُسۡلِمِیۡنَ ﴿١٢٦﴾ وَقَالَ الۡمَلَاُ مِنۡ قَوۡمِ فِرۡعَوۡنَ

صبر | او وفات راکړه مونږ ته | دَ اسلام په حالت کښې | او ووئیل سردارانو | دَ فرعون له قوم نه

او مونږ له دَ اسلام په حالت کښې مرګ راولې. او دَ فرعون دَ قوم سردارانو ووئیل چه آیا ته به موسیٰ

اَتَذَرُ مُوۡسٰی وَقَوۡمَهٗ لِیُفۡسِدُوۡا فِی الۡاَرۡضِ وَیَذَرَکَ

آیا ته پرېږدے | موسیٰ | او دَ دهٔ قوم | چه فساد دِ کوی | په زمکه کښې | او پرېږدی تا

او دَ دهٔ قوم بنی اسرائیل (دے ته) پرېږدے چه په ملک کښې بدامنی پیدا کوی او تا او ستا معبودان

وَاٰلِهَتَکَ ؕ قَالَ سَنُقَتِّلُ اَبۡنَآءَهُمۡ وَنَسۡتَحۡیٖ نِسَآءَهُمۡ ۚ

او ستا معبودان | دهٔ ووئیل | مونږ به وُوژنو | ځامن دَ دوی | او ژوندئ به پرېږدو | ښځے دَ دوی

پرېږدی. فرعون ورته ووئیل چه مونږ به ډیرزر دَ دوی ځامن وژنو او لونړه به ئے ژوندئ پرېږدو

وَاِنَّا فَوۡقَهُمۡ قٰهِرُوۡنَ ﴿١٢٧﴾ قَالَ مُوۡسٰی لِقَوۡمِهِ اسۡتَعِیۡنُوۡا بِاللّٰهِ

او بیشکه مونږ | په دوی باندې | غالب یُو | ووئیل | موسیٰ | خپل قوم ته | تاسو مدد غواړئ | دَ الله نه

او یقینًا مونږ په دوئ باند غالب یُو. موسیٰ خپل قوم ته ووئیل چه تاسو دَ الله نه مدد غواړئ

وَاصۡبِرُوۡا ۚ اِنَّ الۡاَرۡضَ لِلّٰهِ ۟ۙ یُوۡرِثُهَا مَنۡ یَّشَآءُ مِنۡ عِبَادِهٖ ؕ

او صبر کوئ | بیشکه | زمکه | دَ الله ده | هغه وارثان کوی دے | هغه څوک چه دے ئے وغواړی | له خپلو بندګانو نه

او صبر کوئ. بیشکه زمکه صرف دَ الله تعالیٰ ده، هغه په خپلو بندګانو کښې چه چا له ئے خوښه وی هغوئ له ئے

وَالۡعَاقِبَةُ لِلۡمُتَّقِیۡنَ ﴿١٢٨﴾ قَالُوۡۤا اُوۡذِیۡنَا مِنۡ قَبۡلِ اَنۡ تَاۡتِیَنَا

او انجام (خو) | دَ پرهیزګارانو دَ پاره دے | دوی ووئیل | مونږ ته تکلیف راکړے شو | وړاندې | له راتللو ستا نه مونږ ته

ورکوی، او آخر کښې کامیابی دَ پرهیزګارانو ده. دَ موسیٰ دَ قوم) خلقو ووئیل چه مونږ به ستا دَ راتللو نه وړاندې هم تنګولے

وَمِنۡ بَعۡدِ مَا جِئۡتَنَا ؕ قَالَ عَسٰی رَبُّکُمۡ اَنۡ یُّهۡلِکَ عَدُوَّکُمۡ وَ

او پس له هغے نه چه راغلے ته مونږ ته | دهٔ ووئیل | اُمید دے | چه رب ستاسو | به هلاک کړی | دښمن ستاسو او

شو او ستا دَ راتلو نه پس هم عذابیږو. موسیٰ ووئیل زر به ستاسو خدائے ستاسو دُښمن هلاک کړی او

يَسْتَخْلِفَكُمْ فِي الْأَرْضِ فَيَنظُرَ كَيْفَ تَعْمَلُونَ ﴿١٢٩﴾ ع وَلَقَدْ أَخَذْنَا

خليفه ګان به کړي تاسو | په زمکه کښې | بيا به هغه ګوري | چه څنګه | تاسو عمل کوئ | او بيشکه | ونيوو مونږ

خليفه ګان کړي او بيا دا به ګوري چه تاسو څنګه کار وونه کوئ. او مونږ دَ فرعون قوم
او تاسو به دَ دے زمکے په مخ خليفه ګان کړي او بيا دا به ګوري چه تاسو څنګه کارونه کوئ. او مونږ دَ فرعون قوم

آلَ فِرْعَوْنَ بِالسِّنِينَ وَنَقْصٍ مِّنَ الثَّمَرَاتِ لَعَلَّهُمْ يَذَّكَّرُونَ ﴿١٣٠﴾

قوم دَ فرعون | په قحطونو | او نقصان کښې | دَ ميوو | چه دوي | نصيحت قبول کړي.

خوشوکاله په سوکړه او دَ پيداوار دَ کمي په عذاب کښې راونيول چه دا خلق نصيحت حاصل کړي.

فَإِذَا جَاءَتْهُمُ الْحَسَنَةُ قَالُوا لَنَا هَٰذِهِ ۖ وَإِن تُصِبْهُمْ

پس هر کله چه | به راتله دوي ته | فراخي | نو دوي به وئيل (چه) دا زمونږ حق دے | او که چرے | رسيدله به دوي ته

نو چه بنه وخت به پرے راغے نو هغوي به وئيل چه دا خو زمونږ خپل حق دے او چه بد حال به پرے

سَيِّئَةٌ يَطَّيَّرُوا بِمُوسَىٰ وَمَن مَّعَهُ ۗ أَلَا إِنَّمَا طَائِرُهُمْ

سختي | نو سپيره به ئے ګنړل | موسیٰ | او څوک چه ده سره وو | واورئ | چه بيشکه | دَ دوي بد نصيبي

راغے نو موسیٰ عليه السلام او دَ هغهٔ ملګري به ئے سپيره ګنړل، دَ دوي خپل سپيرهٔ توب خدائے سره

عِندَ اللَّهِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴿١٣١﴾ وَقَالُوا مَهْمَا تَأْتِنَا بِهِ

دَ الله سره ده | ليکن | اکثر دَ دوي | نهٔ پوهيږي | او دوي وئيل | هر څهٔ چه | ته راوړے مونږ ته به دے سره

(دَ دے باعث) وو خو اکثر خلق په دے خبره هم نهٔ پوهيدل. دَ فرعون قوم ووئيل چه که ته مونږ ته

مِن آيَةٍ لِّتَسْحَرَنَا بِهَا فَمَا نَحْنُ لَكَ بِمُؤْمِنِينَ ﴿١٣٢﴾ فَأَرْسَلْنَا

له نخښو نه | چه ته جادو وکړے په مونږ | په دے سره | نو مونږ نهٔ يو | په تا باندې | ايمان راوړونکي | پس راوليږلو مونږ

په مونږ دَ جادو چلولو په غرض هر څومره نخښے پيش کړے خو مونږ به تا ايمان نهٔ راوړو نو مونږ په هغوي

عَلَيْهِمُ الطُّوفَانَ وَالْجَرَادَ وَالْقُمَّلَ وَالضَّفَادِعَ وَالدَّمَ آيَاتٍ

په دوي باندې | طوفان | او مُلخان | او سپږے | او چينډخے | او وينے | نخښے دے

باندې طوفان راوليږلو او مُلخان او سپږے او چينډخے او وينے دا ټولے نخښے مو

مُّفَصَّلَاتٍ فَاسْتَكْبَرُوا وَكَانُوا قَوْمًا مُّجْرِمِينَ ﴿١٣٣﴾ وَلَمَّا وَقَعَ

جُدا جُدا | نو دوي کبر وکړو | او دوي وو | خلق | مجرمان | او هر کله چه | به پريوتلو

جُدا جُدا وښودے، نو هغوي تکبر وکړو او هغه دَ مجرمانو قوم وو. او هر کله چه به په هغوي

عَلَيْهِمُ الرِّجْزُ قَالُوا يَا مُوسَى ادْعُ لَنَا رَبَّكَ بِمَا

په دوي باندې | عذاب | (نو) وئيل به ئے | اے موسیٰ | دُعا وکړه | مونږ دَ پاره | دَ خپل رب نه | په دے وجه چه

عذاب راغے نو هغوي به وئيل چه اے موسیٰ! مونږ دَ پاره دَ الله نه سوال وکړه لکه څنګه چه

عَهِدَ عِندَكَ ۖ لَئِن كَشَفْتَ عَنَّا الرِّجْزَ لَنُؤْمِنَنَّ

هغهٔ وعده وکړه | تا سره | که چرے | لرے کړو تا | له مونږ نه | عذاب | نو مونږ به خامخا ايمان راوړو

تا سره ئے وعده کړے ده که تا مونږ نه دا عذاب لرے کړو، نو مونږ به در باندې خامخا

لَكَ وَلَنُرْسِلَنَّ مَعَكَ بَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ ﴿١٣٤﴾ فَلَمَّا كَشَفْنَا عَنْهُمُ

په تا | او خامخا به ولیږو | تا سره | بني اسرائیل | پس هر کله چه | لرې به کړو مونږ | له دوی نه

ایمان راوړو او بني اسرائیل به در سره رخصت کړو ، بیا کله چه مونږ د دوی نه دغه عذاب یو خاص

الرِّجْزَ إِلَىٰٓ أَجَلٍ هُم بَٰلِغُوهُ إِذَا هُمْ يَنكُثُونَ ﴿١٣٥﴾ فَٱنتَقَمْنَا

عذاب | ترخه موده پورې | چه دوی رسیدونکي وو هغه ته | نو هم هغه وخت به دوی | وعده ماتوله | بیا مونږ انتقام واخیستو

وخته پورې چه دوی ورته رسیدونکي وو لرې کړو نو هغه ساعت به د خپلو لوظونو نه وروستو شول ، نو مونږ ترې

مِنْهُمْ فَأَغْرَقْنَٰهُمْ فِى ٱلْيَمِّ بِأَنَّهُمْ كَذَّبُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَا وَكَانُوا۟

له دوی نه | پس مونږ غرق کړل دوی | په دریاب کښې | ولې چه دوی | دروغ وګڼړل | زمونږ ایتونه | او دوی وو

نه بدله واخستله او په سمندر کښې مو ډوب کړل ، ځکه چه دوی زمونږ ایتونه دروغ ګڼړل او د هغې نه

عَنْهَا غَٰفِلِينَ ﴿١٣٦﴾ وَأَوْرَثْنَا ٱلْقَوْمَ ٱلَّذِينَ كَانُوا۟ يُسْتَضْعَفُونَ

له هغې نه | بې خبره | او مونږ وارثان کړل | هغه خلق کوم چه | کمزوري ګڼړلے شول

بالکل بې پروا وو ، او کوم قوم چه کمزورے ګڼړلے شوے وو مونږ هغوی د هغې ملک

مَشَٰرِقَ ٱلْأَرْضِ وَمَغَٰرِبَهَا ٱلَّتِى بَٰرَكْنَا فِيهَا ۖ وَتَمَّتْ

په مشرقونو د زمکه کښې | او په مغربونو د دې کښې | هغه زمکه | چه برکت اچولے وو مونږ | په هغې کښې | او پوره شوه

د مشرق او د مغرب وارثان کړل چه مونږ پکښې برکتونه اچولي وو او د بني اسرائیلو

كَلِمَتُ رَبِّكَ ٱلْحُسْنَىٰ عَلَىٰ بَنِيٓ إِسْرَٰٓءِيلَ بِمَا صَبَرُوا۟ ۖ وَدَمَّرْنَا

وعده | ستا د رب | نیکه | په بني اسرائیلو | د دوی د صبر په وجه | او برباد کړل مونږ

په حقله ستا د رب ښائسته وعده پوره شوه ، ځکه چه هغوی صبر کړے وو او فرعون

مَا كَانَ يَصْنَعُ فِرْعَوْنُ وَقَوْمُهُۥ وَمَا كَانُوا۟ يَعْرِشُونَ ﴿١٣٧﴾ وَجَٰوَزْنَا

هغه څه چه جوړول به | فرعون | او د ده قوم | او هغه چه دوی به ئې چتونه جوړول | او مونږ تیر کړل

او د هغه قوم چه څه جوړول او (اوچت اوچت عمارتونه ئې) خیژول هغه ټول مونږ تباه کړل ۔ او مونږ

بِبَنِيٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ٱلْبَحْرَ فَأَتَوْا۟ عَلَىٰ قَوْمٍ يَعْكُفُونَ

بني اسرائیل | د سمندر نه | نو دوی راغلل | په یو داسے قوم | چه په عبادت کښې لګیا وو

بني اسرائیل د سمندر نه تیر کړل نو په لاره کښې په یو داسے قوم ورغلل چه خپلو بُتانو ته

عَلَىٰٓ أَصْنَامٍ لَّهُمْ ۚ قَالُوا۟ يَٰمُوسَى ٱجْعَل لَّنَآ إِلَٰهًا

د خپلو بتانو | دوی ووئیل | اے موسیٰ! | جوړ کړه | مونږ د پاره (هم) | یو معبود

رمنجوران) ناست وو ، نو دوئ ووئیل چه اے موسیٰؑ! چه مونږ له د دوی د معبود

كَمَا لَهُمْ ءَالِهَةٌ ۚ قَالَ إِنَّكُمْ قَوْمٌ تَجْهَلُونَ ﴿١٣٨﴾ إِنَّ هَٰٓؤُلَآءِ

لکه څنګه چه | د دوی دي | معبودان | ده ووئیل | بیشکه تاسو خو | خلق یئ | ډیر جاهلان | بیشکه | دا خلق

په شان معبود جوړ کړه موسیٰؑ ورته ووئیل چه تاسو خو ډیر ناپوهه خلق یئ۔ دا خلق چه په کوم

مُتَبَّرٌ مَّا هُمْ فِيهِ وَبٰطِلٌ مَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿١٣٩﴾
تباه کیدونکی دی | چه په کومه (بت پرستی) کښے لګیادی | او باطل دے | هغه (کار) | چه دوی | کولو۔
تباه کیدونکی دی هغه خو دَ تباهئ لار ده ، او دَ دوی ټول عبادت سراسر بے بنیاده دے۔ لاره روان دی

قَالَ أَغَيْرَ اللّٰهِ أَبْغِيكُمْ إِلٰهًا وَّهُوَ فَضَّلَكُمْ عَلَى الْعٰلَمِينَ ﴿١٤٠﴾
دوئیل ده | آیا دَ الله نه سوا | نهٔ ولټوم تاسو له | معبود؟ | او هغهٔ فضیلت درکړے دے تاسو ته | په جهان والو بانڼ
موسیٰ دو وئیل آیا دَ الله تعالیٰ نه سوا تاسو دَ پاره بل معبود ولټوم حال دا دے چه هغهٔ تاسو دَ نور مخلوق نه غوره کړی

وَإِذْ أَنْجَيْنٰكُمْ مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ يَسُومُونَكُمْ سُوْٓءَ الْعَذَابِ
او دیاد کړئ کله چه | مونږ نجات درکړو تاسو ته | دَ فرعون دَ قوم نه | چه درکولو به ئے تاسو ته | سخت | عذاب
بیٔ۔ او هغه وخت یاد کړئ کله چه مونږ تاسو دَ فرعون دَ قوم نه خلاص کړئ چه تاسو له به ئے سخت عذاب درکولو

يُقَتِّلُونَ أَبْنَآءَكُمْ وَيَسْتَحْيُونَ نِسَآءَكُمْ ۚ وَفِي ذٰلِكُمْ
چه دوی به وژل | ستاسو ځامن | او ژوندئ به ئے پریښودلے | ستاسو ښځے | او په دے کښے
او ستاسو ځامن به ئے وژل ، او ستاسو جینکئ به ئے ژوندئ پریښودلے او په دے کښے ستاسو دَ

بَلَآءٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ عَظِيمٌ ﴿١٤١﴾ وَوٰعَدْنَا مُوسٰى ثَلٰثِينَ لَيْلَةً
آزمیښت وو | ستاسو دَ رب دَ طرف نه | ډیر لوئے | او مونږ وعده کړے وه | موسیٰ سره | دَ دیرشو | شپو
رب دَ طرف نه ډیر لوئے آزمیښت وو ۔ او مونږ موسیٰ سره دَ دیرشو شپو (دَ اعتکاف) وعده وکړه

وَّأَتْمَمْنٰهَا بِعَشْرٍ فَتَمَّ مِيقٰتُ رَبِّهٖٓ أَرْبَعِينَ
او پوره کړو مونږ دا | په لسو (شپو) سره | بیا پوره شوه | موده مقرره | دَ هغهٔ دَ رب | څلویښت
او بیا مو پرے لس ورځے سوا کړے ، نو دَ هغهٔ دَ خدائے نیټه په څلویښتو شپو کښے پوره

لَيْلَةً ۚ وَقَالَ مُوسٰى لِأَخِيهِ هٰرُونَ اخْلُفْنِي فِي قَوْمِي وَأَصْلِحْ
شپے | او وئیل | موسیٰ | خپل ورور هارون ته | ته خلیفه شه زما | زما په قوم کښے | او اصلاح کوه
شوه او موسیٰ خپل ورور هارون ته وئیلی وو چه ته زما نه پس په قوم باندِ زما خلیفه شوے او اصلاح

وَلَا تَتَّبِعْ سَبِيلَ الْمُفْسِدِينَ ﴿١٤٢﴾ وَلَمَّا جَآءَ مُوسٰى لِمِيقٰتِنَا وَكَلَّمَهٗ
او تابعداری مهٔ کوه | دَ لارے | دَ فساد کوونکو | او هر کله چه راغلو | موسیٰ | زمونږ په میعاد | او خبرے وکړے هغهٔ
کوه او دَ فساد یانو په رائے عمل مهٔ کوه ۔ هر کله چه موسیٰ زمونږ په مقرره نیټه راغے او الله ورسره

رَبُّهٗ ۙ قَالَ رَبِّ أَرِنِيٓ أَنْظُرْ إِلَيْكَ ۚ قَالَ لَنْ تَرٰىنِي
دَ هغهٔ رب | هغه وو وئیل | اے زما ربه | ښکاره په ما ته | چه بو نظر واچوم په تا | الله وفرمائیل | هیڅ کله نهٔ شے کتلے ما
خبرے وکړے نو موسیٰ وو وئیل اے ربه. ته ما ته ښکاره چه زهٔ تا بو نظر وګورم ، الله وفرمائیل ته ما هر ګز نهٔ شے لیدلے

وَلٰكِنِ انْظُرْ إِلَى الْجَبَلِ فَإِنِ اسْتَقَرَّ مَكَانَهٗ فَسَوْفَ تَرٰىنِي ۚ
لیکن | وګوره | دَ غر طرف ته | که چرے | قلار پاتے شو | په خپل ځائے | نو ته به هم ما ووینے
خو دے غر ته ګوره که په خپل ځائے قلار پاتے شو ، نو ته به هم ما ولیدلے شے

فَلَمَّا تَجَلّٰى رَبُّهٗ لِلْجَبَلِ جَعَلَهٗ دَكًّا وَّخَرَّ مُوْسٰى

نو هر كله چه | تجلي وكړه | رب ده هغهٔ | په غر باندِ | نو كړو ئے هغه | ذره ذره | او پريوتلو | موسیٰ

نو هر كله چه الله په غر باندِ تجلي وكړه ، نو هغه ئے ذرے ذرے كړو او موسیٰ علیه السلام بے هوشه

صَعِقًا ۚ فَلَمَّآ اَفَاقَ قَالَ سُبْحٰنَكَ تُبْتُ اِلَيْكَ

بے هوشه | بيا هر كله چه | هغهٔ ته هوش راغلو | نو ووئيل دهٔ | پاک دے ذات ستا | زهٔ توبه اُوباسم | ستا په حضور كښے

پريوتلو ، بيا چه په هوش كښے راغے نو وئے وئيل چه ته پاک ذات يئے ، زهٔ ستا په حضور كښے توبه اوباسم

وَاَنَا اَوَّلُ الْمُؤْمِنِيْنَ (١٤٣) قَالَ يٰمُوْسٰٓى اِنِّى اصْطَفَيْتُكَ

او زهٔ | د ټولو نه وړومبے | يقين لرونكے يم | وئے فرمائيل | اے موسیٰ ! | بيشكه ما | غوره كړے يئے ته

او د هرچا نه وړو مبے ايمان راوړم ۔ الله تعالیٰ وفرمائيل اے موسیٰ ! ما ته د نورو خلقو نه غوره

عَلَى النَّاسِ بِرِسٰلٰتِىْ وَبِكَلَامِىْ ۖ فَخُذْ مَآ اٰتَيْتُكَ وَكُنْ

په خلقو باندِ | په پيغامونو خپلو | او په اورولو د خبرے خپلے | پس واخله | هغهٔ چه دركړل ما تا ته | او اُوسه ته

كړے يئے چه رسالت مِ دركړے دے او خبرے مِ درسره كړی دی ، نو هغهٔ چه مِ دركړی دی هغه واخله او

مِّنَ الشّٰكِرِيْنَ (١٤٤) وَكَتَبْنَا لَهٗ فِى الْاَلْوَاحِ مِنْ كُلِّ شَىْءٍ مَّوْعِظَةً

له شكر گزارو نه | او وُ ليكل مونږ | هغهٔ د پاره | په تختو كښے | د هر رنگ | نصيحت

شكر گزار اُوسه ۔ او مونږ ورته په بو څو تختو باند هر قسم نصيحتونه او د

وَّتَفْصِيْلًا لِّكُلِّ شَىْءٍ ۚ فَخُذْهَا بِقُوَّةٍ وَّاْمُرْ قَوْمَكَ يَاْخُذُوْا

او تفصيل | د هر | څيز | پس وُنيسه دا | په قوت سره | او حكم وُكړه | خپل قوم ته | چه اختيار كړی

هرے مسئلے تفصيل وليكلو (او ورته مو ووئيل) چه دا هدايتونه كلک وُنيسه او خپل قوم ته حكم وكړه چه هغوی

بِاَحْسَنِهَا ۭ سَاُورِيْكُمْ دَارَ الْفٰسِقِيْنَ (١٤٥) سَاَصْرِفُ عَنْ اٰيٰتِىَ

د دے ډيرے ښے خبرے | ډير زر به زهٔ وښايم تاسو ته | كور | د گناهگارو | بيرته به اوساتم زهٔ | د خپلو آيتونو نه

د دے په ډير ونبو خبرو عمل وكړی ، زهٔ به درته ډير زر د بد عملو خلقو كورونه وُښايم ۔ زهٔ به د هغو كسانو مخونه د خپلو

الَّذِيْنَ يَتَكَبَّرُوْنَ فِى الْاَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ ۭ وَاِنْ يَّرَوْا كُلَّ اٰيَةٍ

هغه خلق چه | تكبر كوی | په زمكه كښے | په ناحقه | او كهٔ چرے دوی وگوری | ټول معجزے

آيتونو نه بيرته لرم چه د زمكے په مخ هيڅ بے هيڅه ځان غټ گنړی ۔ او كهٔ دوی هر قسم نخښے هم ووينی

لَّا يُؤْمِنُوْا بِهَا ۚ وَاِنْ يَّرَوْا سَبِيْلَ الرُّشْدِ لَا يَتَّخِذُوْهُ سَبِيْلًا ۚ

نو ايمان نهٔ راوړی | په هغے | او كهٔ چرے | دوی وگوری | لار | د هدايت | نو نهٔ نيسی هغه | لار لاره

خو ايمان پرے نهٔ راوړی او كهٔ نيغه لاره ورته ښكاره شی خو په هغے باندِ نهٔ ځی

وَاِنْ يَّرَوْا سَبِيْلَ الْغَىِّ يَتَّخِذُوْهُ سَبِيْلًا ۭ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ كَذَّبُوْا

او كهٔ چرے | دوی وگوری | لار ه | د گمراهئ | نو نيسی هغه | (خپله) لاره | دا ځكه چه دوی | دروغ گنړی

او كهٔ چرے د گمراهئ لاره وگوری نو په هغے باندِ روان شی ۔ دا په دے وجه چه دوی زموږ

بِاٰيٰتِنَا وَكَانُوْا عَنْهَا غٰفِلِيْنَ ﴿١٤٦﴾ وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا

زمونږ آيتونه | دروغ ئې وګڼړل | او هلته خلق چه | غافله | له هغې نه | او وو دوی | زمونږ آيتونه

آيتونه دروغ وګڼړل او د هغې نه بے پرواه دی . او چا چه زمونږ آيتونه او د آخرت ملاقات

وَلِقَآءِ الْاٰخِرَةِ حَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ ؕ هَلْ يُجْزَوْنَ اِلَّا

او ملاقات | د آخرت | ضائع شول | د دوی عملونه | او دوی ته بدله مومی | صرف د هغه کارونو

دروغ وګڼړل ، د هغوی عملونه ضائع لاړل هغوی ته به نور څه نه بلکه فقط د

مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿١٤٧﴾ وَاتَّخَذَ قَوْمُ مُوْسٰى مِنْۢ بَعْدِهٖ مِنْ حُلِيِّهِمْ

کوم چه به دوی کول | او جوړ کړو | د موسیٰ قوم | پس له دے نه | د خپلو کالو نه

خپلو عملونو بدله ورکولے شی . او د موسیٰ قوم د هغهٔ (طور ته د تلو) نه پس د خپلو کالو نه .یو سخے جوړ

عِجْلًا جَسَدًا لَّهٗ خُوَارٌ ؕ اَلَمْ يَرَوْا اَنَّهٗ لَا يُكَلِّمُهُمْ

سخے | چه يو بدن وو | چه پکښے آواز وو | آيا دوی ونهٔ ليدل | چه هغه | خبرے نهٔ کوی د دوی سره

کړو ، يو داسے جوسه وه چه آواز به ئے کولو آيا دوی (دومره قدر) نهٔ کتل چه نهٔ ئے ورسره خبرے

وَلَا يَهْدِيْهِمْ سَبِيْلًا ۘ اِتَّخَذُوْهُ وَكَانُوْا ظٰلِمِيْنَ ﴿١٤٨﴾

او نهٔ ښائی دوی ته | (څهٔ) لاره | دوی هغه (معبود) جوړ کړو | او دوی وو | ظالمان

کولے او نه ئے ورته (حقه) لاره ښودله هغوی دا معبود ونیولو او هغوی ډیر ظالمان وو .

وَلَمَّا سُقِطَ فِيْۤ اَيْدِيْهِمْ وَرَاَوْا اَنَّهُمْ قَدْ ضَلُّوْا ۙ

او هر کله چه | شرمنده شول | او دوی وليدل | چه دوی | بے لارے شول

او کله چه هغوی (د دے عمل نه) شرمنده شول او هغوی وکتل چه دوی واقعی ګمراه شوی دی

قَالُوْا لَئِنْ لَّمْ يَرْحَمْنَا رَبُّنَا وَيَغْفِرْ لَنَا لَنَكُوْنَنَّ

نو دوی وويل | که چرے | رحم ونهٔ کړو په مونږ | زمونږ رب | او | ونهٔ (نهٔ) بخښلو مونږ | نو خامخا به مونږ شو

نو دوی وويل چه که خپل حق لیئے رابانلِ رحم ونهٔ کړی او زمونږ ګناه ونهٔ بخښی نو مونږ به خامخا

مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ﴿١٤٩﴾ وَلَمَّا رَجَعَ مُوْسٰۤى اِلٰى قَوْمِهٖ غَضْبَانَ اَسِفًا ۙ

له نقصان موندونکو نه | او هر کله چه | واپس راغے | موسیٰ | د خپل قوم طرف ته | په غصه کښے | او غم کښے

برباد شو . او هر کله چه موسیٰ علیه السلام د غصے او د غم نه ډک خپل قوم ته واپس راغے

قَالَ بِئْسَمَا خَلَفْتُمُوْنِيْ مِنْۢ بَعْدِيْ ۚ اَعَجِلْتُمْ اَمْرَ رَبِّكُمْ ۚ

نو ئے وويل | ډيره خرابه | قائم مقامی وکړه تاسو | له مانه پس | آيا تلوار وکړه تاسو | د خپل رب د حکم نه ؟

نو وئے ويل چه زمانه پس تاسو ډير خراب کار وکړو آيا د خدائے د حکم د راتلو نه وړاندې مو تلوار وکړو ؟

وَاَلْقَى الْاَلْوَاحَ وَاَخَذَ بِرَاْسِ اَخِيْهِ يَجُرُّهٗۤ

او وئے غورزولے | تختيانے (د تورات) | او وئے نيولو | سر | د خپل ورور | چه راښکوئے

او موسیٰ علیه السلام تختئ وغورزولے او د خپل ورور (هارون) د سر ويښته ئے ونيول او ځان ته ئے

إِلَيْهِ ۚ قَالَ ابْنَ أُمَّ إِنَّ الْقَوْمَ اسْتَضْعَفُونِي وَكَادُوا

خان ته | ووئیل (هارونؑ) | اے زما دَ مور ځویه | بیشکه دِے خلقو | زهٔ کمزوری وګڼلم | او نزدے وو

را نښکل ۔ هارونؑ ورته ووئیل اے زما دَ مور ځویه! دِے خلقو زهٔ کمزورے وګڼلم او نزدے وه چه

يَقْتُلُونَنِي ۫ۖ فَلَا تُشْمِتْ بِيَ الْأَعْدَاءَ وَلَا تَجْعَلْنِي

چه وُم وژنی | پس مهٔ خوشحالوه | په ما باندِ | دښمنان | او مهٔ شاملوه ما

زهٔ ئے قتل کړے وے، نو دښمنان را باندِ مهٔ خوشحالوه ، او دَ ظالمانو په ډله

مَعَ الْقَوْمِ الظَّالِمِينَ ۝١٥٠ قَالَ رَبِّ اغْفِرْ لِي وَلِأَخِي وَ

هغه خلقو سره | چه ظالمان دی | دهٔ ووئیل | اے زما ربه! | معاف کړه ما | او زما ورور | او

کښے م مهٔ شمیره ۔ موسیٰ علیه السلام ووئیل اے زما خدایه! ما او زما ورور وبخښه او

أَدْخِلْنَا فِي رَحْمَتِكَ ۖ وَأَنْتَ أَرْحَمُ الرَّاحِمِينَ ۝١٥١ إِنَّ الَّذِينَ

داخل کړه مونږ | په خپل رحمت کښے | او ته | دَ ټولو نه زیات رحم کوونکے یے | بیشکه کوم چه

مونږ په خپل رحمت کښے داخل کړه او ته دَ ټولو نه زیات رحم کوونکے یے ۔ بیشکه کوم خلقو

اتَّخَذُوا الْعِجْلَ سَيَنَالُهُمْ غَضَبٌ مِنْ رَبِّهِمْ وَذِلَّةٌ

ونیولو (معبود) | سخے | وُبه رسیږی دوی ته | غضب | دَ دوی دَ رب | او ذلت

چه سخے معبود جوړ کړے وو په هغوی به ډیر زر دَ هغوی دَ رب دَ طرف نه عذاب نازل شی او دَ

فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا ۚ وَكَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُفْتَرِينَ ۝١٥٢ وَالَّذِينَ

په ژوند دَ دُنیا کښے | او دغه شان | مونږ سزا ورکوو | دروغ تړونکو ته | او هغه خلق کوم چه

دُنیا په ژوند کښے رسوائی (هم)، او دغه شان مونږ دروغ جوړوونکو ته سزا ورکوو ، او هغه خلق کوم

عَمِلُوا السَّيِّئَاتِ ثُمَّ تَابُوا مِنْ بَعْدِهَا وَآمَنُوا إِنَّ رَبَّكَ

بد عملونه وُکړل | بیائے توبه وکړه | پس له دے نه | او ایمان ئے راوړو | بیشکه ستا رب

چه خراب کارونه کړی دی ، بیائے دَ هغے نه پس توبه وکړه او ایمان ئے راوړو نو بیشکه ستا رب

مِنْ بَعْدِهَا لَغَفُورٌ رَحِيمٌ ۝١٥٣ وَلَمَّا سَكَتَ عَنْ مُوسَى

دَ دِے نه پس | بخښونکے | مهربان دے | او کله چه خاموشه شوه (کمه شوه) | دَ موسیٰ

دَ توبے ایستلو نه پس بخښونکے (او) مهربان دے او هر کله چه دَ موسیٰ علیه السلام غصه

الْغَضَبُ أَخَذَ الْأَلْوَاحَ ۖ وَفِي نُسْخَتِهَا هُدًى وَرَحْمَةٌ

غصه | نو را اُوچتے ئے کړے هغهٔ تختئ | او دَ هغے په لیکلے شوی کښے | هدایت | او رحمت (وو)

سړه شوه نو تختئ ئے راواوچتے کړے دَ دِے په مضامینو کښے هدایت او رحمت وو

لِلَّذِينَ هُمْ لِرَبِّهِمْ يَرْهَبُونَ ۝١٥٤ وَاخْتَارَ مُوسَى قَوْمَهُ

دَ هغو خلقو دَ پاره | چه دَ خپل رب نه | ویریږی | او خوښ کړل | موسیٰ | دَ خپل قوم

دَ هغه چا دَ پاره چه دَ خپل رب نه ویریږی ۔ اوموسیٰ علیه السلام دَ خپل قوم نه اویا تنه سړی

سَبْعِيْنَ رَجُلًا لِّمِيْقَاتِنَا ۚ فَلَمَّآ اَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ قَالَ

اویا (۷۰) | سړی | زمونږ دَ وعدے دَ پاره | پس هر کله چه | ونیول دوی لره | زلزلے | نو وئے وئیل

خوبن کړل چه زمونږ مقرر ے نیټے له (راشی) بیا چه هغوی زلزلے راونیول، نو موسیٰ وویئیل

رَبِّ لَوْ شِئْتَ اَهْلَكْتَهُمْ مِّنْ قَبْلُ وَاِيَّايَ ۭ اَتُهْلِكُنَا

اے ربه! | که چرے تا غوښتلے | نو هلاک کړی به وو تا دوی | له دے نه وړاندے | او زهٔ (هم) | آیا ته مونږ هلاکوے

اے زما خدایه! که تا غوښتلے نو دوی او زهٔ به دِ لا پخوا هلاک کړی وو - آیا ته مونږ تول

بِمَا فَعَلَ السُّفَهَاۗءُ مِنَّا ۚ اِنْ هِيَ اِلَّا فِتْنَتُكَ ۭ

په بدله دَ هغه څهٔ | چه وکړل | کم عقلو | له مونږ نه | نهٔ دی | دا (څهٔ تور) | مګر صرف | ستا ازمینت دے

په هغے (جرم) هلاکوے چه په مونږ کښے دَ بوشو کم عقلو د لاسه شوے دے - دا خو فقط ستا یو ازمیښت دے

تُضِلُّ بِهَا مَنْ تَشَاۗءُ وَتَهْدِيْ مَنْ تَشَاۗءُ ۭ اَنْتَ

ته ګمراه کوے | په دے سره | څوک | چه ته غواړے | او ته هدایت ورکوے | چا ته چه | ته غواړے | ته یئے

چه چا ته دِ خوښه وی هغه پرے ګمراه کوے او چا ته چه دِ خوښه شی هغهٔ ته پرے هدایت کوے، زمونږ

وَلِيُّنَا فَاغْفِرْ لَنَا وَارْحَمْنَا وَاَنْتَ خَيْرُ الْغٰفِرِيْنَ ۝ﱚ

زمونږ کارساز | پس وبخښه مونږ | او رحم وکړه په مونږ | او ته | دَ ټولو نه ښهٔ | بخښونکے یئے -

کارساز خو ته یئے نو مونږ معاف کړه او په مونږ باندِ رحم وکړه او ته دَ ټولو نه زیات معاف کوونکے یئے -

وَاكْتُبْ لَنَا فِيْ هٰذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّفِي الْاٰخِرَةِ اِنَّا

او ولیکه | مونږ دَ پاره | په دِ دے دنیا کښے | نیکی | او په آخرت کښے (هم) | بیشکه مونږ

او مونږ دَ پاره په دِ دے دُنیا کښے هم نیکی ولیکه او په آخرت کښے هم ، بیشکه مونږ

هُدْنَآ اِلَيْكَ ۭ قَالَ عَذَابِيْٓ اُصِيْبُ بِهٖ مَنْ اَشَاۗءُ ۚ وَرَحْمَتِيْ

رجوع وکړه | تا ته | وئے فرمائیل | خپل عذاب | زهٔ رسوم | هغه چا ته چه زهٔ غواړم | او زما رحمت

تا ته رجوع کړو - ارشاد وشو چه زهٔ خپل عذاب چا له غواړم هغهٔ ته رسوم او زما رحمت

وَسِعَتْ كُلَّ شَيْءٍ ۭ فَسَاَكْتُبُهَا لِلَّذِيْنَ يَتَّقُوْنَ

خور دے | په هر څیز | پس ډیر زر به زهٔ دا ولیکم | هغو خلقو دَ پاره چه | پرهیزګاری کوی

په هر څیز باندِ خور دے ، پس زهٔ به دا نیکی هغه خلقو دَ پاره ضرور لیکم چه پرهیزګاری کوی

وَيُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ وَالَّذِيْنَ هُمْ بِاٰيٰتِنَا يُؤْمِنُوْنَ ۝ﱛ اَلَّذِيْنَ

او ورکوی | زکوٰة | او هغه خلق کوم چه | زمونږ په آیتونو | یقین کوی - | کوم خلق چه

او زکوٰة ورکوی او هغه خلقو دَ پاره چه زمونږ په آیتونو باندِ ایمان راوړی ، هغه خلق چه دَ

يَتَّبِعُوْنَ الرَّسُوْلَ النَّبِيَّ الْاُمِّيَّ الَّذِيْ يَجِدُوْنَهٗ مَكْتُوْبًا

تابعداری کوی | دَ رسول | چه نبی | اُمی دے | هغه پیغمبر | چه دوی مومی هغه | لیکلے شوے

داسے رسول نبی امی پیروی کوی ، چه دَ هغهٔ ذکر دوی خپل څان سره په تورات او په

عِنْدَهُمْ فِي التَّوْرٰىةِ وَالْإِنْجِيْلِ يَاْمُرُهُمْ بِالْمَعْرُوْفِ

دَ خپلو ځانو سره | په تورات کښے | او انجيل (کښے) | هغه حکم کوی دوی ته | دَ نيک کار

انجيل دواړه کښے ليکلی بيا موی ، او هغه دوی ته دَ نيکئ حکم کوی

وَيَنْهٰىهُمْ عَنِ الْمُنْكَرِ وَيُحِلُّ لَهُمُ الطَّيِّبٰتِ وَيُحَرِّمُ

او منع کوی دوی | له بد کار نه | او حلالوی | دوی دپاره | پاکيزه څيزونه | او حراموی

او له بدو کارونو نه ئے منع کوی او پاکيزه څيزونه دَ دوی دَ پاره حلالوی ، او ناپاک څيزونه

عَلَيْهِمُ الْخَبٰٓئِثَ وَيَضَعُ عَنْهُمْ اِصْرَهُمْ وَالْاَغْلٰلَ

په دوی باندِ | ناپاک څيزونه | او کوزوی | له دوی نه | دَ دوی پيتی | او قيدونه

هغوی دَ پاره حراموی ، او له دوی نه پيتی کوزوی ، او طوقونه

الَّتِيْ كَانَتْ عَلَيْهِمْ ؕ فَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِهٖ وَعَزَّرُوْهُ وَنَصَرُوْهُ

کوم چه | وُو | په دوی باندِ | پس کوم خلق | چه ايمان ئے راوړو | په هغهٔ | او دَ هغهٔ ملاتړئے وکړو | او دَ هغهٔ مدد ئے وکړو

ترے نه پرانيزی ، نو څوک چه په هغهٔ ايمان راوړی او دَ هغهٔ ملاتړ وکړی او مدد ئے وکړی

وَاتَّبَعُوا النُّوْرَ الَّذِيْٓ اُنْزِلَ مَعَهٗٓ ۙ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ﴿١٥٧﴾ ع ١٩

او تابعداری وکړه دوی | دَ هغه نور کوم چه | نازل کړے شو | دَ دهٔ سره | هم دغه خلق دی | کاميابی موندونکی

او په هغه رڼا پسے روان شی چه هغهٔ سره نازله شوے ده . نو هم دغه کسان کامياب دی .

قُلْ يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اِنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ اِلَيْكُمْ جَمِيْعَا الَّذِيْ لَهٗ

ووايه | اے خلقو! | بيشکه زهٔ | دَ الله پيغمبر يم | تا سو ټولو طرف ته | دَ چا دَ پاره چه ده

(اے پيغمبره!) ووايه چه اے خلقو! زهٔ دَ خدائے رسول يم چه تاسو ټولو ته رالېږلے شوے يم ، هغه خدائے

مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ يُحْيٖ وَيُمِيْتُ

بادشاهی | دَ آسمانونو | او دَ زمکے | نشته دے څوک معبود | سوا دَ هغهٔ نه | هغه ژوندی کوی | او هغه مړه کوی

چه دَ آسمانونو او زمکے مالک دے ، بے دَ هغهٔ نه بل معبود نشته هم هغه ژوند بخښی او هم هغه مرګ

فَاٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهِ النَّبِيِّ الْاُمِّيِّ الَّذِيْ يُؤْمِنُ

پس تاسو ايمان راوړئ | په الله | او دَ هغهٔ په رسول | چه نبی | اُمّی دے | کوم چه | ايمان راوړی

راولی نو تاسو ټول په الله ايمان راوړئ او دَ هغهٔ په رسول چه امّی نبی دے چه په الله او دَ هغهٔ

بِاللّٰهِ وَكَلِمٰتِهٖ وَاتَّبِعُوْهُ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ ﴿١٥٨﴾

په الله | او دَ هغهٔ په کلام | او تابعداری وکړئ دَ هغهٔ | دَ پاره دَ دے چه تاسو | سمه لار بيا مومئ .

په کلام باندِ (پخپله هم) ايمان لری او دَ هغهٔ تابعداری وکړئ چه تاسو سمه لار بيا مومئ .

وَمِنْ قَوْمِ مُوْسٰٓى اُمَّةٌ يَّهْدُوْنَ بِالْحَقِّ وَبِهٖ

او دَ موسیٰ دَ قوم نه | يوه ډله ده | چه لار ښائی | دَ حق طرف ته | او هم دَ دے مطابق

او دَ موسیٰ عليه السلام په قوم کښے داسے يو ټولے هم شته چه دَ حق لارے هدايت کوی او دَ حق مطابق

يَعْدِلُونَ ﴿١٥٩﴾ وَقَطَّعْنٰهُمُ اثْنَتَيْ عَشْرَةَ اَسْبَاطًا اُمَمًا ؕ

دوی انصاف کوی | او مونږ جُدا جُدا کړل دوی | دولس قسمه | قبیلے قبیلے | ډلے ډلے

دوی انصاف کوی — او مونږ دوی په دولسو قبیلو کښے په جُدا جُدا ټولو کښے تقسیم کړل

وَاَوْحَيْنَاۤ اِلٰى مُوْسٰۤى اِذِ اسْتَسْقٰىهُ قَوْمُهٗۤ اَنِ اضْرِبْ

او مونږ وحی وکړه | موسیٰ طرف ته | کله چه اُوبه وغوښتلے دَده نه | دَده قوم | چه ووهه

او کوم وخت چه قوم دَ موسیٰ علیه السلام نه اُوبه وغوښتلے نو مونږ ورته وحی وکړه چه فلانے کټ

بِّعَصَاكَ الْحَجَرَ ۚ فَانْۢبَجَسَتْ مِنْهُ اثْنَتَا عَشْرَةَ عَيْنًا ؕ

په خپله همسا | کانړے | پس روانے شوے | دَ هغے نه | دولس (۱۲) | چینے

په همسا ووهه — نو دَ هغے نه دولس چینے راوُختکیدے، هریو

قَدْ عَلِمَ كُلُّ اُنَاسٍ مَّشْرَبَهُمْ ؕ وَظَلَّلْنَا عَلَيْهِمُ

وپیژندلو | هرے یوے | قبیلے | خپل خپل گودر | او مونږ سیورے کړو | په دوی باندِ

ټولی خپل خپل گودر معلوم کړو. او مونږ په دوی دَ وریځے

الْغَمَامَ وَاَنْزَلْنَا عَلَيْهِمُ الْمَنَّ وَالسَّلْوٰى ؕ كُلُوْا مِنْ طَيِّبٰتِ

دَ وریځے | او نازل کړل مونږ | په دوی باندِ | ترنجبین | او مرزان | چه خورئ | له پاکیزه څیزونو نه

سیورے وُکړو، او من او سلویٰ مو پرے نازل کړو چه هغه پاک څیزونه خورئ

مَا رَزَقْنٰكُمْ ؕ وَمَا ظَلَمُوْنَا وَلٰكِنْ كَانُوْۤا اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ﴿١٦٠﴾

کوم چه مونږ درکړل تاسو ته | او نهٔ دے کړے ظلم دوی په مونږ | لیکن دوی به په خپلو ځانونو | ظلم کولو

چه مونږ درله روزی کړی دی او مونږ په دوی ظلم نهٔ دے کړے بلکه دوی پخپله په خپلو ځانونو ظلم کړے دے

وَاِذْ قِيْلَ لَهُمُ اسْكُنُوْا هٰذِهِ الْقَرْيَةَ وَكُلُوْا مِنْهَا حَيْثُ

او هر کله چه | او وئیلے شول | دوی ته | چه اُوسیږئ تاسو | په دے | کلی کښے | او خورئ | له دغه کلی نه | کوم ځائے نه چه

او کوم وخت چه ورته وویلے شو چه په دے کلی کښے اُوسیږئ او دَ هغے دَ فصلونو نه په مرضئ

شِئْتُمْ وَقُوْلُوْا حِطَّةٌ وَّادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا نَّغْفِرْ

تاسو غواړئ | او وایئ | "معاف کړه" (مونږ) | او داخل شئ | دروازے نه | سجده کوونکی | چه وُبخښو مونږ

خورئ او حِطّة حِطّة وایئ، او دَ ښار دروازے ته دَ سجدے په حالت کښے ورننوځئ، مونږ به ستا

لَكُمْ خَطِيْٓـٰٔتِكُمْ ؕ سَنَزِيْدُ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿١٦١﴾ فَبَدَّلَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا

تاسو له | گناهونه ستاسو | زیات به ورکړو مونږ | نیکانو ته | پس بدله کړه | هغو چه ظالمان وو

خطاگانے معاف کړو او نیکانو خلقو سره به دَ دے نه زیاته مهربانی وکړو. نو په دوئ کښے چه څوک ظالمان وو،

مِنْهُمْ قَوْلًا غَيْرَ الَّذِيْ قِيْلَ لَهُمْ فَاَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ

له دوی نه | خبره | سوا دَ هغے نه | چه وئیلے شوی وه | دوی ته | پس راولیږلو مونږ | په دوی باندِ

هغوئ نبودلے تکے په بل ټکی بدل کړو. نو مونږ په دوی باندِ دَ دے ظلم

رِجْزًا مِّنَ السَّمَآءِ بِمَا كَانُوْا يَظْلِمُوْنَ ﴿۱۶۲﴾ وَسْئَلْهُمْ

عذاب | له آسمان نه | په دے وجه چه | دوی ظلم کوو | او تپوس وکړه له دوی

په وجه دَ آسمان نه عذاب را نازل کړو - او دَ دوی نه دَ هغے کلی

عَنِ الْقَرْيَةِ الَّتِىْ كَانَتْ حَاضِرَةَ الْبَحْرِ اِذْ يَعْدُوْنَ

دَ دے کلی په حقله | کوم چه | آباد وو | په غاړه | دَ سمندر | کله چه | دوی دَ حد نه تیریدل

په حقله تپوس وکړه چه دَ سمندر په غاړه آباد وو، چه هغوی به دَ سبت په ورځ دَ حد نه

فِى السَّبْتِ اِذْ تَاْتِيْهِمْ حِيْتَانُهُمْ يَوْمَ سَبْتِهِمْ شُرَّعًا

په ورځ دَ خالی | کله چه راتلل به دوی ته | دَ دوی کبان | په ورځ دَ خالی دَ دوی | ښکاره

تجاوز کولو چه کبان به ورته دَ سبت په ورځ ښکاره راتلل

وَّيَوْمَ لَا يَسْبِتُوْنَ ۙ لَا تَاْتِيْهِمْ ۚ كَذٰلِكَ ۚ نَبْلُوْهُمْ

او کومه ورځ چه | به دَ هغے نه وه | نو نهٔ به راتلل دوی ته | دغه شان | مونږ به آزمائیل دوی

او چه دَ سبت ورځ به نهٔ وه نو نهٔ به راتلل ، په دے چل مو دَ هغوی آزمیښت کولو

بِمَا كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ ﴿۱۶۳﴾ وَاِذْ قَالَتْ اُمَّةٌ مِّنْهُمْ لِمَ تَعِظُوْنَ

په وجه دَ دوی دَ نافرمانئ | او هر کله چه ووئیل | بوے ډلے | له دوی نه | تاسو ولے نصیحت کوئ

ځکه چه هغوی نافرمانه خلق وو. او کوم وخت چه په هغوی کښے بوے ډلے ووئیل چه تاسو داسے خلقو ته

قَوْمَا ۙ اللّٰهُ مُهْلِكُهُمْ اَوْ مُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا شَدِيْدًا

دے قوم ته | چه الله | هلاکوونکے دے دَ دوی | یا | دوی ته عذاب ورکوونکے دے | عذاب | سخت

څهٔ له نصیحت کوئ چه الله تعالیٰ ئے هلاکوی یا ئے په سخته سزا اخته کوی

قَالُوْا مَعْذِرَةً اِلٰى رَبِّكُمْ وَلَعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ ﴿۱۶۴﴾

دوی ووئیل (چه) | عذر پیش کولو دَ پاره | په نزد دَ رب ستاسو | او دَ پاره دَ دے چه دوی | پرهیزګاری وکړی

هغوی ورته ووئیل چه (مونږ دا کار) ځکه کوو چه الله ته خپل عذر پیش کړو او شاید چه دوی منع شی.

فَلَمَّا نَسُوْا مَا ذُكِّرُوْا بِهٖٓ اَنْجَيْنَا الَّذِيْنَ

پس هر کله چه | دوی هیر کړل | هغه څهٔ | چه نصیحت شوے وو دوی ته دَ هغے | نو نجات ورکړو مونږ | هغو خلقو ته

نو هر کله چه هغوی هغه نصیحتونه هیر کړل، نو مونږ هغه کسان خو بچ کړل چه دَ بدئ نه

يَنْهَوْنَ عَنِ السُّوْٓءِ وَاَخَذْنَا الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا بِعَذَابٍۢ بَئِيْسٍۢ

چه منع به ئے کوله | له بد کار نه | او ونیول مونږ | هغه خلق چه | ظالمان وو | په عذاب | سخت سره

ئے خلق منع کول ، او نور ټول ظالمان مو په ناترسه عذاب کښے راونیول

بِمَا كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ ﴿۱۶۵﴾ فَلَمَّا عَتَوْا عَنْ مَّا نُهُوْا عَنْهُ

په دے وجه | چه دوی به نافرمانی کوله | پس هر کله چه | دوی سرکشی وکړه | دَ هغه خیرے نه | دَ کومے نه چه منع کړے شوی وو

ځکه چه هغوی بد عمله وو. بیا دَ کوم کار نه چه دوی منع کړے شوی وو کله چه به دَ کښے دوی

قُلْنَا لَهُمْ كُوْنُوْا قِرَدَةً خٰسِـِٕيْنَ ﴿۱۶۶﴾ وَاِذْ تَاَذَّنَ رَبُّكَ

دوی ته | دوی ته | چه شئ | بیزوګان | ذلیله | او هرکله چه | حکم وکړو | ستا رب

نو ویل مونږ دوی ته وویل چه ذلیله بیزوګان شئ ۔ او هغه وخت یاد کړه چه ستا رب دا اعلان ... نه تیر شول ۔ نو مونږ ورته

لَيَبْعَثَنَّ عَلَيْهِمْ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ مَنْ يَّسُوْمُهُمْ سُوْٓءَ الْعَذَابِ ؕ

چه خامخا به رالیږی | په دوی باندې | تر ورځې د قیامت پورې | هغه څوک | چه رسوی به دوی ته | سخت عذاب

وکړو چه تر قیامته به په دې بنی اسرائیلو باندې داسې خلق مسلط کړم چه د ذلت عذاب به ورکوی

اِنَّ رَبَّكَ لَسَرِيْعُ الْعِقَابِ ۚۖ وَاِنَّهٗ لَغَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۶۷﴾

بیشکه | ستا رب | زر عذاب ورکوونکے دې | او بیشکه دے | بخښونکے | مهربان دے ۔

بیشکه ستا رب په سزا ورکولو کښې ډیر تیز دے او بخښونکے مهربان دے

وَقَطَّعْنٰهُمْ فِى الْاَرْضِ اُمَمًا ۚ مِنْهُمُ الصّٰلِحُوْنَ وَمِنْهُمْ

او مونږ جدا جدا کړل دوی | په زمکه کښې | ډلې ډلې | ځنې له دوی نه | نیکان دی | او ځنې له دوی نه

او مونږ دوئ په دنیا کښې جدا جدا کړل او په قامونو کښې مو تقسیم کړل ، څوک پکښې نیکان وو او څوک پکښې

دُوْنَ ذٰلِكَ ۫ وَبَلَوْنٰهُمْ بِالْحَسَنٰتِ وَالسَّيِّاٰتِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ ﴿۱۶۸﴾

د دې نه علاوه (دی) | او مونږ ازمائیل دوی | په نعمتونو | او تکلیفونو | چه دوی | بیرته راوګرځي ۔

بل شان وو او مونږ دوی په ښیو او بدو (دواړه قسمه) حالتونو ازمائیل شاید چه دوئ (د نافرمانئ نه)

فَخَلَفَ مِنْۢ بَعْدِهِمْ خَلْفٌ وَّرِثُوا الْكِتٰبَ يَاْخُذُوْنَ عَرَضَ

بیا جانشین شول | پس له دوی نه | بد جانشین | چه وارثان شول | د کتاب | چه دوئ اخلی | مال

بیرته شی ۔ بیا د دغې نسلونو نه پس داسې ناخلفه ترې نه پاتې شول او د الله د کتاب وارثان شول چه د دنیا

هٰذَا الْاَدْنٰى وَيَقُوْلُوْنَ سَيُغْفَرُ لَنَا ۚ وَاِنْ يَّاْتِهِمْ عَرَضٌ

د دې ادنیٰ دنیا | او وائی | چه بخښنه به وکړې شي مونږ ته | او که چرې راشي دوی ته | مال

مال متاع پرې راغونډوی او دا وائی چه مونږ ته به ډیر زر معافي وشي ، او که هغسې مال ورله بیا په لاس

مِّثْلُهٗ يَاْخُذُوْهُ ؕ اَلَمْ يُؤْخَذْ عَلَيْهِمْ مِّيْثَاقُ الْكِتٰبِ

په شان د هغې | نو اخلی هغه | آیا نه ده وه اخستې شوې | له دوی نه | کلکه وعده | د کتاب

ورځی نو (بې پښتو سه ئې) اخلی ، آیا دوی نه په کتاب (تورات) کښې دا وعده نه وه اخستې شوې چه د

اَنْ لَّا يَقُوْلُوْا عَلَى اللّٰهِ اِلَّا الْحَقَّ وَدَرَسُوْا مَا فِيْهِ ؕ

چه نه به وائی دوی | په الله باندې | سوا د حقې خبرې نه | او | لوستلی دی دوی | څه چه | په دې کښې (وو)

الله په نوم به بغیر د حق نه نور څه نه وائی ؟ او دوی څه چه په دے کښې وو لوستلی هم دی

وَالدَّارُ الْاٰخِرَةُ خَيْرٌ لِّلَّذِيْنَ يَتَّقُوْنَ ؕ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿۱۶۹﴾

او کور | د آخرت | ډیر ښه دے | هغه کسانو له | چه ویریږی (د الله نه) | پس آیا تاسو عقل نه لرئ ۔

او د آخرت کور د هغو خلقو د پاره ډیر ښه دے کوم چه پرهیزګاره دی آیا تاسو په دې هم نه پوهیږئ

وَالَّذِيْنَ يُمَسِّكُوْنَ بِالْكِتٰبِ وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ ؕ اِنَّا

او هغه خلق | چه کلک نیسی | کتاب | او قائموی | مونځ | بیشکه مونږ

او هغه خلق چه کتاب ئے په مضبوطئ سره نیولے دے ، او مونځونه باقاعده کوی ، یقیناً مونږ

لَا نُضِيْعُ اَجْرَ الْمُصْلِحِيْنَ ﴿١٧٠﴾ وَاِذْ نَتَقْنَا الْجَبَلَ فَوْقَهُمْ

نه ضائع کوو | اجر | د اصلاح کوونکو | او هرکله چه مونږ اوچت کړو | غر | د دوی د پاسه

د داسے نیکانو خلقو اجر نه ضائع کوو - او یاد کړه هغه وخت چه مونږ غر د دوی د سرونو د

كَاَنَّهٗ ظُلَّةٌ وَّظَنُّوْٓا اَنَّهٗ وَاقِعٌۢ بِهِمْ ۚ خُذُوْا

داسے لکه چه دا | تنبو دے | او دوی خیال کړے وو | چه دا | راپریوتونکے دے | په دوی باندِ | ونیسئ تاسو

پاسه داسے اوچت کړو لکه چهترئ او هغوی ته یقین وشو چه اوس دا په هغوی باندِ پریوتونکے دے (او ورته مونږ ووئیل)

مَآ اٰتَيْنٰكُمْ بِقُوَّةٍ وَّاذْكُرُوْا مَا فِيْهِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ ﴿١٧١﴾ ع ٩ ٢١ ١١

څه چه مونږ درکړی دی تاسو ته | په مضبوطئ سره | او یاد کړئ | څه چه په دے کښے دی | چه تاسو | بچ پاتے شئ

چه) مونږ کوم کتاب درکړے دے هغه ټینګ ونیسئ او چه څه په کښے لیکلی دی هغه یاد ساتئ چه د ګناهونو نه بچ شئ

وَاِذْ اَخَذَ رَبُّكَ مِنْۢ بَنِيْٓ اٰدَمَ مِنْ ظُهُوْرِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ

او هرکله چه | واخستلو | ستا رب | له بنیادمو نه | د دوی له شاګانو نه | اولاد د دوی

او هغه وخت ورته یاد کړه چه ستا رب د بنیادمو د ملاګانو نه د هغوی اولاد راوویستلو

وَاَشْهَدَهُمْ عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ ۚ اَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ ؕ قَالُوْا بَلٰى ۛۚ شَهِدْنَا ۛۚ معانقة ٧

او ګواهی ئے واخستله له دوی نه | د دوی په نفسونو باندِ | آیا نه یم زه | ستاسو رب | دوی ووئیل | هو! یې نه | مونږ ګواهی ورکوو

او هغوی ئے په خپلو ځانو ګواهان کړل (او تپوس ئے وکړو چه) آیا زه ستاسو رب نه یم، هغوی ووئیل ولے نه! مونږ په دے

اَنْ تَقُوْلُوْا يَوْمَ الْقِيٰمَةِ اِنَّا كُنَّا عَنْ هٰذَا غٰفِلِيْنَ ﴿١٧٢﴾ اَوْ تَقُوْلُوْٓا

چه و به وایئ تاسو | په ورځ د قیامت | چه بیشکه مونږ وو | د دے نه | بے خبره | یا و به وایئ دا چه

ګواه یو، دا ځکه چه تاسو د قیامت په ورځ دا ونه وئیلے شئ چه مونږ د دے نه خبر نه وو - یا دا ونه وایئ

اِنَّمَآ اَشْرَكَ اٰبَآؤُنَا مِنْ قَبْلُ وَكُنَّا ذُرِّيَّةً مِّنْۢ بَعْدِهِمْ ۚ

بیشکه | شرک کړے وو | پلارانو زمونږ | له دے نه وړاندِ | او مونږ وو | (د دوی) اولاد | وروستو له دوی نه

چه شرک خو وړاندِ زمونږ پلار نیکه شروع کړے وو او مونږ د هغوی په نسل کښے وروستو پیدا شوی وو

اَفَتُهْلِكُنَا بِمَا فَعَلَ الْمُبْطِلُوْنَ ﴿١٧٣﴾ وَكَذٰلِكَ نُفَصِّلُ

نو آیا ته هلاکوے مونږه | په دے وجه | چه کړے دے | ګمراهانو | | او دغه شان | مونږ بیانوو

نو آیا ته مونږ د هغے کار د په وجه هلاکوے چه (پخوانو) غلط کار خلقو کړی وو او دغه شان مونږ خپل آیتونه

الْاٰيٰتِ وَلَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ ﴿١٧٤﴾ وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَاَ الَّذِيْٓ

آیتونه | او د پاره د دے چه دوی | بیرته راوګرځی | او واوروه | دوی ته | حال | د هغه چا

په تفصیل سره بیانوو شاید چه دوی (حق طرف ته) راوګرځی - او اے پیغمبره! دے خلقو ته د هغه چا قصه ولوله

اٰتَیْنٰهُ اٰیٰتِنَا فَانْسَلَخَ مِنْهَا فَاَتْبَعَهُ الشَّیْطٰنُ فَكَانَ

کوم ته چه مونږ ورکړی ؤ | خپل ایتونه | بیا دے ووتلو | د دے نه | پس ولګید ده پسے | شیطان | او شو دے

کوم ته چه مونږ ورکړی ؤ خپل ایتونه ورکړل نو هغه' ترے نه ځان رابښکلو نو شیطان ورپسے ولګیدو ، نو په ګمراهانو

مِنَ الْغٰوِیْنَ ﴿١٧٥﴾ وَلَوْ شِئْنَا لَرَفَعْنٰهُ بِهَا وَلٰكِنَّهٗۤ اَخْلَدَ

له ګمراهانو نه | اوکه چرے | مونږ غوښتلے | نو اوچت کړے به وو مونږ دے | په دے آیتونو | اولیکن دے | مائل شو

کښے شامل شو۔ اوکه مونږ غوښتلے نو هغه' مرتبه به مو په دے آیتونو اوچته کړے وه ، لیکن هغه خو دنیا

اِلَى الْاَرْضِ وَاتَّبَعَ هَوٰىهُ ۚ فَمَثَلُهٗ كَمَثَلِ الْكَلْبِ ۚ اِنْ

د مځکے طرف ته | او پیروی ئے وکړه | د خپل خواهش | نو د ده مثال | په شان د مثال د سپی دے | که چرے

طرف ته مائله شو او د خپل نفسانی خواهشاتو تابعداری ئے وکړه ، نو د ده مثال د سپی په شان دے که ته

تَحْمِلْ عَلَیْهِ یَلْهَثْ اَوْ تَتْرُكْهُ یَلْهَثْ ؕ ذٰلِكَ مَثَلُ الْقَوْمِ

ته حمله وکړے په ده | نو هم ژبه راوباسی | یا دے پریږدے | نو هم ژبه روباسی | هم دا | مثال دے د هغو خلقو

هغه وزغلوے نو هم ژبه راوباسی اوکه هغه پریږدے نو هم ژبه راوباسی ، هم دا مثال د هغو خلقو دے

الَّذِیْنَ كَذَّبُوْا بِاٰیٰتِنَا ۚ فَاقْصُصِ الْقَصَصَ لَعَلَّهُمْ یَتَفَكَّرُوْنَ ﴿١٧٦﴾

کوم چه | دروغ وګڼړل | زمونږ آیتونه | پس بیان کړه ته | هم دا حالات | چه دوی | غور وکړی

چه زمونږ آیتونه دروغ ګڼړی ، ته دوئ ته دا قصه اوروه شاید چه دوی غور او فکر وکړی

سَآءَ مَثَلَاۨ الْقَوْمُ الَّذِیْنَ كَذَّبُوْا بِاٰیٰتِنَا وَاَنْفُسَهُمْ

ډیر بد دے | مثال | د هغه قوم | کوم چه | دروغ وګڼړل | زمونږ آیتونه | او په خپلو ځانونو

د دے خلقو دا مثال ډیر خراب دے کوم چه زمونږ حکمونه دروغ وګڼړل او په خپلو ځانونو

كَانُوْا یَظْلِمُوْنَ ﴿١٧٧﴾ مَنْ یَّهْدِ اللّٰهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِیْ ۚ وَمَنْ

دوی ظلم کولو | چا ته چه هدایت وکړی الله | نو هم هغه دے | په سمه لار یا نِ تلونکے | او څوک چه

بانِ ئے ظلم کولو ۔ چا ته چه الله هدایت وکړی نو بس هغه سمه لار بیا مومی ، او څوک چه

یُّضْلِلْ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿١٧٨﴾ وَلَقَدْ ذَرَاْنَا لِجَهَنَّمَ

ګمراه کړی | پس هم هغه دی | نقصان موندونکی | او بیشکه | مونږ پیدا کړی دی | د دوزخ د پاره

د هدایت نه محروم کړی نو هغوی تاوانیان پاتے شی۔ او دا حقیقت دے چه مونږ ډیر پیریان

كَثِیْرًا مِّنَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ ۖ لَهُمْ قُلُوْبٌ لَّا یَفْقَهُوْنَ بِهَا ؗ وَلَهُمْ

ډیر | پیریان | او بنیادم | د دوی زړونه دی | چه نه پوهیږی په هغے سره | او د دوی

و بنیادم دوزخ له پیدا کړی دی ۔ د هغوی زړونه شته خو د پوهے کوشش نه کوی او د هغوی

اَعْیُنٌ لَّا یُبْصِرُوْنَ بِهَا ؗ وَلَهُمْ اٰذَانٌ لَّا یَسْمَعُوْنَ بِهَا ؕ اُولٰٓئِكَ

سترګے دی | چه دوی نه وینی | په هغے | او د دوی | غوږونه دی | چه دوی نه اوری په هغے | دا خلق

سترګے شته خو کتل پرے نه کوی ، او د هغوی غوږونه شته خو اوریدل پرے نه کوی ، هغوی

كَالْاَنْعَامِ بَلْ هُمْ اَضَلُّ ؕ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْغٰفِلُوْنَ ﴿۱۷۹﴾ وَلِلّٰهِ
په شان دَ څاروو دی | بلکه دَ دوی نه هم زیات ګمراه | هم دا خلق دی | (دین نه) ناخبره | او الله دَ پاره دی
په شان دی بلکه دَ هغوی نه هم زیات ګمراه دی، او هم دا خلق (دَ حق نه) بے خبره پاتے دی او دَ الله
دَ څاروو په
الْاَسْمَآءُ الْحُسْنٰى فَادْعُوْهُ بِهَا ۪ وَذَرُوا الَّذِيْنَ يُلْحِدُوْنَ
نومونه | ښه | پس بللئ هغه | په دے نامونو | او پریږدئ | هغه خلق | چه غلط لار اختیاروی
ټول نومونه ښه ښه دی، نو په هغه نومونو ئے یادوئ او هغه خلق پریږدئ چه دَ الله په نومونو کښے
فِيْٓ اَسْمَآئِهٖ ؕ سَيُجْزَوْنَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۸۰﴾ وَمِمَّنْ
دَ هغهٔ په نامو کښے | ډیر زر به سزا ورکړے شی دوئ ته | دَ هغه څهٔ چه دوی به کول | او له هغو خلقو نه
کږ لیچونه لټوی ، دوی ته به دَ خپلو عملونو بدله ډیر زر ورکولے شی ۔ او زمونږ په مخلوق کښے
خَلَقْنَآ اُمَّةٌ يَّهْدُوْنَ بِالْحَقِّ وَبِهٖ يَعْدِلُوْنَ ﴿۱۸۱﴾
چه مونږ پیدا کړی دی | یوه ډله ده | چه لار ښائی | دَ حق طرف ته | او هم دَ دے مطابق | دوی انصاف کوی.
یوه ډله داسے هم شته چه دَ حق مطابق (خلقو ته) هدایت کوی او دَ حق مطابق انصاف کوی
وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا سَنَسْتَدْرِجُهُمْ مِّنْ حَيْثُ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۸۲﴾
او هغه خلق چه | دروغ ګڼړی | زمونږ آیتونه | زر دے چه مونږ به درجه په درجه بیسو دوی | داسے چه دوی ته به خبر هم نهٔ وی
او چا چه زمونږ حکمونه دروغ ګڼړلی دی مونږ به ډیر زر هغوی درجه په درجه داسے په ګرفت کښے واخلو چه هغوی ته
وَاُمْلِيْ لَهُمْ ؕ اِنَّ كَيْدِيْ مَتِيْنٌ ﴿۱۸۳﴾ اَوَلَمْ يَتَفَكَّرُوْا
او زهٔ مهلت ورکوم | دوی ته | بیشکه | زما تدبیر | ډیر زبردست دے | آیا دوی غور ونهٔ کړو
به معلوم هم نهٔ شی ۔ او زهٔ هغوی ته مهلت ورکوم ، زما تدبیر ډیر مضبوط دے ۔ دوی چرے دے ته فکر نهٔ دے کړے
مَا بِصَاحِبِهِمْ مِّنْ جِنَّةٍ ؕ اِنْ هُوَ اِلَّا نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ﴿۱۸۴﴾
چه نشته دے دَ دوی په ملګری (محمدؐ) | څهٔ لیونتوب | نهٔ دے دے مګر | ویرونکے (دے) | ښکاره .
چه دَ دوی په دے ملګری (پیغمبر) باندے دَ پیریانو هیڅ اثر نشته ، هغه خو ښکاره ویرونکے دے .
اَوَلَمْ يَنْظُرُوْا فِيْ مَلَكُوْتِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا خَلَقَ اللّٰهُ
او آیا دوی غور ونهٔ کړو | په حکومت کښے | دَ آسمانونو | او دَ زمکے | او څهٔ چه پیدا کړل | الله
آیا دوی چرے دَ آسمانونو او زمکے انتظام ته نهٔ دی کتلی آیا دوی بل هیڅ څیز ته چه الله
مِنْ شَيْءٍ ۙ وَّاَنْ عَسٰٓى اَنْ يَّكُوْنَ قَدِ اقْتَرَبَ اَجَلُهُمْ ۚ
له هر څیز نه | او دا چه شاید | نزدے شوی وی | نیټه دَ دوی
پیدا کړی دی نهٔ دی کتلی او دے ته ئے هم فکر نهٔ دے کړے چه شاید دَ دوی نیټه را نزدے شوی وی
فَبِاَيِّ حَدِيْثٍۭ بَعْدَهٗ يُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۸۵﴾ مَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ ؕ
پس په کومه خبره | پس له دے نه | به دوی ایمان راوړی | هغه څوک چه ګمراه ئے کړی الله | نشته څوک لار ښودونکے هغه ته
(وس به دَ دے (قرآن) نه پس دوی په بله کومه خبره ایمان راوړی؟ څوک چه الله دَ هدایت نه محروم کړی هغهٔ ته هیڅوک هدایت

وَيَذَرُهُمْ فِي طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُونَ ﴿١٨٦﴾ يَسْـَٔلُونَكَ عَنِ السَّاعَةِ

اوهغه پريږدي دوی | دَ دوی په سرکشئ کښے | سرګردانه | تپوس کوی دوی له تانه | دَ قيامت په حقله

نهٔ شي کولے او داسے خلق الله په خپله سرکشئ کښے سرګردانه پريږدی. دوی تانه دَ قيامت په حقله تپوس کوی

اَيَّانَ مُرْسٰهَا ؕ قُلْ اِنَّمَا عِلْمُهَا عِنْدَ رَبِّيْ ۚ لَا يُجَلِّيْهَا

چه کله به وی | دَ دے قائميدل | ووايه | يقيناً | علم دَ دے | زمارب سره دے | نهٔ به ښکاره کوی دا

چه کله به راځي ؟ ورته ووايه چه دَ دے علم خو زمارب سره دے، هم هغه به ئے په

لِوَقْتِهَاۤ اِلَّا هُوَ ؕ ثَقُلَتْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ لَا تَاْتِيْكُمْ

دَ دے په وخت باندے | مګر هم هغه | ډير درنه حادثه به وی | په آسمانونو کښے | او زمکه (کښے) | نهٔ به راځي تاسو ته

خپل وخت ښکاره کوی ، دا به دَ آسمانونو او دَ زمکے ډير سخته حادثه وی، په تاسو به بالکل

اِلَّا بَغْتَةً ؕ يَسْـَٔلُوْنَكَ كَاَنَّكَ حَفِيٌّ عَنْهَا ؕ قُلْ اِنَّمَا عِلْمُهَا

مګر ناګهانه | دوی له تانه تپوس کوی | لکه چه تهٔ | په لټون کښے لګيا يئے دَ هغے | ووايه | بيشکه | علم دَ دے

ناګهانه راځي ، دوی تانه داسے پوښتنے کوی لکه چه تا دَ هغے ټول تحقيقات سرته رسولی وی ، ورته ووايه چه دَ هغے علم

عِنْدَ اللّٰهِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿١٨٧﴾ قُلْ

دَ الله سره دے | ليکن | اکثر | خلق | نهٔ پوهيږی . | ووايه

صرف الله سره دے ، خو اکثر خلق په دے نهٔ پوهيږی . ورته ووايه

لَاۤ اَمْلِكُ لِنَفْسِيْ نَفْعًا وَّلَا ضَرًّا اِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُ ؕ

زهٔ نهٔ يم مالک | دَ خپل ځان دَ پاره | دَ نفع | او نهٔ دَ نقصان | مګر څهٔ چه | غواړی الله

زما خو دَ خپل ذات دَ نفع نقصان هم هيڅ اختيار نشته ، مګر څومره چه الله تعالیٰ ته منظور وی

وَلَوْ كُنْتُ اَعْلَمُ الْغَيْبَ لَاسْتَكْثَرْتُ مِنَ الْخَيْرِ ۚ

او که چرے | زهٔ پوهيدلے | په علم غيب باندے | نو ما به ډير راټول کړے وو | له خير نه

او که ما ته دَ غيبو خبرے معلومے وے نو ځان له به مې ډيرے ښيګړے راټولے کړے وے

وَمَا مَسَّنِيَ السُّوْٓءُ ۚ اِنْ اَنَا اِلَّا نَذِيْرٌ وَّبَشِيْرٌ

او نه به ؤو رسيدلے ما ته | څهٔ تکليف | نهٔ يم زهٔ | مګر | ويروونکے | او زيرے ورکوونکے

او هيڅ نقصان به را ته نهٔ رسيدلو . زهٔ خو بس ويروونکے او زيرے ورکوونکے يم هغه

لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴿١٨٨﴾ هُوَ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ وَّجَعَلَ

هغو خلقو ته | چه ايمان لری | هم هغه دے کوم چه | پيدا کړی تاسو | يو نفس (آدم) نه | او پيدا ئے کړه

خلقو ته چه زما خبره مني . الله تعالیٰ هغه ذات دے چه تاسو ئے دَ يو نفس نه پيدا کړی او هم دَ

مِنْهَا زَوْجَهَا لِيَسْكُنَ اِلَيْهَا ۚ فَلَمَّا تَغَشّٰىهَا

دَ دهٔ نه | دَ دهٔ ښځه | چه دے آرام بيا موهی | دَ دے سره | پس هر کله چه | جماع وکړه (سړی) دَ دهٔ

هغهٔ نه ئے ورله جوړه پيدا کړه چه سکون ورسره بيا موهی نو کوم وخت چه نر دَ ښځے سره بوځای

حَمَلَتْ حَمْلًا خَفِيفًا فَمَرَّتْ بِهٖ ۚ فَلَمَّآ اَثْقَلَتْ

(نو) هغه حامله شوه | په حمل سپک | پس تلله راتلله | په هغې سره | بیا هر کله چه | هغه درنه شوه

شي نو دَ هغې معمولي شان حمل شي ، چه هغه ورسره ګرځي راګرځي ، بیا چه هر کله حمل دروند شي نو

دَّعَوَا اللّٰهَ رَبَّهُمَا لَئِنْ اٰتَيْتَنَا صَالِحًا لَّنَكُوْنَنَّ

نو دُعا وکړه دواړو | دَ الله ته | چه دَ دوی رب دے | که چرے تا راکړو مونږ ته | (خوئے) تندرست | نو خامخا به شو مونږ

دواړه په شریکه خپل رب ته دُعا وکړي ، که مونږ له تا نیک اولاد را کړو نو مونږ به ستا

مِنَ الشّٰكِرِيْنَ ﴿١٨٩﴾ فَلَمَّآ اٰتٰهُمَا صَالِحًا جَعَلَا لَهٗ شُرَكَآءَ

له شکرګزارو نه | بیا هر کله چه | هغه ورکړو دوی ته | (خوئے) روغ | نو جوړکړل دوی | هغهٔ له شریکان

د بیر شکرګزار یُو ۔ نو هر کله چه الله ورله روغ رمټ خوئے ورکړو نو دواړو خدائے له شریکان جوړکړل

فِيْمَآ اٰتٰهُمَا ۚ فَتَعٰلَى اللّٰهُ عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ﴿١٩٠﴾ اَيُشْرِكُوْنَ

په هغه څهٔ کښې | چه ورته کړل دوی ته | پس ډیر اوچت دے | الله | له هغه څهٔ نه | چه دوی (دَ هغهٔ) شریک جوړوي | آیا دوی شریک جوړوي

په هغه څیز کښې چه خدائے ورکړے وو ، او الله ډیر اوچت دے دَ هغه څیزونو نه چه دوی ورله شریکان جوړوي ۔ آیا دوی ورله

مَا لَا يَخْلُقُ شَيْـًٔا وَّهُمْ يُخْلَقُوْنَ ﴿١٩١﴾ ۖ وَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ

هغهٔ څیز | چه نهٔ پیدا کوي | هیڅ څیز | او دوی (پخپله) | پیدا کیدے شي | او نهٔ (هغوی) دوی طاقت لري

هغه څیزونه شریکان کوي چه هیڅ هم نهٔ شي پیدا کولے بلکه پخپله پیدا کیدے شي او هغوی دَ دوی دَ مدد

لَهُمْ نَصْرًا وَّلَآ اَنْفُسَهُمْ يَنْصُرُوْنَ ﴿١٩٢﴾ وَاِنْ تَدْعُوْهُمْ

دَ هغوی | دَ مدد | او نهٔ | دَ خپل ځان | مدد کولے شي | او که چرے ته راوبلے دوی

طاقت هم نهٔ لري او نهٔ دَ خپل ځان مدد کولے شي ۔ او (اے مشرکانو!) او که چرے تاسو

اِلَى الْهُدٰى لَا يَتَّبِعُوْكُمْ ۭ سَوَآءٌ عَلَيْكُمْ اَدَعَوْتُمُوْهُمْ

سمے لارے طرف ته | نو پیروي نهٔ کوي ستاسو | برابره ده | په تاسو | دا چه تاسو وُبلئ دوئ

ئې سمے لارے طرف ته راوُبلئ نو ستاسو په خبرے پسے به نهٔ ځي ۔ تاسو دَ پاره برابره خبره ده که تاسو دوی وبلئ

اَمْ اَنْتُمْ صَامِتُوْنَ ﴿١٩٣﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ

یا | تاسو | چپ پاتے کیږئ | بیشکه | کوم چه | تاسو بلئ | سوا دَ الله نه

یا چپ پاتے شئ (وئے نهٔ بلئ) ۔ هغه خلق کوم چه تاسو دَ الله تعالیٰ نه سوا بلئ هغه

عِبَادٌ اَمْثَالُكُمْ فَادْعُوْهُمْ فَلْيَسْتَجِيْبُوْا لَكُمْ اِنْ كُنْتُمْ

هغه بندګان دي | ستاسو په شان | پس وبلئ دوی | پس پکار ده چه جواب درکړي دوی تاسو ته | که چرے یئ تاسو

ستاسو په شان بندګان دي ، پس تاسو دوی بلئ نو پکار دي چه دوی ستاسو خبره قبوله کړي

صٰدِقِيْنَ ﴿١٩٤﴾ اَلَهُمْ اَرْجُلٌ يَّمْشُوْنَ بِهَآ ۡ اَمْ لَهُمْ اَيْدٍ

رښتوني | آیا دَ دوی | ښپې دي | چه روان وي | په هغې | یا | دَ دوی | لاسونه دي

که چرے تاسو رښتوني یئ ۔ آیا دَ دوی ښپے شته چه تګ پرے وُکړي یا دَ دوی لاسونه شته چه

يَّبْطِشُوْنَ بِهَآ ز اَمْ لَهُمْ اَعْيُنٌ يُّبْصِرُوْنَ بِهَآ ز

چه نيول کوی | په هغے | يا دَدوی | سترگے دی | چه وينی | په هغے

نيول پرے وُکړی ، يا دَ هغوی سترگے شته چه کتل پرے وُکړی

اَمْ لَهُمْ اٰذَانٌ يَّسْمَعُوْنَ بِهَا ط قُلِ ادْعُوْا شُرَكَآءَكُمْ

يا دَدوی | غوږونه دی | چه آوُری | په هغے | وُوايه | راوُبلئ تاسو | خپل معبودان

يا دَ هغوی غوږونه شته چه آوُريدل پرے وکړی . (اے پيغمبره!) ووايه چه خپل شريکان راوُبلئ

ثُمَّ كِيْدُوْنِ فَلَا تُنْظِرُوْنِ ۝١٩٥ اِنَّ وَلِيِّ َۧ اللّٰهُ الَّذِيْ نَزَّلَ الْكِتٰبَ ز صلے

بيا | تدبير وکړئ زما خلاف | او ما ته مهلت مه راکوئ | بيشکه زما کارساز الله دے | کوم چه | نازل کړو داکتاب (قرآن)

بيا زما دَ نقصان تدبيرونه وکړئ او ما ته مهلت هم مه راکوئ . زما مددگار خو هغه الله دے چه داکتاب ئے را نازل کړے دے

وَهُوَ يَتَوَلَّى الصّٰلِحِيْنَ ۝١٩٦ وَالَّذِيْنَ تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖ

او هغه | کارسازی کوی | دَ نيکانو | او کوم چه | تاسو بلئ | دَ هغهٔ نه سوا

او هم هغه دَ ټولو نيکانو خلقو کارسازی کوی . او تاسو چه دَ الله تعالیٰ نه سوا نور خلق را بلئ

لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ نَصْرَكُمْ وَلَآ اَنْفُسَهُمْ يَنْصُرُوْنَ ۝١٩٧ وَ

دوی نهٔ شی کولے | مدد ستاسو | او نهٔ دَ خپلو ځانونو | مدد کولے شی | او

دوی نهٔ خو تاسو ته دَ مدد رسولو طاقت لری او نهٔ دَ خپل ځان مدد کولے شی . او

اِنْ تَدْعُوْهُمْ اِلَى الْهُدٰى لَا يَسْمَعُوْا ط وَتَرٰىهُمْ يَنْظُرُوْنَ

کهٔ چرے تاسو راوبلئ دوی | سمے لارے طرف ته | نو دوی نهٔ اوُری | او ته وينے دوی | چه دوی گوری

کهٔ چرے ته دوی هدايت طرف ته راوبلے نو دوی نهٔ اوُری او دا سے ښکاری چه تا ته (په غور غور)

اِلَيْكَ وَهُمْ لَا يُبْصِرُوْنَ ۝١٩٨ خُذِ الْعَفْوَ وَاْمُرْ بِالْعُرْفِ

تا ته | او حال دا دے چه دوی | هيڅ نهٔ وينی | معافی وُکړه | او حکم ورکړه | دَ نيک کار

گوری خو هغوی سره دَ دے نهٔ وينی . (اے پيغمبره!) نرمی اختيار کړه او دَ نيکئ حکم کوه

وَ اَعْرِضْ عَنِ الْجٰهِلِيْنَ ۝١٩٩ وَاِمَّا يَنْزَغَنَّكَ مِنَ الشَّيْطٰنِ

او | مخ واړوه | دَ جاهلانو نه | او کهٔ چرے | را منع کړی تا | له طرفه دَ شيطان نه

او دَ جاهلانو پرواه مهٔ کوه . او کهٔ چرے دَ شيطان دَ طرف نه ستا په زړهٔ کښے څهٔ

نَزْغٌ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ ط اِنَّهٗ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ۝٢٠٠

وسوسه | نو پناه غواړه | دَ الله | بيشکه هغه | آوُريدونکے | پوهه دے

وسوسه پيدا شی نو په الله تعالیٰ سره پناه غواړه يقيناً هغه ښهٔ آوُريدونکے او په هر څهٔ پوهه دے

اِنَّ الَّذِيْنَ اتَّقَوْا اِذَا مَسَّهُمْ طٰٓئِفٌ مِّنَ الشَّيْطٰنِ

بيشکه | هغه خلق | چه ويريږی (دَ الله نه) | هر کله چه ورسيږی دوی ته | څهٔ وسوسه | له (طرفه دَ) شيطان نه

يقيناً هغه خلق کوم چه پرهيزگار دی کله چه دَ شيطان دَ طرف نه دوی ته څهٔ وسوسه پيدا شی

تَذَكَّرُوْا فَاِذَاهُمْ مُّبْصِرُوْنَ ﴿٢٠١﴾ وَاِخْوَانُهُمْ يَمُدُّوْنَهُمْ

نو دوی یادوی | بیا هم هغه وخت دوی | (هر څه) ګوری | او د دوی ورونړه (شیطانان) | دوی راکاږی

نو زر خدائے رایاد کړی او فوراً ئے سترګے وغړیږی، او د دے خلقو ورونړه (شیطانان) دوی د ګمراهئ

فِى الْغَىِّ ثُمَّ لَا يُقْصِرُوْنَ ﴿٢٠٢﴾ وَاِذَا لَمْ تَاْتِهِمْ بِاٰيَةٍ

په ګمراهئ کښے | بیا | دوی هیڅ کمے نه کوی | او کله چه | راننه وړے ته دوی ته | څه معجزه

طرف ته راکاږی او هیڅ کمے پکښے نه پریږدی۔ او کله ته دوی ته معجزه نه پیش کوے نو

قَالُوْا لَوْلَا اجْتَبَيْتَهَا ؕ قُلْ اِنَّمَآ اَتَّبِعُ مَا يُوْحٰٓى

نو وائی | ولے دِ د ځانه جوړه نه کړه هغه | ته ووایه | بیشکه چه پیروی کوم زه | د هغه څه چه وحی کوے

دوی وائی چه ولے دِ دغه معجزه د ځان نه پیش نه کړه۔ ته ورته ووایه چه زه خو په هغے لار روان یم چه

اِلَىَّ مِنْ رَّبِّىْ ؕ هٰذَا بَصَآئِرُ مِنْ رَّبِّكُمْ وَهُدًى

ما ته | زما د رب له طرف نه | دا دلیلونه دی | ستا د رب له طرف نه | او هدایت

خپل رب را ته وحی کړی دی۔ دا ټول ستاسو د رب د غاړے نه دلیلونه دی او هدایت

وَّ رَحْمَةٌ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴿٢٠٣﴾ وَاِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ

او | رحمت | هغو خلقو د پاره | چه ایمان لری | او کله چه | لوستلے شی | قرآن

او رحمت دے هغو خلقو له چه مؤمنان دی۔ او کوم وخت چه قرآن لوستلے شی

فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ وَاَنْصِتُوْا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ﴿٢٠٤﴾ وَاذْكُرْ

نو په توجه سره آوری | هغه | او چپ وسئ | د پاره د دے چه تاسو باندِ | رحم وکړے شی | او یاد دی

نو په توجه سره ئے آورئ او چپ وسئ چه رحم درباندِ وکړے شی۔ او (اے پیغمبره!)

رَّبَّكَ فِىْ نَفْسِكَ تَضَرُّعًا وَّخِيْفَةً وَّدُوْنَ

خپل رب | په خپل زړه کښے | په عاجزئ | او په ویره | او بغیر

ته په خپل زړه کښے په عاجزئ او په ویرے سره او پټ پټ بغیر د آواز

الْجَهْرِ مِنَ الْقَوْلِ بِالْغُدُوِّ وَالْاٰصَالِ وَلَا تَكُنْ

د اوچت | آواز نه | سحر | او مابنام | او مه کیږه ته

اوچتولو نه خپل رب سحر او مابنام یادوه، او په غافلانو کښے

مِّنَ الْغٰفِلِيْنَ ﴿٢٠٥﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ عِنْدَ رَبِّكَ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ

له غافلانو نه | بیشکه | کوم (فرښتے) چه | ستا د رب سره دی | هغوی تکبر نه کوی

ځان مه شاملوه۔ بیشکه کوم فرښتے چه ستا رب سره (مقربے) دی هغوی د خدائے

عَنْ عِبَادَتِهٖ وَ يُسَبِّحُوْنَهٗ وَلَهٗ يَسْجُدُوْنَ ﴿٢٠٦﴾ السجدة

له عبادت د دهٔ نه | او | د دهٔ پاکی بیانوی | او خاص دهٔ ته | سجده کوی

د بندګئ ځانونه لوئے نه ګڼړی او د هغهٔ پاکی بیانوی او هم هغهٔ ته سجدے کوی

ع ١٨ ١٤

سُورَةُ الْاَنْفَالِ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | خَمْسٌ وَّسَبْعُوْنَ اٰيَةً وَّ عَشَرُ رُكُوْعَاتٍ
سورۃ انفال مدنی دے او پہ دے کښې | (شروع) د الله په نوم چه لوئے مهربان ډیر رحم کوونکے دے | پنځه اویا آیتونه او لس رکوع کانې دی
شروع کوم د الله په نوم چه ډیر مهربان د ډیر زیات رحم خاوند دے

يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْاَنْفَالِ ؕ قُلِ الْاَنْفَالُ لِلّٰهِ وَ الرَّسُوْلِ ۚ
ددی پښتوس کوی له تانه | د مال د غنیمت په حقله | ووایه | د غنیمت مال | د الله | او | د رسول دے
(اے پیغمبره!) خلق تانه د غنیمت د مال په حقله تپوس کوی ووایه چه د غنیمت مال خو د الله او د هغهٔ د رسول دے

فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَ اَصْلِحُوْا ذَاتَ بَيْنِكُمْ ۪ وَ اَطِيْعُوا اللّٰهَ
پس ویریږئ | د الله نه | او په صلح سره وُسیږئ | په خپل مینځ کښې | او | حکم وُمنئ | د الله
نو تاسو د الله نه وویریږئ او یو بل سره خپل تعلقات سم ساتئ او د الله او د هغهٔ د رسول

وَ رَسُوْلَهٗۤ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ① اِنَّمَا الْمُؤْمِنُوْنَ الَّذِيْنَ
او د هغهٔ د رسول | کهٔ چرے یئ تاسو | مؤمنان | بیشکه چه | مؤمنان | هغه خلق دی
حکم منئ کهٔ تاسو مؤمنان یئ. په حقیقت کښې ایماندار بس هم هغه دی

اِذَا ذُكِرَ اللّٰهُ وَجِلَتْ قُلُوْبُهُمْ وَ اِذَا تُلِيَتْ عَلَيْهِمْ
چه هر کله | ذکر وُشی د الله | نو ویریږی | د دوی زړونه | او هر کله چه | لوستلے شی | په دوی بانې
چه د الله ذکر واورې نو زړونه ئے وریږی، او چه د الله آیتونه ورته ولوستلے

اٰيٰتُهٗ زَادَتْهُمْ اِيْمَانًا وَّ عَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ ②
د هغهٔ آیتونه | نو تور زیاتی کړی دوی | په ایمان کښې | او | په خپل رب بانې | دوی توکل کوی
شی نو د دوی ایمانونه نور هم مضبوط شی او په خپل رب کامله تکیه لری.

الَّذِيْنَ يُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَ مِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ ③ ؕ
کوم خلق چه | قائموی | مونځ | او | له هغه څهٔ نه چه مونږ ورکړی دی دوته | خرڅ کوی.
داسے خلق چه د مونځونو پابندی ساتی او مونږ چه وِئی کوم رزق ورکړے دے د هغے نه د الله په لار کښې خرڅ

اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُؤْمِنُوْنَ حَقًّا ؕ لَهُمْ دَرَجٰتٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ
هم دا خلق دی | مؤمنان | رښتونی | دوی د پاره دی | درجے | د دوی د رب سره
کوی د غه کسان په رښتیا ایماندار دی. دوی د پاره د خپل رب سره اُوچتے مرتبے دی

وَ مَغْفِرَةٌ وَّ رِزْقٌ كَرِيْمٌ ④ ۚ كَمَاۤ اَخْرَجَكَ رَبُّكَ
او بخښنه ده | او روزی ده | د عزت | لکه څنګه چه | را وُویستلے تهٔ | ستا رب
او بخښنه ده او د عزت روزی ده. (اے پیغمبره! غور وکړه) په کوم انداز کښې ستا رب ته په

مِنْۢ بَيْتِكَ بِالْحَقِّ ۪ وَ اِنَّ فَرِيْقًا مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ
ستا د کور نه | په حق سره | او | بیشکه | یوے ډلے | د مؤمنانو
حق وصداقت سره د کور نه (جهاد د پاره) وُویستلے حال دا دے چه د مسلمانانو یوے ډلے ته

لَكٰرِهُوْنَ ۝٥ يُجَادِلُوْنَكَ فِى الْحَقِّ بَعْدَ مَا تَبَيَّنَ

(دا خبره) نه خوښوله | دوی تاسره جګړه کوله | په سمه خبره کښے | پس له دے نه چه | هغه ښکاره شوه

دا کراته ښکاریده دے خلقو تاسره په حقه خبره کښے د دِے د ښکاره کیدو نه پس هم جګړه کوله

كَاَنَّمَا يُسَاقُوْنَ اِلَى الْمَوْتِ وَهُمْ يَنْظُرُوْنَ ۝٦ وَاِذْ يَعِدُكُمُ

لکه چه | دوی شړلے شي | مرګ طرف ته | او دوی | ګوري | او هر کله چه | وعده کوله تاسره

لکه چه چا مرګ غاړے ته راښکل او دوی ورته (په سترګو) کتل ـ او کله چه ( د بدر په غزا کښے) الله

اللّٰهُ اِحْدَى الطَّآئِفَتَيْنِ اَنَّهَا لَكُمْ وَتَوَدُّوْنَ

الله | د یو | په دوؤ ټولو کښے | چه هغه به | ستاسو وی | او تاسو غوښتله

په دوؤ ټولو کښے د یو ټولی تاسو سره وعده کړے وه چه هغه به ستاسو په قابو کښے راشی او تاسو دا خبره

اَنَّ غَيْرَ ذَاتِ الشَّوْكَةِ تَكُوْنُ لَكُمْ وَيُرِيْدُ اللّٰهُ

چه | کوم (ټولے) بے وسلے دے | هغه دِی | تاسو د پاره | او غوښتل | الله

خوښوله چه بے وسلے ټولے دِ ستاسو په مقابله کښے راشی، او الله تعالیٰ ته دا منظوره وه

اَنْ يُّحِقَّ الْحَقَّ بِكَلِمٰتِهٖ وَيَقْطَعَ دَابِرَ الْكٰفِرِيْنَ ۝٧

چه ثابت کړی | حق | په خپل حکم سره | او پریکړی | جرړه | د کافرانو

چه په خپل حکم سره حق (عملاً) ثابت کړی او د کافرانو جرړے غوڅے کړی

لِيُحِقَّ الْحَقَّ وَيُبْطِلَ الْبَاطِلَ وَلَوْ كَرِهَ الْمُجْرِمُوْنَ ۝٨

چه ثابت کړی | رښتیا | او ورک کړی | دروغ | اګر چه | نا خوښه کړی | (دا) مجرمان خلق

چه حق حق ښکاره کړی او باطل باطل څرګند کړی اګر که دا خبره د مجرمانو خوښه نه وی.

اِذْ تَسْتَغِيْثُوْنَ رَبَّكُمْ فَاسْتَجَابَ لَكُمْ اَنِّىْ مُمِدُّكُمْ بِاَلْفٍ

کله چه تاسو فریاد کولو | خپل رب ته | نو هغهٔ (دعا) قبوله کړه | ستاسو | چه زهٔ به امداد کوم ستاسو | په یو زر

او کوم وخت چه تاسو خپل رب ته فریاد کولو نو هغهٔ ستاسو دعا قبوله کړه (او ئے فرمائیل) چه زهٔ ستاسو مدد له زر

مِّنَ الْمَلٰٓئِكَةِ مُرْدِفِيْنَ ۝٩ وَمَا جَعَلَهُ اللّٰهُ اِلَّا بُشْرٰى

فرښتو سره | یو په بل پسے راتلونکے | او نه ئے جوړه کړے دا (مدد) | الله | مګر | زیرے

فرښتے یو په بل پسے درلیږم ـ او دا خبره الله ځکه وکړه چه په تاسو زیرے وشی

وَلِتَطْمَئِنَّ بِهٖ قُلُوْبُكُمْ ۚ وَمَا النَّصْرُ اِلَّا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ

او چه اطمینان پیدا موی | په دے سره | ستاسو زړونه | او | نه دے مدد | مګر | د الله د طرف نه

او ستاسو زړونه په ځائے شی. او په حقیقت کښے مدد خو صرف د الله تعالیٰ د طرف نه

اِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ۝١٠ اِذْ يُغَشِّيْكُمُ النُّعَاسَ ع ١٠ ١٥

بیشکه | الله | ډیر زبردست | د حکمتونو خاوند دے | هر کله چه | هغهٔ راوستله په تاسو | پرکالی

وی. بیشکه الله تعالیٰ غالب او حکمت خاوند دے ـ او هغه وخت را یاد کړئ چه الله تعالیٰ په تاسو باندې

أَمَنَةً مِّنْهُ وَيُنَزِّلُ عَلَيْكُم مِّنَ السَّمَآءِ مَآءً

دَ پاره دَ امن | دَ خپل طرف نه | او راوے وَرَولے | په تاسو باندې | له آسمان نه | اوبۀ

دَ پاره دَ آرام دَ پاره دَ خپل طرف نه پرکالی راوستله او دَ آسمان نه ئے په تاسو باندې باران وَروَلو چه

لِّيُطَهِّرَكُم بِهِۦ وَيُذْهِبَ عَنكُمْ رِجْزَ الشَّيْطَٰنِ

دَ پاره دَ دے چه پاک کړی تاسو | په دے سره | او لرے کړی | له تاسو نه | پلیتی | دَ شیطان

په دے سره تاسو پاک کړی او له تاسو نه شیطانی پلیتی (وسوسے) لرے کړی

وَلِيَرْبِطَ عَلَىٰ قُلُوبِكُمْ وَيُثَبِّتَ بِهِ الْأَقْدَامَ (١١) إِذْ يُوحِي

او چه مضبوط کړی | ستاسو زړونه | او کلک کړی | په دے سره | قدمونه | کله چه حکم کولو

او دَ پاره دَ دے چه ستاسو زړونه مضبوط کړی او په دے سره ستاسو قدمونه ټینګ کړی او کوم وخت چه

رَبُّكَ إِلَى الْمَلَٰٓئِكَةِ أَنِّي مَعَكُمْ فَثَبِّتُوا الَّذِينَ آمَنُوا

ستارب | فرښتو ته | چه زۀ | تاسو سره یم | پس کلک کړئ | مسلمانان

ستارب فرښتو ته حکم وکړو چه زۀ تاسو سره یم، نو تاسو دَ مسلمانانو همت زیات کړئ،

سَأُلْقِي فِي قُلُوبِ الَّذِينَ كَفَرُوا الرُّعْبَ فَاضْرِبُوا فَوْقَ

زر ده چه واچوم زۀ | په زړونو کښے | دَ هغو چه | کافران دی | رعب | پس ووهئ تاسو | دَ پاسه

زۀ به اوس دَ کافرانو په زړونو کښے رعب وغورزوم ، نو تاسو دَ دوی څټونه

الْأَعْنَاقِ وَاضْرِبُوا مِنْهُمْ كُلَّ بَنَانٍ (١٢) ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ

دَ څټونو | او ووهئ | له دوی نه | (دَ ګوتو) هر بند | دا | ځکه چه دوی

وهئ او دَ ګوتو په جوړ جوړ ئے وهئ ۔ دا سزا ځکه ورکړے شوه چه

شَآقُّوا اللَّهَ وَرَسُولَهُۥ ۚ وَمَن يُشَاقِقِ اللَّهَ وَرَسُولَهُۥ

مخالفت وکړو | دَ الله | او دَ دۀ دَ رسول | او څوک | چه مخالفت وکړی | دَ الله | او دَ دۀ دَ رسول

چه دوی دَ الله او دَ دۀ دَ رسول مخالفت وکړو ، او څوک چه دَ الله تعالیٰ او دَ دۀ دَ رسول مخالفت وکړی

فَإِنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ (١٣) ذَٰلِكُمْ فَذُوقُوهُ وَأَنَّ لِلْكَٰفِرِينَ

پس بیشکه | الله | سخت عذاب ورکوونکے دے | دا (عذاب دے) | نو وڅکئ دا | او (پوهه شئ) چه کافرانو له

(نو داسے خلقو ته) الله تعالیٰ سخت عذاب ورکوونکے دے۔ دا ستاسو سزا ده دا وڅکئ او (یاد ساتئ!) چه دَ

عَذَابَ النَّارِ (١٤) يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوٓا إِذَا لَقِيتُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا

عذاب | دَ دوزخ دے | اے دَ ایمان خاوندانو! | هر کله چه تاسو مقابله شئ | دَ کافرانو سره

منکرانو دَ پاره دَ دوزخ دَ اور عذاب دے، اے مؤمنانو ! هر کله چه دَ کافرانو سره په جنګ کښے

زَحْفًا فَلَا تُوَلُّوهُمُ الْأَدْبَارَ (١٥) وَمَن يُوَلِّهِمْ يَوْمَئِذٍ دُبُرَهُۥٓ

په جنګ کښے | نو مۀ ګرځوئ دَ دوی طرف ته | شا ګانے | او څوک چه | وګرځوی دَ دوی طرف ته | په دغه ورځ | شا خپله

مخامخ شئ نو دَ مقابلے نه مخ مۀ ګرځوئ ، او څوک چه په دغه ورځ دَ دوی طرف ته شا وګرځوی

إِلَّا مُتَحَرِّفًا لِّقِتَالٍ أَوْ مُتَحَيِّزًا إِلَىٰ فِئَةٍ فَقَدْ بَاءَ بِغَضَبٍ
مګر چه | راګرځېدونکے وی | دَجنګ دَپاره | یا پناه لټوونکے وی | یو ډلے طرف ته | نو بیشکه دے راغلو | په غضب
البته که دَ جنګی غرض دَ پاره یا دَ نورو ملګرو سره دَ یو ځائے کیدو دَ پاره داسے وکړی، نو هغه به دَ خدائے په
مِّنَ اللَّهِ وَمَأْوَاهُ جَهَنَّمُ ۖ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ ﴿١٦﴾ فَلَمْ تَقْتُلُوهُمْ
دَ الله | او ځائے دَ دهٔ | دوزخ دے | او دا ډیر بد ځائے دے | پس تاسو ونهٔ وژل دوی
غضب کښے راګیر شی او دوزخ به ئے ټیکاونړه شی او هغه ډیر خراب ځائے دے. (مسلمانانو!) دوئی تاسو نه
وَلَٰكِنَّ اللَّهَ قَتَلَهُمْ ۚ وَمَا رَمَيْتَ إِذْ رَمَيْتَ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ
لیکن الله | دُوژل دوی | او نهٔ وُو ویشتلے تا | (موټے دَ خاورو) کله چه دُو ویشتلو تا | او لیکن الله
دی وژلی بلکه الله وژلی دی، او تا (موټے خاورے) نهٔ وے ویشتلے کوم وخت چه تا ویشتلے وے، بلکه الله
رَمَىٰ ۚ وَلِيُبْلِيَ الْمُؤْمِنِينَ مِنْهُ بَلَاءً حَسَنًا ۚ إِنَّ اللَّهَ
ویشتلے وُو | او دَ پاره دَ دے چه وُ آزمائی | مؤمنان | دَ خپل طرف نه | آزمائیل | ښهٔ | بیشکه الله
ویشتلے وے (دَ مسلمانانو نه ځکه کار واخستے شو) چه مسلمانان دَ یو عنت ازمېښت نه په کامیابئ سره ووېستلے شی بیشکه
سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿١٧﴾ ذَٰلِكُمْ وَأَنَّ اللَّهَ مُوهِنُ كَيْدِ الْكَافِرِينَ ﴿١٨﴾
آورېدونکے | پوهه دے | دا وه (مدعا) | او دا چه | الله | کمزورے کوونکے وو | تدبیر | دَ کافرانو
الله آورېدونکے پوهه دے. دا ستاسو فتح ځکه وُشوه چه الله ته دَ کافرانو چل ولی کمزورے سا تل منظور وو.
إِن تَسْتَفْتِحُوا فَقَدْ جَاءَكُمُ الْفَتْحُ ۖ وَإِن تَنتَهُوا فَهُوَ
که چرے تاسو غواړئ فتح | نو راغلے ده تاسو ته | فتح (هم) | او که چرے | تاسو منع شوئ | نو دا
(اے دَ مکے خلقو!) که چرے تاسو فتح غوښتله نو فتح هم راغله، که چرے تاسو منع شوئ نو دا خبره تاسو
خَيْرٌ لَّكُمْ ۖ وَإِن تَعُودُوا نَعُدْ وَلَن تُغْنِيَ عَنكُمْ فِئَتُكُمْ
ډېره ښهٔ ده | تاسو دَ پاره | او که تاسو بیا ځئ وکړل | نو مونږ به هم کوو | او هیڅ کله به په کار رانشی | ستاسو | ستاسو ټولے
دَ پاره ډېره ښهٔ ده او که تاسو بیا نافرمانی وکړه نو مونږ به بیا عذاب راولو او تاسو ته خپل ټولے هیڅ فائده
شَيْئًا وَلَوْ كَثُرَتْ ۙ وَأَنَّ اللَّهَ مَعَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿١٩﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا
هیڅ (هم) | اګر که هغه ډېر لوئے وی | او دا چه | الله | دَ مؤمنانو سره دے | اے دَ ایمان خاوندانو!
در کولے نهٔ شی اګر که ډېر زیات شی او یقیناً الله تعالیٰ دَ مؤمنانو سره دے. اے مؤمنانو!
أَطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَلَا تَوَلَّوْا عَنْهُ وَأَنتُمْ تَسْمَعُونَ ﴿٢٠﴾
حکم ومنئ | دَ الله | او دَ دهٔ دَ رسول | او مخ مهٔ اړوئ | له دهٔ نه | او حال دا دے چه تاسو | آورئ
دَ الله تعالیٰ او دَ دهٔ دَ رسول اطاعت کوئ او دَ حکم آورېدو نه پس ترے نه مخ مهٔ ګرځوئ
وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ قَالُوا سَمِعْنَا وَهُمْ لَا يَسْمَعُونَ ﴿٢١﴾
او مهٔ کېږئ تاسو | په شان دَ هغه کسانو | چه ووئیل ئے وُو | مونږ واورېدل | او دوی | نهٔ آورېدل
او دَ هغه چا په شان مهٔ کېږئ چه دا دعوی کوی چه مونږ واورېدل حال دا دے چه هیڅ هم نهٔ آوری.

إِنَّ شَرَّ الدَّوَآبِّ عِندَ اللَّهِ الصُّمُّ الْبُكْمُ الَّذِينَ

بیشکه | زیات خراب ساداد | دَ الله په نزد | (هغه) کانړهٔ | ګونګیان (خلق) دی | کوم چه

دَ الله تعالیٰ په نزد زیات خراب سادار هغه کانړهٔ او ګونګیان خلق دی چه په هیڅ نهٔ

لَا يَعْقِلُونَ ﴿٢٢﴾ وَلَوْ عَلِمَ اللَّهُ فِيهِمْ خَيْرًا لَّأَسْمَعَهُمْ

عقل نهٔ لری | او کهٔ چرے پېژندے | الله | په دوی کښے | څهٔ خیر | نو خامخا به ئے اورولے وو دوی ته

پوهیږی۔ او کهٔ الله تعالیٰ ته به دوئ کښے څهٔ خوبی ښکاریدے نو دَ آورېدو توفیق به ئے ورکړے وو

وَلَوْ أَسْمَعَهُمْ لَتَوَلَّوا وَّهُم مُّعْرِضُونَ ﴿٢٣﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ

او کهٔ چرے | دوی ته ئے آورولے هم وے | نو دوی به خامخا مخ اړولے وو | او دوی دی مخ اړوونکی | اے هغه خلقو

او کهٔ چرے دوی ته ئے دَ آوریدو طاقت ورکړے وے نو هم به دوی مخ اړولے وو او تښتیدلی به وو۔ اے هغه خلقو!

آمَنُوا اسْتَجِيبُوا لِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ إِذَا دَعَاكُمْ

چه ایمان مو راوړے دے | حکم قبول کړئ | دَ الله | او | دَ رسول | کله چه راوبلی تاسو

چه ایمان مو راوړے دے دَ الله تعالیٰ او دَ رسول حکم قبول کړئ څکه چه هغے خبرے ته مو

لِمَا يُحْيِيكُمْ ۖ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ يَحُولُ بَيْنَ الْمَرْءِ

هغه (دین) طرف ته | (چه) تاسو ژوندی کوی | او پوهه شئ | چه بیشکه | الله | حائل کیږی | په مینځ دَ بنده

رابلی چه تاسو پرے ژوندی کیږئ۔ او یاد لرئ چه الله تعالیٰ دَ بنده او دَ هغهٔ دَ خپل زړهٔ ترمینځهٔ

وَقَلْبِهِ وَأَنَّهُ إِلَيْهِ تُحْشَرُونَ ﴿٢٤﴾ وَاتَّقُوا فِتْنَةً

او دَ دهٔ دَ زړهٔ کښے | او دا چه | هم دَ هغهٔ طرف ته | به تاسو جمع کولے شئ | او ځان ساتئ | له هغے بلا نه

هم پرده کیږی او بیشکه چه تاسو ټول به هغهٔ ته جمع کیږئ۔ او دَ هغے وبال نه ځان بچ کړئ

لَّا تُصِيبَنَّ الَّذِينَ ظَلَمُوا مِنكُمْ خَاصَّةً ۖ وَاعْلَمُوا

چه نهٔ به پریوځی | هم په هغه خلقو | کوم چه ظلم وکړو | له تاسو نه | خاص | او پوهه شئ

چه دَ هغے اثر به خاص هم ظالمانو ته نهٔ رسی ، او پوهه شئ

أَنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ ﴿٢٥﴾ وَاذْكُرُوا إِذْ أَنتُمْ

چه بیشکه | الله | سخت | عذاب ورکوونکے دے | او یاد کړئ | هغه کله چه | تاسو وئ

چه الله تعالیٰ په عذاب ورکولو کښے ډیر سخت دے۔ او هغه وخت را یاد کړئ چه تاسو لږ

قَلِيلٌ مُّسْتَضْعَفُونَ فِي الْأَرْضِ تَخَافُونَ أَن يَتَخَطَّفَكُمُ

لږ | کمزوری ګڼړلے شوی | په زمکه کښے | تاسو به ویریدلئ | له دے نه چه | وُبه تښتوی تاسو

وئ ، په ملک کښے کمزوری ګڼړلی شوئ ، تاسو سره به ویره وه چه چرته خلق تاسو

النَّاسُ فَآوَاكُمْ وَأَيَّدَكُم بِنَصْرِهِ وَرَزَقَكُم

خلق | بیا هغهٔ ځائے درکړو تاسو ته | او | قوت ئے درکړو تاسو ته | په خپل مدد سره | او رزق ئے درکړو تاسو ته

وُنهٔ تښتوی ، نو خدائے درله دَ استوګنے ځائے درکړو او په خپل مدد سره ئے تاسو مضبوط کړئ او پاکیزه رزقونه

مِّنَ الطَّيِّبٰتِ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿٢٦﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

له پاکیزه څیزونو نه | چه تاسو | شکر وکړئ | اے دَ ایمان خاوندانو!

ئے درکړل ، بنائی چه تاسو شکر وباسئ اے مؤمنانو!

لَا تَخُوْنُوا اللّٰهَ وَ الرَّسُوْلَ وَتَخُوْنُوْٓا اَمٰنٰتِكُمْ

خیانت مه کوی | دَ الله | او | دَ رسول سره | او خیانت (مه) کوئ تاسو | په امانتونو دَ یو بل کښے

دَ الله او دَ رسول سره خیانت مه کوئ او دَ یو بل په امانتونو کښے هم خیانت مه کوئ

وَاَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿٢٧﴾ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّمَآ اَمْوَالُكُمْ

او حال دا دے چه تاسو | پوهیږئ | او پوهه شئ | چه بیشکه | ستاسو مالونه

سره دَ دے چه تاسو پوهیږئ او پوهه شئ چه ستاسو مالونه او ستاسو اولاد

وَ اَوْلَادُكُمْ فِتْنَةٌ ۙ وَّاَنَّ اللّٰهَ عِنْدَهٗٓ اَجْرٌ عَظِيْمٌ ﴿٢٨﴾ ع ٣ ٩ ١٧

او | اولاد ستاسو | اَزمیښت دے | او دا چه | دَ الله سره دے | اجر | ډیر لوئے

خو په حقیقت کښے دَ ازمیښت سامان دے او الله تعالیٰ سره چه کوم اجر دے هغه ډیر لوئے دے

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنْ تَتَّقُوا اللّٰهَ يَجْعَلْ لَّكُمْ فُرْقَانًا

اے دَ ایمان خاوندانو! | که چرے وبیریږئ تاسو | دَ الله نه | نو هغه به جوړه کړی | تاسو دَ پاره | امتیاز (په حق او باطل کښے)

اے مؤمنانو ! که چرے تاسو دَ الله تعالیٰ نه ویره کوئ نو هغه به تاسو ممتاز کړی

وَّيُكَفِّرْ عَنْكُمْ سَيِّاٰتِكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ؕ وَاللّٰهُ

او لرے به کړی | له تاسو نه | ستاسو بدیانے | او وُبه بخښی | تاسو | او الله

او له تاسو نه به ستاسو گناهونه لرے کړی ، او تاسو به و بخښی او الله

ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ ﴿٢٩﴾ وَاِذْ يَمْكُرُ بِكَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

دَ لوئے فضل خاوند دے | او هر کله چه | تد بیر کولو | ستا خلاف | کافرانو

دَ لوئے فضل خاوند دے . او (اے پیغمبره ! یاد کړه) کله چه کافرانو ستا په باره کښے تد بیرونه کول

لِيُثْبِتُوْكَ اَوْ يَقْتُلُوْكَ اَوْ يُخْرِجُوْكَ ؕ وَيَمْكُرُوْنَ وَ

چه دوی قید کړی تا | یا دووژنی تا | یا له وطن نه اوباسی تا | او دوی به تد بیر کولو | او

چه تا قید کړی یا دِ مړ کړی یا دِ دَ وطن نه اُوباسی ، دِے خلقو تد بیر کولو او

يَمْكُرُ اللّٰهُ ؕ وَاللّٰهُ خَيْرُ الْمٰكِرِيْنَ ﴿٣٠﴾ وَاِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ

الله هم تد بیر کولو | او الله | دَ ټولو نه ښهٔ | تد بیر کوونکے دے | او هر کله چه | لوستلے شی | په دوی باندِ

الله تعالیٰ هم تد بیر کولو او الله تعالیٰ ډیر ښهٔ تد بیر کوونکے دے او هر کله چه دوی ته زمونږ آیتونه

اٰيٰتُنَا قَالُوْا قَدْ سَمِعْنَا لَوْ نَشَآءُ لَقُلْنَا مِثْلَ هٰذَآ ۙ

زمونږ آیتونه | نو وائی | مونږ اُوریدلی دی | که چرے مونږ وغواړو | نو وبه وایو مونږ هم | په شان دَ دے (کلام)

وُلوستلے شی نو وائی چه مونږ واوُریدل ، که مونږ وغواړو نو یخپله به هم دغسے جوړ کړو

إِنْ هٰذَآ إِلَّآ أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ ﴿٣١﴾ وَإِذْ قَالُوا اللّٰهُمَّ

نهٔ دی دا | مگر صرف | قصے | دَ پخوانو دی | او هر کله چه | ووئیل دوی | اے الله!

دا خو هیڅ نهٔ دی تشے هغه دَ پخوانو خلقو زړے قصے دی او هر کله چه دوی وئیلی وو چه اے الله!

إِنْ كَانَ هٰذَا هُوَ الْحَقَّ مِنْ عِنْدِكَ فَأَمْطِرْ عَلَيْنَا حِجَارَةً

که چرے وی | دا (اسلام) | رښتینے (دین) | ستا دَ طرف نه | نو وَوروه | په مونږ باندِ | کانړی

که چرے ستا دَ طرف نه هم دا (دین) برحق دے، نو په مونږ باندِ له آسمان نه دَ کانړو

مِّنَ السَّمَآءِ أَوِ ائْتِنَا بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴿٣٢﴾ وَمَا كَانَ اللّٰهُ

له آسمان نه | یا راوله په مونږ | عذاب | دردناک | او نهٔ دے | الله

باران وَوروه یا په مونږ باندِ څهٔ بل دردناک عذاب راوله، او الله تعالیٰ نهٔ غواړی چه

لِيُعَذِّبَهُمْ وَأَنْتَ فِيهِمْ ۚ وَمَا كَانَ اللّٰهُ مُعَذِّبَهُمْ وَهُمْ

چه عذاب ورکړی دوی ته | او ته موجود یې په دوی کښے | او نهٔ دے الله | عذاب ورکوونکے دوی ته | او دوی

دوی له عذاب ورکړی تر څو چه پکښے ته موجود یې. او نهٔ الله تعالیٰ داسے خلقوله عذاب ورکوی چه

يَسْتَغْفِرُونَ ﴿٣٣﴾ وَمَا لَهُمْ أَلَّا يُعَذِّبَهُمُ اللّٰهُ وَهُمْ يَصُدُّونَ

بخښنه غواړی | او څهٔ وجه ده دوی دَ پاره | چه عذاب به ورنهٔ کړی دوی ته | الله | او حال دا دے چه دوی منع کوی

هغوی استغفار کوی، خو اوس به الله تعالیٰ په دوی ولے عذاب نهٔ راولی؟ چه هغوی نور خلق

عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَمَا كَانُوٓا أَوْلِيَآءَهُ ۚ إِنْ أَوْلِيَآؤُهُ

(خلق) دَ مسجد حرام نه | او نهٔ دی دوی | دَ دے مختار | نهٔ دی | دَ دے مختار

دَ مسجد حرام نه منع کوی سره دَ دے چه جائز متولیان ئے هم نهٔ دی، دَ دے متولیان خو صرف

إِلَّا الْمُتَّقُونَ وَلٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٣٤﴾ وَمَا كَانَ

مگر (صرف) پرهیزګار (خلق) | لیکن | اکثر له دوی نه | نهٔ پوهیږی | او نهٔ وه

پرهیزګاره خلق کیدے شی، خو اکثر خلق په دے نهٔ پوهیږی. او دَ بیت الله

صَلَاتُهُمْ عِنْدَ الْبَيْتِ إِلَّا مُكَآءً وَّتَصْدِيَةً ۚ فَذُوقُوا

مونځ دَ دوی | دَ بیت الله په خواکښے | مگر شپیلیَ وهل | او لاسو پړقول | پس وڅکئ

په خواکښے دَ دوی مونځونه څهٔ وو خو شپیلی وهل او لاسونه پړقول، نو دا ے کافرانو دَ

الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُونَ ﴿٣٥﴾ إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا يُنْفِقُونَ

عذاب | دَ هغے په بدله کښے | چه تاسو به انکار کولو | بیشکه | کوم خلق چه | کافران دی | هغوی خرڅ کوی

خپل انکار په سبب دَ عذاب مزه وڅکئ. چا چه دَ حق نه انکار کړے دے (او) هغوی

أَمْوَالَهُمْ لِيَصُدُّوا عَنْ سَبِيلِ اللّٰهِ ۚ فَسَيُنْفِقُونَهَا

خپل مالونه | دَ پاره دَ دے چه منع کړی (خلق) | دَ الله دَ لارے نه | پس زر ده چه دوی به خرڅ کړی دا

خپل مالونه په دے پسے لګوی چه خلق دَ الله تعالیٰ دَ لارے نه منع کړی، نو لا به نور مالونه هم لګوی

ثُمَّ تَكُونُ عَلَيْهِمْ حَسْرَةً ثُمَّ يُغْلَبُونَ ۬ وَالَّذِينَ كَفَرُوٓا

بیا به هغه وی | په دوی بانډې | (د وجه دَ) افسوس | بیا به | دوی مغلوبه کړے شي | او کوم خلق چه کافران

او بیا به ئے دا خرڅونه دَ افسوس سبب وګرځي او بیا (آخر) به بیلات وکړي ، او ټول کافران به

إِلَىٰ جَهَنَّمَ يُحْشَرُونَ ﴿٣٦﴾ لِيَمِيزَ اللَّهُ الْخَبِيثَ مِنَ الطَّيِّبِ

هم دوزخ طرف ته | به جمع کولے شي | دَ پاره دَ دے چه جدا کړي الله | ناپاکه | له پاک نه

دوزخ ته راغونډولے شي . چه الله تعالیٰ ګنده خبیزونه دَ پاکیزه خیزونو نه بیل کړي

وَيَجْعَلَ الْخَبِيثَ بَعْضَهُ عَلَىٰ بَعْضٍ فَيَرْكُمَهُ جَمِيعًا

او کیږدي | ناپاکه | ځنې له دوی نه | په ځنو بانډې | بیا د یو ځائے (ډیر) جوړ کړي | ذ دے

او بیا ناپاکه خیزونه په یو بل بانډې کیږدي، دَ دے ټولو یو ډیرے جوړ کړي، بیا دا ډیرے

فَيَجْعَلَهُ فِي جَهَنَّمَ ۚ أُولَٰئِكَ هُمُ الْخَاسِرُونَ ﴿٣٧﴾ قُل

بیا هغه (ډیرے) وغورزوي | په دوزخ کښے | هم دا خلق دي | نقصان موندونکي | ووایه

دوزخ ته ورو غورځوي ، هم دغه خلق دي چه په زیان کښے پراته دي . کافرانو ته

لِّلَّذِينَ كَفَرُوٓا إِن يَنتَهُوا يُغْفَرْ لَهُم مَّا قَدْ سَلَفَ

هغه خلقو ته | چه کافران دي | که چرے دوی منع شي | نو بخښنه به وشي | دوی ته | دَ هغه څه چه تیر شول

ووایه چه که دوی اوس هم منع شي نو تیر شوي ګناهونه به ورته وبخښلے شي او که بیا بیا ئے وکړي

وَإِن يَعُودُوا فَقَدْ مَضَتْ سُنَّتُ الْأَوَّلِينَ ﴿٣٨﴾

او که چرے | دوی بیا داسے وکړي | پس بیشکه تیر شوے دے | حالت | دَ مخکښینو خلقو

کوي ، نو دَ پخوانو قومونو سره چه څه شوي دي هغه ښکاره دي

وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّىٰ لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ

او جنګ کوئ دوی سره | تر دے چه | پاتے نهٔ شي | فتنه | او پاتے شي | دین

او تر هغے وخته پورے دوی سره جنګیږئ چه فتنه باقي پاتے نهٔ شي، او ټول دین یوازے دَ

كُلُّهُ لِلَّهِ ۚ فَإِنِ انتَهَوْا فَإِنَّ اللَّهَ بِمَا يَعْمَلُونَ

ټول | الله دَ پاره | پس که چرے | دوی منع شي | نو بیشکه | الله | هغه څهٔ ته | چه دوی ئے کوي

الله تعالیٰ شي ، نو که چرے دوی (دَ فتنے نه) منع شي نو بیشکه الله تعالیٰ دَ دوی عملونو ته

بَصِيرٌ ﴿٣٩﴾ وَإِن تَوَلَّوْا فَاعْلَمُوٓا أَنَّ اللَّهَ

(ښهٔ) ګوري | او که چرے | دوی مخ وګرځولو | نو پوهه شئ | چه | الله

ګوري ، او که چرے دوی مخ واړوي نو یقین وساتئ چه الله تعالیٰ ستاسو

مَوْلَاكُمْ ۚ نِعْمَ الْمَوْلَىٰ وَنِعْمَ النَّصِيرُ ﴿٤٠﴾

ستاسو ملګرے دے | (ډیر) ښهٔ | ملګرے (دے) | او (هم ډیر) ښهٔ | مدد کوونکے دے

کارساز دے او هغه ډیر ښهٔ ملګرے دے او ډیر ښهٔ مدد ګار دے

وَاعْلَمُوْٓا اَنَّمَا غَنِمْتُمْ مِّنْ شَيْءٍ فَاَنَّ لِلّٰهِ خُمُسَهٗ

او پوهه شئ | چه هغه څهٔ | چه غنيمت کښے بيا مومئ تاسو | له هر جنس نه | نو الله دَ پاره دهٔ | دَ دے پنځمه برخه

او تاسو ته دِ معلومه شي چه کوم څيز تاسو په غنيمت کښے بيا مومئ ، نو په هغے کښے پنځمه برخه دَ الله تعالىٰ

وَلِلرَّسُوْلِ وَلِذِي الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنِ وَابْنِ السَّبِيْلِ

او دَ رسول دَ پاره | او دَ خپلوانو دَ پاره | او يتيمانو | او مسکينانو | او مسافرو (دَ پاره)

او دَ رسول دهٔ او دَ هغهٔ دَ خپلوانو او يتيمانو او مسکينانو او مسافرو دهٔ

اِنْ كُنْتُمْ اٰمَنْتُمْ بِاللّٰهِ وَمَآ اَنْزَلْنَا عَلٰى عَبْدِنَا

کهٔ چرے تاسو ايمان راوړے وی | په الله | او په هغه (کتاب) باندِ چه نازل کړو مونږ | په خپل بندهٔ باندِ

کهٔ تاسو په الله تعالىٰ باندِ ايمان لرئ ، او په هغه (کتاب) چه مونږ دَ فيصلے په ورځ يعنی دَ دواړو ډلو

يَوْمَ الْفُرْقَانِ يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعٰنِ ۭ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ

په حق او باطل کښے دَ فيصلے په ورځ | په کومه ورځ | چه يو ځائے راغلے | دوه لښکرے | او الله | په هر څيز باندِ

دَ مقابلے په ورځ په خپل بنده باندِ نازل کړے دے او الله تعالىٰ په هر څيز باند قدرت

قَدِيْرٌ ۝٤١ اِذْ اَنْتُمْ بِالْعُدْوَةِ الدُّنْيَا وَهُمْ بِالْعُدْوَةِ الْقُصْوٰى

قادر دے | کله چه تاسو وئ | په غاړه | نزدے باندِ | او دوی وو | په غاړه | لرے باندِ

لری ، دا هغه وخت وو کله چه تاسو (دَ مدينے) نزدے والا غاړه باندِ وئ او هغه (کفار) په لرے غاړه باندِ وو

وَالرَّكْبُ اَسْفَلَ مِنْكُمْ ۭ وَلَوْ تَوَاعَدْتُّمْ لَاخْتَلَفْتُمْ

او قافله (وه) | ښکته | له تاسو نه | او کهٔ تاسو دَ يو بل سره وعدهٔ کولے (دَ جنګ) | نو اختلاف به کولو تاسو

او (دَ تجارت) قافله تاسو نه ښکته (بچ بچ) تلله او کهٔ چرے تاسو دَ يو بل سره دَ جنګ په حقله څهٔ وعدهٔ کولے نو تاسو به

فِي الْمِيْعٰدِ ۙ وَلٰكِنْ لِّيَقْضِيَ اللّٰهُ اَمْرًا كَانَ مَفْعُوْلًا ڏ

په وعده کښے | ليکن | پوره کول وو | الله له | يو کار | چه کيدونکے وو

نهٔ وئ رسيدلی وعدے ته خو (څهٔ چه وشول هغه ځکه وشول) چه الله تعالىٰ يو داسے کار پوره کړی کوم چه هغهٔ کولو۔

لِّيَهْلِكَ مَنْ هَلَكَ عَنْۢ بَيِّنَةٍ وَّيَحْيٰى مَنْ حَيَّ عَنْۢ بَيِّنَةٍ

چه هلاک شي | هغه څوک چه هلاک شو | په دليل سره | او ژوندے پاتے شي | هغه څوک چه ژوندے پاتے شو | په دليل سره

هغه دا چه څوک تباه کيږی هغه په ښکاره دليل تباه کړی او څوک چه ژوندے پاتے کيږی هغه په واضح دليل ژوندے پاتے

وَاِنَّ اللّٰهَ لَسَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ۝٤٢ ۙ اِذْ يُرِيْكَهُمُ اللّٰهُ فِيْ مَنَامِكَ

او بيشکه | الله | آوريدونکے | پوهه دے | هر کله چه ښودل تا ته دوی | الله | ستا په خوب کښے

شی او الله تعالىٰ هر څهٔ آوری په هر څهٔ پوهه دے ۔ هغه وخت را ياد کړه چه الله تعالىٰ هغوی (کافران) تا ته په

قَلِيْلًا ۭ وَلَوْ اَرٰىكَهُمْ كَثِيْرًا لَّفَشِلْتُمْ وَلَتَنَازَعْتُمْ

لږ | او کهٔ ښودلے وے تا ته دوی | ډير | نو خامخا به زړهٔ بائيللے وو تاسو | او خامخا به اختلاف کولو تاسو

خوب کښے لږ ښکاره کول او کهٔ درته ئے ډير ښکاره کړی وے نو تاسو به همت بائيللے وو او په دے معامله کښے به هم

فِى الْاَمْرِ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ سَلَّمَ ؕ اِنَّهٗ عَلِيْمٌ ۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ⁦٤٣⁩

په دے معامله کښے | او ليکن | الله | بچ وساتلئ | بيشکه هغه | ښه پيژنی | دَ سينو خبرے

جګړه شروع کړے وه ، ليکن الله تعالیٰ تاسو بچ کړئ يقيناً الله تعالیٰ ته دَ زړونو حال ښه ښه معلوم دے

وَاِذْ يُرِيْكُمُوْهُمْ اِذِ الْتَقَيْتُمْ فِىْٓ اَعْيُنِكُمْ قَلِيْلًا

او هر کله چه | هغه ښودل تاسو ته | دوی | کله چه تاسو مخامخ شوئ | په سترګو ستاسو کښے | لږ

او را ياد کړئ چه دَ مقابلے په وخت کښے الله تعالیٰ تاسو ته دُښمنان کم ښکاره کول

وَّيُقَلِّلُكُمْ فِىْٓ اَعْيُنِهِمْ لِيَقْضِىَ اللّٰهُ اَمْرًا كَانَ مَفْعُوْلًا

او لږ ئے ښکاره کړئ تاسو | په سترګو دَ هغوی کښے | چه پوره کړی | الله هغه کار | چه کيدونکے وو

او تاسو ئے دښمنانو ته کم ښکاره کولئ چه الله هغه کار پوره کړی کوم چه فيصله کړے شوے دے

۵ع
وَاِلَى اللّٰهِ تُرْجَعُ الْاُمُوْرُ ⁦٤٤⁩ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا لَقِيْتُمْ

او الله طرف ته | واپس کولے شی | (ټول) کارونه | اے دَ ايمان خاوندانو! | کله چه تاسو مقابله شئ

او ټول معاملے صرف الله تعالیٰ ته راجمع کيږی . اے مؤمنانو ! هر کله چه يو ټولی سره ستاسو

فِئَةً فَاثْبُتُوْا وَاذْكُرُوا اللّٰهَ كَثِيْرًا لَّعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ⁦٤٥⁩

يو ټولی سره | نو کلک وُسيږئ | او ياد کړئ | الله | ډير | دَ پاره دَ دے چه تاسو | کامياب شئ

مقابله راشی نو ثابت قدم وُسيږئ او الله تعالیٰ ډير ډير يادوئ چه تاسو کامياب شئ

وَاَطِيْعُوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَلَا تَنَازَعُوْا فَتَفْشَلُوْا وَتَذْهَبَ

او حکم منئ | دَ الله | او دَ دهٔ دَ رسول | او دَ يو بل سره جګړے مهٔ کوئ | ګڼی بزدله به شئ | او لاړه به شی

او دَ الله تعالیٰ او دَ دهٔ دَ رسول حکم منئ ، او په خپل مينځ کښے جګړے مهٔ کوی ګڼی بزدله به شئ او ستاسو رُعب

رِيْحُكُمْ وَاصْبِرُوْا ؕ اِنَّ اللّٰهَ مَعَ الصّٰبِرِيْنَ ⁦٤٦⁩ وَلَا تَكُوْنُوْا

رُعب ستاسو | او صبر کوئ | بيشکه | الله | سره (دے) | دَ صبر کوونکو | او مهٔ کيږئ

به ختم شی او صبر کوئ الله تعالیٰ دَ صابرانو خلقو ملګرے دے . او دَ هغه خلقو

كَالَّذِيْنَ خَرَجُوْا مِنْ دِيَارِهِمْ بَطَرًا وَّرِئَآءَ النَّاسِ وَ

په شان دَ هغو خلقو | چه وُوتل | دَ خپلو کورونو نه | په غرور سره | او خلقو ته په ځان ښودلو سره | او

په شان مهٔ کيږئ چه دَ خپلو کورونو نه په غرور سره او خلقو ته دَ ښودنے په خيال راووتل او

يَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ بِمَا يَعْمَلُوْنَ مُحِيْطٌ ⁦٤٧⁩

او منع کوی (خلق) | دَ الله دَ لارے نه | او الله | په هغه څه | چه دوی ئے کوی | راچاپيره دے

خلق ئے دَ الله تعالیٰ دَ لارے نه منع کول او الله تعالیٰ دَ دوی په کارونو احاطه کوونکے دے

وَاِذْ زَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ اَعْمَالَهُمْ وَقَالَ لَا غَالِبَ لَكُمُ

او کله چه ښائسته کړل | دوی ته | شيطان | عملونه دَ دوی | او وئے ويل | چه څوک هم غالب نهٔ شی راتلے په تاسو

او کوم وخت چه شيطان ورته دَ دوی کارونه ښائسته ښکاره کړل او ورته ئے دوئيل چه نن هيڅوک به

الْيَوْمَ مِنَ النَّاسِ وَاِنِّيْ جَارٌ لَّكُمْ ۚ فَلَمَّا تَرَآءَتِ

نن | له خلقو نه | او بیشکه زهٔ مددګاریم | ستاسو | بیا هر کله چه | مخامخ شوے

په تاسو غلبه نهٔ شي موندے او زهٔ ستاسو ملګرے یم ، خو هر کله چه دواړه ډلے

الْفِئَتٰنِ نَكَصَ عَلٰى عَقِبَيْهِ وَقَالَ اِنِّيْ بَرِيْٓءٌ مِّنْكُمْ

دواړه ډلے | نو هغه واپس وګرځیدو | په پوندو خپلو | او وے وئیل | بیشکه زهٔ | بیزاره یم | له تاسو نه

مخامخ شوے نو هغه په ادولو بنپو وُتښتیدو او وے وئیل چه زهٔ تاسو نه بیزاره یم ،

اِنِّيْٓ اَرٰى مَا لَا تَرَوْنَ اِنِّيْٓ اَخَافُ اللّٰهَ ۭ وَاللّٰهُ

بیشکه زهٔ | وینم | هغه څهٔ چه | تاسو نهٔ وینئ | بیشکه زهٔ | ویریږم | دَ الله نه | او الله

زهٔ هغه څهٔ وینم چه تاسو ته نهٔ ښکاری ، زهٔ دَ خدائے نه ویریږم ، او خدائے

شَدِيْدُ الْعِقَابِ ۝ ٤٨ اِذْ يَقُوْلُ الْمُنٰفِقُوْنَ وَالَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ

سخت عذاب ورکوونکے دے | هر کله چه وئیل | منافقانو | او هغه خلقو | چه په زړونو دَ هغوی کښے

په عذاب ورکولو کښے ډیر سخت دے . هغه وخت رایاد کړئ چه منافقانو او هغه خلقو چه په زړونو کښے ئے

مَّرَضٌ غَرَّ هٰٓؤُلَآءِ دِيْنُهُمْ ۭ وَمَنْ يَّتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ

مرض دے | مغروره کړی دی | دوی | دین دَ دوی | او څوک چه | توکل وکړی | په الله باندِ

(دَ کفر) مرض پروت دے وئیل چه دوی (مسلمانان) په خپل دین نازیږی ، او څوک چه په الله تعالیٰ توکل وکړی

فَاِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ۝ ٤٩ وَلَوْ تَرٰٓى اِذْ يَتَوَفَّى

نو بیشکه | الله دے | ډیر زبردست | دَ حکمت خاوند | او که چرے | وو وینے ته | کله چه | روحونه وُباسی

نو بیشکه الله تعالیٰ غالب او دَ حکمت خاوند دے . او کاش ! چه ته هغه وخت وو وینے کله چه فرښتے

الَّذِيْنَ كَفَرُوا ۙ الْمَلٰٓئِكَةُ يَضْرِبُوْنَ وُجُوْهَهُمْ وَاَدْبَارَهُمْ ۚ

دَ هغو | چه کافران دی | فرښتے | ګزارونه کوی | په مخونو دَ دوی | او په شاګانو دَ دوی

دَ کافرانو روحونه قبض کوی ، هغوی دَ دوی په مخونو او دَ دوی په شاګانو ګزارونه کوی او (وائی چه)

وَذُوْقُوْا عَذَابَ الْحَرِيْقِ ۝ ٥٠ ذٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتْ

او (وائی) چه وُڅکئ | عذاب | سوزوونکے | دا دے | دَ هغه عمل په سبب | چه وړاندِ لیږلے دے

دَ سوزوونکی اور عذاب وڅکئ . دا سزا دَ هغو عملونو په وجه ده چه تاسو په خپلو

اَيْدِيْكُمْ وَاَنَّ اللّٰهَ لَيْسَ بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيْدِ ۝ ٥١ كَدَاْبِ

ستاسو لاسونو | او دا چه الله | نهٔ دے | ظلم کوونکے | په خپلو بندګانو | لکه چه حال شو

لاسونو وړاندِ لیږلی دی او یقینًا الله تعالیٰ په خپلو بندګانو باندِ ظلم نهٔ کوی . دَ دوی حالت دَ

اٰلِ فِرْعَوْنَ ۙ وَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۭ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ

قوم دَ فرعون | او دَ هغو خلقو | چه له دوی نه وړاندِ وُو | چه دوی انکار کړے وو | دَ ایتونو | دَ الله

فرعون دَ قوم په شان دے او دَ هغو خلقو په شان چه له دوی نه وړاندِ وُو ، دوی دَ الله تعالیٰ دَ ایتونو نه انکار وکړو

فَأَخَذَهُمُ اللَّهُ بِذُنُوبِهِمْ ۗ إِنَّ اللَّهَ قَوِيٌّ شَدِيدُ الْعِقَابِ ﴿٥٢﴾

بیا ونیول دوی | الله | په ګناهونو د دوی | بیشکه الله | ډیر طاقتور | سخت عذاب ورکوونکے دے

نو الله تعالیٰ په خپلو ګناهونو کښے راونیول ، بیشکه الله تعالیٰ زور آور دے او په عذاب ورکولو کښے ډیر سخت دے

ذَٰلِكَ بِأَنَّ اللَّهَ لَمْ يَكُ مُغَيِّرًا نِّعْمَةً أَنْعَمَهَا عَلَىٰ قَوْمٍ

دا | ځکه چه | الله | هیڅ کله نهٔ دے | بدلوونکے | (هغه) نعمت | کوم چه دهٔ ورکړے وی | په قوم

دا ځکه چه الله تعالیٰ په یو قوم انعام وکړی نو هغه نهٔ بدلوی

حَتَّىٰ يُغَيِّرُوا مَا بِأَنفُسِهِمْ ۙ وَأَنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ

تر دے چه | بخپله دوی بدل کړی | څهٔ چه | د دوی په زړونو کښے دی | او چه | الله | اؤریدونکے

ترڅو چه هغوی بخپله خپل عمل بدل نهٔ کړی او الله تعالیٰ هر څهٔ اؤری

عَلِيمٌ ﴿٥٣﴾ كَدَأْبِ آلِ فِرْعَوْنَ ۙ وَالَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ۚ

پوهه دے | په شان د حال | د قوم د فرعون | او د هغو خلقو | چه له دوی نه وړاندې

په هرڅهٔ پوهه دے. لکه د فرعون قوم سره او د هغوی نه مخکښ خلقو سره چه وشول

كَذَّبُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ فَأَهْلَكْنَاهُم بِذُنُوبِهِمْ وَأَغْرَقْنَا

دوی دروغ وګڼړل | آیتونه د رب خپل | بیا مونږ هلاک کړل دوی | د دوی د ګناهونو په سبب | او مونږ غرق کړل

هغوی د خپل رب آیتونه دروغ وګڼړل ، نو مونږ دوی د خپلو ګناهونو په سزا کښے تباه کړل او د فرعون

آلَ فِرْعَوْنَ ۚ وَكُلٌّ كَانُوا ظَالِمِينَ ﴿٥٤﴾ إِنَّ شَرَّ الدَّوَابِّ

قوم د فرعون | او ټول | وو | ظالمان | بیشکه | ډیر زیات بد | ساه دار

قوم مو ډوب کړو او هغوی ټول ظالمان خلق وو . بیشکه د الله تعالیٰ په نزد هغه خلق کوم چه

عِندَ اللَّهِ الَّذِينَ كَفَرُوا فَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿٥٥﴾ الَّذِينَ

د الله په نزد | هغه خلق دی | چه انکار ئے وکړو (د حق) | پس دوی | ایمان نهٔ راوړی | هغه خلق چه

د کفر لاره ... دنیوه ډیر بد حیوانان دی نو دوی به هیڅ رے ایمان نهٔ راوړی ، د هغوی

عَاهَدتَّ مِنْهُمْ ثُمَّ يَنقُضُونَ عَهْدَهُمْ فِي كُلِّ مَرَّةٍ وَهُمْ

وعده کړے دے | دوی سره | بیا | دوی ماتوی | خپله وعده | په هر ځل | او دوی

حال دے چه تا ترے وعده اخستے وه ، بیا هغوی خپلے وعدے هر ځل ماتوی ـ او د الله تعالیٰ

لَا يَتَّقُونَ ﴿٥٦﴾ فَإِمَّا تَثْقَفَنَّهُمْ فِي الْحَرْبِ فَشَرِّدْ بِهِم

پرهیز نهٔ کوی | پس که چرے | ته بیا مومے دوی | په جنګ کښے | نو وزغلوه د دوی په ذریعه (په سزا)

نه ویریږی نهٔ کوی او که ته دوی په جنګ کښے راقابو کړے (نو داسے سزا ورکړه چه) نو دردستی

مَّنْ خَلْفَهُمْ لَعَلَّهُمْ يَذَّكَّرُونَ ﴿٥٧﴾ وَإِمَّا تَخَافَنَّ مِن قَوْمٍ

کوم چه د دوی نه وروستو دی | چه دوی | نصیحت حاصل کړی | او که چرے ته ویریږے | له یو قوم نه

خلق پرے هم وویروه شاید چه د دے نه سبق واخلی. او که د یو قوم نه د خیانت

خِيَانَةً فَانْۢبِذْ اِلَيْهِمْ عَلٰى سَوَآءٍ ۭ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ

دَخيانت | نو وغورځوه | دوی طرف ته | (دَدوی وعده) دَبرابرۍ په بنیاد | بیشکه الله | نهٔ خوښوی

ویره کیږی ، نو هغوی ته معاهده واپس کړه چه برابر شی ، بیشکه خیانت کوونکی دَ خدائے

الْخَآئِنِيْنَ ۝٥٨ ع وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا سَبَقُوْا ۭ اِنَّهُمْ

ع ١٠/٧ ٣

خیانت کوونکی | او دا خیال دِ نهٔ کوی | هغه خلق | چه کافران دی | چه وړاندِ شول | بیشکه دوی

خوښ نهٔ وی | او کافران دِ دا خیال نهٔ کوی چه دوی (زمونږ دَ گرفت نه) تښتیدلی دی، یقیناً دا

لَا يُعْجِزُوْنَ ۝٥٩ وَاَعِدُّوْا لَهُمْ مَّا اسْتَطَعْتُمْ مِّنْ قُوَّةٍ

مونږ عاجزه کولے نهٔ شی | او تاسو تیارسانتئ | دوی دَ پاره | څومره چه تاسو کیدے شی | قوت

خلق (الله تعالیٰ) نهٔ شی عاجزه کولے . او دَ دوی مقابلے له تیارکړئ څومره چه مو وس رسی ،

وَّمِنْ رِّبَاطِ الْخَيْلِ تُرْهِبُوْنَ بِهٖ عَدُوَّ اللّٰهِ وَعَدُوَّكُمْ

او | تیار | آسونه | چه تاسو وویروئ | په هغے سره | دَ الله دُښمنان | او خپل دُښمنان

او تیار تړلی اسونه چه دَ الله تعالیٰ په دُښمنانو او په خپلو دښمنانو باندِ رعب کینوئ

وَاٰخَرِيْنَ مِنْ دُوْنِهِمْ ۚ لَا تَعْلَمُوْنَهُمْ ۚ اَللّٰهُ يَعْلَمُهُمْ ۭ وَمَا تُنْفِقُوْا

او نور خلق | دَ دوی نه علاوه | چه تاسو نهٔ پیژنئ هغوی | هم الله پیژنی هغوی | او څهٔ چه تاسو خرڅ کوئ

او دَ دوی نه علاوه په نورو خلقو چه تاسو ئے نهٔ پیژنئ الله ئے ډیر ښهٔ پیژنی ، او تاسو چه دَ الله تعالیٰ

مِنْ شَيْءٍ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ يُوَفَّ اِلَيْكُمْ وَاَنْتُمْ

له څهٔ څیز نه | په لاره کښے | دَ الله | پوره (اجر) به درکړے شی | تاسو ته | او په تاسو

په لاره کښے څهٔ خرڅ کوئ نو دَ هغے پوره پوره بدله به درکړے شی ، او په تاسو به

لَا تُظْلَمُوْنَ ۝٦٠ وَاِنْ جَنَحُوْا لِلسَّلْمِ فَاجْنَحْ لَهَا وَ

به ظلم نهٔ کیږی | او کهٔ چرے دوی مائله شی | صُلحے طرف ته | نو ته هم مائله شه | دے طرف ته | او

زیاتے نهٔ کیږی . او کهٔ چرے دوی صلح ته مائله شی نو ته هم ورته مائله شه او

تَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ ۭ اِنَّهٗ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ۝٦١ وَاِنْ يُّرِيْدُوْٓا

توکل وکړه | په الله باندِ | بیشکه هم هغه | آوریدونکے | پوهه دے | او کهٔ چرے دوی اراده وکړی

په خدائے توکل وکړه هغه هرڅهٔ آوری په هرڅهٔ پوهه دے . او کهٔ دوئ تا سره

اَنْ يَّخْدَعُوْكَ فَاِنَّ حَسْبَكَ اللّٰهُ ۭ هُوَ الَّذِيْٓ اَيَّدَكَ بِنَصْرِهٖ

چه دوکه درکړی تا ته | نو بیشکه | کافی دے تا له | الله | هم هغه دے کوم چه | قوت درکړو تا ته | په خپل مدد سره

دَ دوکے کولو اراده وکړی نو تا له یوازے خدائے بس دے ، هم دهٔ تا ته په خپل مدد سره او دَ مؤمنانو

وَبِالْمُؤْمِنِيْنَ ۝٦٢ لا وَاَلَّفَ بَيْنَ قُلُوْبِهِمْ ۭ لَوْ اَنْفَقْتَ مَا

او په مؤمنانو سره | او محبت ئے واچولو | دَ دوی په زړونو کښے | کهٔ چرے خرڅ کړے وے تا | هغه څهٔ

په ذریعه قوت درکړو او دَ دوی په زړونو کښے ئے محبت واچولو، کهٔ تا دَ زمکے په مخ موجوده

فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا مَّا أَلَّفْتَ بَيْنَ قُلُوبِهِمْ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ

چه په زمکه کښې دی | ټول | نو اُلفت به نهٔ وُو اچولے تا | په مینځ دَ زړونو دَ دوئی کښې | او لیکن هم الله

ټول مالونه خرچ کړے وے ، نو هم دِ دوئی په زړونو کښې محبت نهٔ شو پیدا کولے ، لیکن الله تعالیٰ

أَلَّفَ بَيْنَهُمْ ۚ إِنَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿٦٣﴾ يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ

محبت واچولو | دَ دوی مینځ کښې | بیشکه هغه | ډیر زبردست | حکمت خاوند دے | اے نبی!

په دوی کښې محبت پیدا کړو ، هغه غالب او دَ حکمت خاوند دے ۔ اے پیغمبره

ع حَسْبُكَ اللَّهُ وَمَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿٦٤﴾ يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ

کافی دے تا دَ پاره | الله | او کوم چه ستا په حکم چلیږی | مؤمنان | اے نبی!

تا دَ پاره الله تعالیٰ او هغه مؤمنان چه تا پسے روان دی کافی دی ۔ اے نبی!

حَرِّضِ الْمُؤْمِنِينَ عَلَى الْقِتَالِ ۚ إِن يَكُن مِّنكُمْ عِشْرُونَ

را اُوچت کړه | مؤمنان | جنګ ته | کهٔ چرے وی | له تاسو نه | شل ٢٠ کسان

مسلمانانو ته دَ جهاد ترغیب ورکړه ، کهٔ په تاسو کښې شل ٢٠ تنه صابره سړی

صَابِرُونَ يَغْلِبُوا مِائَتَيْنِ ۚ وَإِن يَكُن مِّنكُم مِّائَةٌ

صبر کوونکی | نو غالب به شی | په دوه سوه باندِ | او کهٔ چرے وی | له تاسو نه | ١٠٠ سل کسان

وی ــــ نو په دوه سوو (کافرانو) به غالب راشی ، او کهٔ ستاسو سل ١٠٠ سړی دی

يَغْلِبُوا أَلْفًا مِّنَ الَّذِينَ كَفَرُوا بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَفْقَهُونَ ﴿٦٥﴾

نو غالب به شی | په زرو کسانو | له هغو خلقو نه | چه کافران دی | ځکه چه دوی | (دا سے) خلق دی | چه نهٔ پوهیږی

نو دَ کافرانو په زرو کسانو به غالب راشی ، ځکه چه دا (کافران) داسے خلق دی چه نهٔ پوهیږی

الْآنَ خَفَّفَ اللَّهُ عَنكُمْ وَعَلِمَ أَنَّ فِيكُمْ ضَعْفًا

اوس | کم کړو (پیټے) | الله | له تاسو نه | او | هغه پوهه دے | چه | په تاسو کښې | کمزوری ده

اوس الله تعالیٰ ستاسو پیټے سپک کړو ، ولے چه هغه پوهیږی چه په تاسو کښې کمزوری ده

فَإِن يَكُن مِّنكُم مِّائَةٌ صَابِرَةٌ يَغْلِبُوا مِائَتَيْنِ

پس کهٔ چرے وی | له تاسو نه | یو سل | صبر کوونکی | نو دوی به غالب وی | په دوه سوو

نو کهٔ په تاسو کښې سل تنه صابره سړی وی ، نو په دوه سوو باندِ به غالب راشی

وَإِن يَكُن مِّنكُمْ أَلْفٌ يَغْلِبُوا أَلْفَيْنِ بِإِذْنِ اللَّهِ ۗ وَاللَّهُ

او کهٔ چرے وی | له تاسو نه | یو زر | نو غالب به وی | په دوه زرو باندِ | دَ الله په حکم | او الله

او کهٔ په تاسو کښې زر تنه وی نو دَ الله تعالیٰ په حکم به په دوه زرو باندِ غلبه بیاموی او الله

مَعَ الصَّابِرِينَ ﴿٦٦﴾ مَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَن يَكُونَ لَهُ أَسْرَىٰ

سره | دَ صابرانو دے | نهٔ دی مناسب | نبی له | چه وی دَ هغهٔ سره | قیدیان

دَ صابرانو ملګرے دے ۔ یو نبی له دا مناسب نهٔ دی چه هغهٔ سره دِ قیدیان پاتے شی

حَتّٰى يُثْخِنَ فِى الْاَرْضِ ؕ تُرِيْدُوْنَ عَرَضَ الدُّنْيَا ۖۗ

تردے چه | غلبه بیامومی | په زمکه کښے | تاسو غواړئ | مال | دَ دنیا

ترڅو چه هغه په وطن کښے دُښمن نابُود نهٔ کړی ، تاسو خو دَ دنیا مال متاع غواړئ

وَاللّٰهُ يُرِيْدُ الْاٰخِرَةَ ؕ وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿٦٧﴾ لَوْلَا كِتٰبٌ

او الله | غواړی | آخرت | او الله دے | ډیر زبردست | دَ حکمت خاوند | کهٔ نهٔ وے | لیکلے شوے (حکم)

او الله ستاسو دَ آخرت فائدے غواړی او الله تعالیٰ غالب او دَ حکمتونو خاوند دے. کهٔ دَ الله تعالیٰ لیک

مِّنَ اللّٰهِ سَبَقَ لَمَسَّكُمْ فِيْمَآ اَخَذْتُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ﴿٦٨﴾

دَ الله | دَ وړاندِ نه | نو ضرور به رسیدلے وو | په دے باره کښے | چه واخستلهٔ تاسو (فدیه) | عذاب | لوئے

وړومبے نهٔ وے مقدر شوے ، نو تاسو ته به په دے اخستی مال لوئے عذاب درکړے شوے وو.

فَكُلُوْا مِمَّا غَنِمْتُمْ حَلٰلًا طَيِّبًا ۖ وَّاتَّقُوا اللّٰهَ ؕ

پس خورئ | له هغهٔ نه چه | په غنیمت واخستلو تاسو | حلال پاک مال | او ویریږئ | له الله نه

نو څهٔ چه تاسو ته دَ غنیمت په مالی کښے ملاؤ شوی دی هغه حلال او پاک گنړئ او خورئ ـ او دَ الله تعالیٰ نه ویره کوئ

اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿٦٩﴾ يٰۤاَيُّهَا النَّبِىُّ قُلْ لِّمَنْ فِىْۤ اَيْدِيْكُمْ

بیشکه الله | بخښونکے | مهربان دے | اے نبی ! | ووایه | هغه چانه چه | ستاسو په لاسونو کښے دی

بیشکه الله تعالیٰ بخښونکے مهربان دے. اے پیغمبره ! ستاسو په قبضه کښے چه کوم قیدیان دی

مِّنَ الْاَسْرٰٓى ۙ اِنْ يَّعْلَمِ اللّٰهُ فِىْ قُلُوْبِكُمْ خَيْرًا يُّؤْتِكُمْ خَيْرًا

له قیدیانو نه | کهٔ چرے وپیژنی | الله | ستاسو په زړونو کښے | نیکی | نو تاسو له به درکړی | ډیر بهتر

هغوی ته ووایه که الله تعالیٰ ته معلومه شی چه ستاسو په زړونو کښے خیر دے نو تاسو له به دَ هغے نه بهتر

مِّمَّآ اُخِذَ مِنْكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ؕ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿٧٠﴾

له هغهٔ نه چه واخستلے شول | له تاسو نه | او معاف به کړی | تاسو | او الله | بخښونکے | مهربان دے

(مال) درکړی کوم چه تاسو نه اخستے شوے دے او ستاسو گناهونه به وُبخښی او الله تعالیٰ بخښونکے مهربان دے.

وَاِنْ يُّرِيْدُوْا خِيَانَتَكَ فَقَدْ خَانُوا اللّٰهَ مِنْ قَبْلُ

او کهٔ چرے دوی اراده وکړی | تا سره دَ خیانت کولو | نو دوی خیانت کړے دے | دَ الله سره | له دے نه وړاندِ (هم)

خو کهٔ دوئ تا سره خیانت کول غواړی نو له دِے نه وړاندے ئے دَ الله تعالیٰ سره خیانت کړے وو

فَاَمْكَنَ مِنْهُمْ ؕ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ﴿٧١﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ

بیا هغهٔ قابو درکړو (تاته) | په دوی باندِ | او الله | پوهه | دَ حکمت خاوند دے | بیشکه هغه خلق چه

نو الله تعالیٰ ستاسو په لاس گرفتار کړل او الله تعالیٰ په هرڅهٔ پوهه دَ حکمت خاوند دے ـ بیشکه چا چه ایمان

اٰمَنُوْا وَهَاجَرُوْا وَجٰهَدُوْا بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ فِىْ سَبِيْلِ

ایمان ئے راوړے دے | او هجرت ئے وکړو | او جهاد ئے وکړو | په مالونو خپلو | او په ځانونو خپلو سره | په لاره کښے

راوړے دے او هجرت ئے کړے دے او دَ الله تعالیٰ په لاره کښے ئے په خپل سر و مال سره جهاد

اللّٰهِ وَالَّذِيْنَ اٰوَوْا وَّنَصَرُوْٓا اُولٰٓئِكَ بَعْضُهُمْ اَوْلِيَآءُ

دَ الله | او هغه خلقو چه | پناه ئے ورکړه | او مدد ئے ؤکړو | هم دا خلق دی | (چه) ځنې له دوئی نه وارثان دی | رښتینی دوستان

کړے دے او چا چه هغوی له ځائے ورکړے دے او دَ هغوی امداد ئے کړے دے ، دغه ټول خلق دَ یو بل ملګری او

بَعْضٍ ۘ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَلَمْ يُهَاجِرُوْا مَا لَكُمْ مِّنْ وَّلَايَتِهِمْ

دَ ځنو | او هغه خلقو چه | ایمان ئے راوړو | او هجرت ئے ونه کړو | نشته دے تاسو له | دَ دوی له وراثت نه

رښتینی دوستان دی او چا چه ایمان راوړے دے او هجرت ئے نه دے کړے ، هغوی سره ستاسو دَ ښپلوئ هیڅ

مِّنْ شَيْءٍ حَتّٰى يُهَاجِرُوْا ۚ وَاِنِ اسْتَنْصَرُوْكُمْ فِي الدِّيْنِ

هیڅ څیز | ترڅو چه | دوی هجرت وکړی | او که چرے | دوی مدد د وغواړی له تاسو نه | دَ دین په باره کښې

تعلق نشته ، ترڅو چه هجرت ونه کړی ، او که هغوی دَ دین په معامله کښې تاسو نه امداد وغواړی

فَعَلَيْكُمُ النَّصْرُ اِلَّا عَلٰى قَوْمٍ ۢ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ مِّيْثَاقٌ ؕ

نو تاسو باندې لازم دی | مدد کول | مګر په هغه قوم | چه ستاسو په مینځ کښې | او دَ هغوی په مینځ کښې | معاهده وی

نو مدد ورکول په تاسو فرض دی خو دَ داسے قوم خلاف نه چه ستاسو او دَ هغوی ترمینځه معاهده وی

وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ٧٢ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا بَعْضُهُمْ اَوْلِيَآءُ

او الله | هغه څه ته | چه تاسو کوئی | ګوری | او کوم خلق چه | کافران دی | ځنې له دوی نه | وارثان دی

او (پادشاهئ) چه الله تعالیٰ ستاسو عملونه ګوری وینی ۔ او څوک چه کافران دی هغوی په خپل مینځ کښې دوستان

بَعْضٍ ۘ اِلَّا تَفْعَلُوْهُ تَكُنْ فِتْنَةٌ فِي الْاَرْضِ وَفَسَادٌ كَبِيْرٌ ٧٣

دَ ځنو | که چرے تاسو دا ونه کړئ | نو وی به | فتنه | په زمکه کښې | او فساد | ډیر لوئے ۔

او وارثان دی ، که چرے تاسو په دے حکمونو عمل ونه کړو نو په ملک کښې به غټه فتنه او ډیر لوئے فساد جوړ شی ۔

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَهَاجَرُوْا وَجٰهَدُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ

او هغه خلق | چه ایمان ئے راوړو | او هجرت ئے وکړو | او جهاد ئے وکړو | په لاره کښې | دَ الله

او چا چه ایمان راوړے دے او هجرت ئے کړے دے او دَ الله تعالیٰ په لاره کښې ئے جهاد کړے دے

وَالَّذِيْنَ اٰوَوْا وَّنَصَرُوْٓا اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُؤْمِنُوْنَ حَقًّا ؕ

او کوم خلقو چه | ځائے ورکړو | او مدد ئے وکړو | هم دوی دی | مؤمنان | رښتینی

او چا چه هغوی له ځائے ورکړے دے او دَ هغوی مدد ئے کړے دے ، دَ غه کسان ټول په حقه مؤمنان دی ۔

لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّرِزْقٌ كَرِيْمٌ ٧٤ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْ بَعْدُ

دوی له ده | بخښنه | او روزی | دَ عزت | او کوم خلقو چه | ایمان راوړو | پس له دے نه

هغوی له بخښنه او دَ عزت روزی ده ۔ او چا چه په وروستو ورځو کښې ایمان راوړو او

وَهَاجَرُوْا وَجٰهَدُوْا مَعَكُمْ فَاُولٰٓئِكَ مِنْكُمْ ؕ وَاُولُوا الْاَرْحَامِ

او هجرت ئے وکړو | او جهاد ئے وکړو | ستاسو په ملګرتیا کښې | هغوی هم له تاسو نه دی | او نزدے خپلوان

هجرت ئے وکړو او ستاسو په ملګرتیا کښې ئے جهاد وکړو نو هغوی هم تاسو سره شمیر شول ، خو د وینے رشته دار

بَعْضُهُمْ اَوْلٰى بِبَعْضٍ فِيْ كِتٰبِ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ﴿٧٥﴾ ع

ځينې له دوی نه | زيات حقدار دي | د خنو | د الله په كتاب كښې | بيشكه الله | هر څيز | ښه پيژني.

د خدائے په كتاب كښې د يو بل نه زيات حقدار دی ، بيشكه الله تعالیٰ په هر څه ښه پوهه دے۔

سُوْرَةُ التَّوْبَةِ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ مِائَةٌ وَّتِسْعٌ وَّعِشْرُوْنَ اٰيَةً وَّسِتَّةَ عَشَرَ رُكُوْعًا

سورة توبه په مدينه كښې نازل شوې او په دې كښې يو سل يوكم ديرش آيتونه او شپاړس ركوع ګلنې دی

سورهٔ توبه مدنی دے او دَ دے يو سل يوكم ديرش آيتونه او شپاړس ركوع ګلنے دی

بَرَآءَةٌ مِّنَ اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖٓ اِلَى الَّذِيْنَ عٰهَدْتُّمْ

د بيزارئ اعلان دے | د الله او د هٔ د رسول د طرف نه | هغو خلقو طرف ته | (كوم سره چه) تاسو وعده كړې ده

(اے مؤمنانو!) د بيزارئ اعلان دے د خدائے او د رسول د طرف ته هغه مشركانو ته چه تاسو ورسره

مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿١﴾ فَسِيْحُوْا فِي الْاَرْضِ اَرْبَعَةَ اَشْهُرٍ وَّاعْلَمُوْٓا

له مشركانو نه | پس وګرځئ تاسو | په زمكه كښې | څلور | مياشتې | او پوهه شئ

معاهده كړې وه ـ نو (ورته ووايه چه) تاسو په دے ملک كښې څلور مياشتے نور وګرځئ او دا يقين

اَنَّكُمْ غَيْرُ مُعْجِزِي اللّٰهِ ۙ وَاَنَّ اللّٰهَ مُخْزِي الْكٰفِرِيْنَ ﴿٢﴾

چه تاسو | نهٔ يئ عاجزه كوونكی | د الله | او دا چه | الله | رُسوا كوونكے دے | د كافرانو

وُساتئ چه تاسو خدائے عاجزه كولے نهٔ شئ او دا چه الله تعالیٰ به كافران (ضرور) رسوا كوی

وَاَذَانٌ مِّنَ اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖٓ اِلَى النَّاسِ يَوْمَ الْحَجِّ الْاَكْبَرِ اَنَّ اللّٰهَ

او اعلان دے | د الله او د هٔ د رسول د طرفه | ټولو خلقو ته | په ورځ | د لوئے حج | چه بيشكه الله

او د الله تعالیٰ او د هٔ د رسول د طرف نه په خلقو كښې د حج اكبر په ورځ اعلان وكړه چه الله تعالیٰ

بَرِيْٓءٌ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ ۙ۬ وَرَسُوْلُهٗ ؕ فَاِنْ تُبْتُمْ فَهُوَ خَيْرٌ

بيزاره دے | له مشركانو نه | او د هغهٔ رسول (هم) | پس كهٔ چرے تاسو توبه وكړئ | نو دا | به ډيره ښهٔ وی

او د هٔ رسول د مشركانو نه بيزاره دے ، نو كهٔ تاسو (د كفر او شرك نه) توبه وكړه نو دا تاسو

لَّكُمْ ۚ وَاِنْ تَوَلَّيْتُمْ فَاعْلَمُوْٓا اَنَّكُمْ غَيْرُ مُعْجِزِي اللّٰهِ ؕ

تاسو د پاره | او كهٔ چرے | مخ وګرځوئ | نو پوهه شئ | چه تاسو | نهٔ يئ عاجزه كوونكی | د الله

له ډيره ښهٔ ده او كهٔ چرے ومو نهٔ منله نو ياد ساتئ چه تاسو الله تعالیٰ عاجزه كولے نهٔ شئ

وَبَشِّرِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِعَذَابٍ اَلِيْمٍ ﴿٣﴾ اِلَّا الَّذِيْنَ

او زيرے وركړه | هغه خلقو ته | چه كافران دی | د عذاب | دردناک | مګر هغه كوم سره چه

او كافرانو ته د يو دردناک عذاب زيرے وركړه ـ خو هغه مشركان چه تاسو

عٰهَدْتُّمْ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ ثُمَّ لَمْ يَنْقُصُوْكُمْ شَيْـًٔا وَّلَمْ يُظَاهِرُوْا

تاسو معاهده كړې ده | له مشركانو نه | بيا هغوی تاسو سره كمے ونهٔ كړو | لږ هم | او نهٔ هغوی مدد كړه

ورسره معاهده كړے ده بيا هغوی په معاهده كښې تاسو سره كوتاهی نهٔ ده كړے او ستاسو په مقابله كښې

عَلَيْكُمْ اَحَدًا فَاَتِمُّوْٓا اِلَيْهِمْ عَهْدَهُمْ اِلٰى مُدَّتِهِمْ ؕ

ستاسو خلاف | دَ چا | پس پوره کړئ | دَ دوی سره | دَ دوی معاهده | دَ دوی مقرره مودې پورې

ئې چا ته امداد نه دے ورکړے ، نو هغوی سره خپله وعده تر نیټې پورے پوره کړئ ،

اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِيْنَ ④ فَاِذَا انْسَلَخَ الْاَشْهُرُ الْحُرُمُ

بیشکه الله | خوښوی | پرهیزګاران | بیا هر کله چه | تیرے شی | میاشتې | دَ احترام

بیشکه پرهیزګاره خلق دَ الله تعالیٰ ډیر خوښ دی ، نو هر کله چه دَ حرمت میاشتې تیرے شی

فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِيْنَ حَيْثُ وَجَدْتُّمُوْهُمْ وَ خُذُوْهُمْ

نو وژنئ | مشرکان | په کوم ځائے کښې چه | بیا مومئ دوی | او نیسئ دوی

نو کوم ځائے چه مشرکان بیا مومئ دوی وژنئ ، او دوی نیسئ او

وَاحْصُرُوْهُمْ وَاقْعُدُوْا لَهُمْ كُلَّ مَرْصَدٍ ۚ فَاِنْ تَابُوْا

او راګیر کړئ دوی | او کښینئ | دوی ته | په هره موقع کښې | پس که چرے | دوی توبه وکړی

راګیر وئ ئے ، او دَ هرے موقعے په ځائے ورته (پټ) کښینئ نو که چرے توبه ئے وویستله

وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتَوُا الزَّكٰوةَ فَخَلُّوْا سَبِيْلَهُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ

او قائم کړی | مونځ | او ورکوی | زکوٰة | نو پریږدئ | دَ دوی لاره | بیشکه الله

او (پابندئ سره) مونځونه کوی او زکوٰة ورکوی نو بیا دَ دوی مخه آزاده کړئ ، بیشکه الله تعالیٰ

غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ⑤ وَاِنْ اَحَدٌ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ اسْتَجَارَكَ

بخښونکے | مهربان دے | او که چرے یو کس | له مشرکانو نه | پناه وغواړی له تا نه

بخښونکے مهربان دے ۔ او که په مشرکانو کښې یو کس له تا نه پناه وغوښتله نو ته ورته

فَاَجِرْهُ حَتّٰى يَسْمَعَ كَلٰمَ اللّٰهِ ثُمَّ اَبْلِغْهُ مَاْمَنَهٗ ؕ ذٰلِكَ

نو پناه ورکړه هغه ته | تر دے چه | هغه واوری | کلام دَ الله | بیا ورسوه هغه | دَ هغه دَ امن ځائے ته | دا

پناه ورکړه ، تر دے چه هغه دَ الله تعالیٰ کلام واوری ، بیا ئے خپل دَ امن ځائے ته ورسوه دا ځکه

بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَعْلَمُوْنَ ⑥ كَيْفَ يَكُوْنُ لِلْمُشْرِكِيْنَ

ځکه چه دوی | داسے خلق دی | چه نه پوهیږی | څنګه کیدے شی (معتبره) | دَ مشرکینو

چه دوی داسے خلق دی چه دوی نه (دَ الله دَ حکمونو) علم نشته ۔ الله تعالیٰ او دَ دهٔ دَ رسول په نزد دَ

عَهْدٌ عِنْدَ اللّٰهِ وَعِنْدَ رَسُوْلِهٖٓ اِلَّا الَّذِيْنَ عٰهَدْتُّمْ

وعده | په نزد | دَ الله | او په نزد | دَ رسول دَ دهٔ | سوا دَ هغو خلقو نه | چه تاسو سره معاهده کړې

مشرکانو وعده څنګه معتبره کیدے شی (هر کله چه دوی داپخپله مات کړله) سوا دَ هغو خلقو نه کوم سره چه

عِنْدَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۚ فَمَا اسْتَقَامُوْا لَكُمْ فَاسْتَقِيْمُوْا

په خوا دَ مسجد حرام کښې | پس تر څو پورے چه دوی (په وعده) قائم وی | تاسو سره | نو تاسو هم قائم وسئ

تاسو دَ مسجد حرام په خوا کښې معاهده کړے وه ، نو تر څو چه دوی تاسو سره په خپل اقرار باندې قائم وی تاسو هم ددې

لَهُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِيْنَ ﴿۷﴾ كَيْفَ وَاِنْ

دوی دَپاره | بیشکه الله | خوښوی | پرهیزګاران | څنګه (معتبر کیدے شی) | حال دا دے که چیرے

دَپاره په خپل اقرار قائم وسیږئ ځکه چه پرهیزګار خلق دَالله خوښ وی ۔ (او دَ دوئ نه سوا) نورو کافرانو سره معاهده

يَّظْهَرُوْا عَلَيْكُمْ لَا يَرْقُبُوْا فِيْكُمْ اِلًّا وَّلَا ذِمَّةً ؕ

دوی غلبه بیاموی | په تاسو باندې | نو لحاظ به نهٔ کوی | ستاسو په حقله | دَ رشتے | او نهٔ دَ معاهدے

څنګه باقی پاتے کیدے شی، حال دا چه که قابو ئے درباندې بیاموند و نو نهٔ به دَ خپلولئ خیال وساتی او نهٔ دَ معاهدے

يُرْضُوْنَكُمْ بِاَفْوَاهِهِمْ وَتَاْبٰى قُلُوْبُهُمْ ۚ وَاَكْثَرُهُمْ

دوی راضی کوی تاسو | په خپلو خُلو سره | او انکار کوی | دَ دوی زړونه | او اکثر له دوی نه

دوی تاسو تش دَ خُلے په خیر و خوشحالوی او زړونه ئے انکار کوی ، او په دوی کښے اکثر خلق

فٰسِقُوْنَ ﴿۸﴾ اِشْتَرَوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ ثَمَنًا قَلِيْلًا فَصَدُّوْا

نافرمان (دی) | واخستو دوی | په بدل دَ آیتونو دَ الله | قیمت | لږ | بیا منع ئے کړل (خلق)

فاسقان دی ۔ دوی دَ الله تعالیٰ دَ حکمونو په بدل کښے ډیر لږ قیمت قبول کړے دے ، پس دوی خلق

عَنْ سَبِيْلِهٖ ؕ اِنَّهُمْ سَآءَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۹﴾ لَا يَرْقُبُوْنَ

دَ هغهٔ دَ لارے نه | بیشکه ډیر خراب کار وو | چه دوی | به کولو | دوی لحاظ نهٔ کوی

دَ هغهٔ دَ لارے نه منع کوی، بیشکه دوی ډیر خراب کار کولو ۔ دَ یو مؤمن په حقله

فِيْ مُؤْمِنٍ اِلًّا وَّلَا ذِمَّةً ؕ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُعْتَدُوْنَ ﴿۱۰﴾

دَ مؤمن په باره کښے | دَ رشتے | او نهٔ | دَ وعدے | او هم دغه دی | له حد نه تیریدونکی

دوئ نهٔ دَ خپلوئ څهٔ خیال ساتی او نهٔ دَ معاهدے ، او دا خلق ډیر سرکشه دی

فَاِنْ تَابُوْا وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتَوُا الزَّكٰوةَ فَاِخْوَانُكُمْ

پس که چیرے | دوی توبه وکړی | او قائم کړی | مونځ | او ورکړی | زکوٰة | نو دوی ستاسو ورونړه دی

نو که دوی توبه وباسی ، او مونځونه کوی ، او زکوٰة ورکوی نو بیا خو ستاسو دَ دین

فِى الدِّيْنِ ؕ وَنُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ ﴿۱۱﴾ وَ

په دین کښے | او مونږ واضحه کوو | آیتونه | هغه خلقو دَ پاره | چه پوهیږی | او

ورونړه دی او مونږ دَ پوهه خلقو دَ پاره خپل حکمونه واضحه پیش کوو ۔ او

اِنْ نَّكَثُوْٓا اَيْمَانَهُمْ مِّنْ بَعْدِ عَهْدِهِمْ وَطَعَنُوْا فِيْ دِيْنِكُمْ

که چیرے دوی مات کړی | خپل قسمونه | پس دَ خپلے وعدے کولو نه | او عیبونه وباسی | ستاسو په دین کښے

که دَ وعدے کولو نه پس دوی خپل قسمونه مات کړی او ستاسو په دین کښے عیبونه راوباسی

فَقَاتِلُوْٓا اَئِمَّةَ الْكُفْرِ ۙ اِنَّهُمْ لَآ اَيْمَانَ لَهُمْ لَعَلَّهُمْ يَنْتَهُوْنَ ﴿۱۲﴾

نو جنګ کوئ | دَ کفر دَ پیشوایانو سره | بیشکه نهٔ دی (معتبر) دَ دوی قسمونه | کیدے شی چه دوی | را منع شی

نو دَ کفر سردارانو سره جنګ وکړئ دَ دوئ قسمونه څهٔ قسمونه نهٔ دی چه دوی (دَ خپلو شرارتونو نه) منع شی

اَلَا تُقَاتِلُوْنَ قَوْمًا نَّكَثُوْٓا اَيْمَانَهُمْ وَهَمُّوْا
آیا جنګ نهٔ کوئ تاسو | هغه خلقو سره | چه مات ئې کړل | خپل قسمونه | او اراده کړې وه دوی
آیا تاسو به داسې خلقو سره هم نهٔ جنګیږئ کوم چه خپل قسمونه مات کړل او دَ خپل پیغمبر
بِاِخْرَاجِ الرَّسُوْلِ وَهُمْ بَدَءُوْكُمْ اَوَّلَ مَرَّةٍ
دَ ویستلو | دَ رسول | او دوئ | جګړه شروع کړې وه تاسو سره | په اوَمبي ځل
دَ جلاوطنئ اراده ئې وکړه او هم دوئ تاسو سره (دَ دښمنئ) شروع کړې ده،
اَتَخْشَوْنَهُمْ ج فَاللّٰهُ اَحَقُّ اَنْ تَخْشَوْهُ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ⑬
آیا تاسو ویریږئ له دوئ نه | پس الله | زیات حقدار دے | چه | تاسو ویریږئ هغهٔ نه | که چرے تاسو یئ | مؤمنان
آیا تاسو دَ دوئ نه ویریږئ؟ نو (واورئ) الله تعالیٰ زیات حق لری چه تاسو ترے نه ویریږئ که تاسو مؤمنان یئ
قَاتِلُوْهُمْ يُعَذِّبْهُمُ اللّٰهُ بِاَيْدِيْكُمْ وَيُخْزِهِمْ وَ
جنګ وکړئ دوی سره | چه عذاب ورکړی دوئ ته | الله | ستاسو په لاسونو | او رسوا کړی دوی | او
دوی سره جنګیږئ، الله تعالیٰ به ستاسو په لاس دوی ته سزا ورکړی او رُسوا به ئې کړی او
يَنْصُرْكُمْ عَلَيْهِمْ وَيَشْفِ صُدُوْرَ قَوْمٍ مُّؤْمِنِيْنَ ⑭ لا
فتح درکړی تاسو ته | په دوی باندې | او یخ کړی | سینې | دَ مؤمنانو خلقو
دَ دوی په مقابله کښې به ستاسو امداد وکړی او دَ مؤمنانو خلقو سینې به یخې کړی
وَيُذْهِبْ غَيْظَ قُلُوْبِهِمْ ط وَيَتُوْبُ اللّٰهُ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ ط
او لرے کړی | غصه | دَ دوی دَ زړونو | او توبه قبلوی الله | دَ چا چه غواړی
او دَ دوی دَ زړونو غصه به لرے کړی ، او الله تعالیٰ دَ چا چه وغواړی توبه قبوله کړی
وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ⑮ اَمْ حَسِبْتُمْ اَنْ تُتْرَكُوْا
او الله | پوهه | دَ حکمت خاوند دے | آیا ګمان کوئ تاسو | چه | تاسو به هم داسې پریښودې شئ
او الله تعالیٰ (په هر څیز) پوهه او حکمت خاوند دے آیا ستاسو دا خیال دے چه تاسو به پریښودے شئ
وَلَمَّا يَعْلَمِ اللّٰهُ الَّذِيْنَ جٰهَدُوْا مِنْكُمْ وَلَمْ يَتَّخِذُوْا
حال دا دے چه لا نهٔ دی معلوم کړی | الله | هغه کسان | چه جهاد ئې وکړو | له تاسو نه | او نهٔ دے نیولے دوی
حال دا دے چه الله تعالیٰ خو لا دا نهٔ دی معلوم کړی چه په تاسو کښې چا جهاد وکړو او دَ الله تعالیٰ او دَ
مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلَا رَسُوْلِهٖ وَلَا الْمُؤْمِنِيْنَ وَلِيْجَةً ط
بے له خدائے نه | او نهٔ دَ دهٔ دَ رسول نه | او نهٔ دَ مؤمنانو نه | څوک دَ راز دوست
هغهٔ دَ رسول او دَ مؤمنانو نه بغیر نور دوستان ئې وَنهٔ نیول.
ع ١٠/٢ ٨ وَاللّٰهُ خَبِيْرٌ م بِمَا تَعْمَلُوْنَ ⑯ ع مَا كَانَ لِلْمُشْرِكِيْنَ
او الله | ښهٔ خبردار دے | دَ هغه څهٔ نه | چه تاسو ئې کوئ | نهٔ دے (حق) | دَ مشرکانو
او الله تعالیٰ ستاسو په ټولو کارونو ښهٔ خبردار دے. دَ مشرکانو هډو دا حق نهٔ رسی

أَنْ يَّعْمُرُوْا مَسٰجِدَ اللّٰهِ شٰهِدِيْنَ عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ بِالْكُفْرِ ط

چه | آبادکړی | جوماتونه | دَ الله | چه شهادت ورکوونکی دی | په خپلو ځانونو | دَ کفر

چه دَ الله تعالیٰ جماتونه دِ آباد کړی ، په داسے حال کښے چه دَ خپل کفر اقرار (هم) کوی

اُولٰٓئِكَ حَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ ۚ وَفِي النَّارِ هُمْ خٰلِدُوْنَ ﴿۱۷﴾

هم دا خلق دی | چه ضائع شول | دَ دوی عملونه | او په دوزخ کښے به دوی | همیشه وُسیږی

دا هغه خلق دی دَ کومو عملونه چه برباد شول او په اور کښے دوی له همیشه اُوسیدل دی

اِنَّمَا يَعْمُرُ مَسٰجِدَ اللّٰهِ مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ

بیشکه | چه آبادَوی | جوماتونه دَ الله | هغه څوک چه | ایمان ئے راوړو په الله | او په ورځ | دَ آخرت

دَ الله تعالیٰ جوماتونه صرف هغه خلق آبادَولے شی چه په الله تعالیٰ باندِ او په ورځ دَ آخرت باندِ ایمان لری

وَاَقَامَ الصَّلٰوةَ وَاٰتَى الزَّكٰوةَ وَلَمْ يَخْشَ اِلَّا اللّٰهَ قف

او قائم ئے کړو | مونځ | او ورئے کړو زکوٰة | او وُنهٔ ویریدو | مګر | دَ الله نه

او دَ مونځ پابندی کوی او زکوٰة ورکوی او بے خدائے نه دَ بل هیچا نه نهٔ ویریږی

فَعَسٰٓى اُولٰٓئِكَ اَنْ يَّكُوْنُوْا مِنَ الْمُهْتَدِيْنَ ﴿۱۸﴾ اَجَعَلْتُمْ

پس اُمید دے | چه هم دغه خلق | به وی | سمه لار موندونکی | آیا کړځولی دِ تاسو

نو اُمید دے چه دغه خلق به دَ هدایت موندونکو نه وی . آیا تاسو په

سِقَايَةَ الْحَآجِّ وَعِمَارَةَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ كَمَنْ

اُوبهٔ څښول | حاجیانو ته | او آباد ساتل | دَ مسجد حرام | په شان دَ عمل دَ هغه چا

حاجیانو باندِ اُوبهٔ څښول او دَ مسجد حرام آباد ساتل دَ هغه چا دَ کارونو برابر ګڼړئ

اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَجٰهَدَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ط

چه ایمان ئے راوړو په الله | او په ورځ | دَ آخرت | او جهاد ئے وکړو | په لاره کښے | دَ الله

چه په الله تعالیٰ او په آخرت باندِ ایمان لری او دَ الله تعالیٰ په لاره کښے جهاد کوی

لَا يَسْتَوٗنَ عِنْدَ اللّٰهِ ط وَاللّٰهُ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۹﴾ وقف لازم

نهٔ دی برابر دوی | په نزد دَ الله | او الله | لاره نهٔ ښائی | ظالمانو خلقو ته

دَ الله تعالیٰ په نزد خو دوی برابر نهٔ دی ، او الله تعالیٰ ظالمانو ته دَ سمے لارے پوهه نهٔ ورکوی

اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَهَاجَرُوْا وَجٰهَدُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ

کوم خلق چه | ایمان راوړو | او هجرت ئے وکړو | او جهاد ئے وکړو | په لاره کښے | دَ الله

هغه خلق چه ایمان ئے راوړو او هجرت ئے وکړو او دَ الله تعالیٰ په لاره کښے ئے په خپلو

بِاَمْوَالِهِمْ وَ اَنْفُسِهِمْ لا اَعْظَمُ دَرَجَةً عِنْدَ اللّٰهِ ط

په خپلو مالونو | او | په خپلو ځانونو سره | ډیر لوئے دی | په درجه کښے | په نزد دَ الله

مالونو او ځانونو سره جهاد وکړو (دَ دوی) درجے دَ الله تعالیٰ په نزد ډیرے لوئے دی

وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْفَآئِزُوْنَ ⑳ يُبَشِّرُهُمْ رَبُّهُمْ بِرَحْمَةٍ مِّنْهُ

او هم دا خلق دی | کامیاب | زیرے ورکوی دوی ته | دَ دوی رب | دَ خپل رحمت

او هم دغه کسان کامیاب دی۔ دوی له خدائے دَ خپل رحمت او دَ

وَ رِضْوَانٍ وَّجَنّٰتٍ لَّهُمْ فِيْهَا نَعِيْمٌ مُّقِيْمٌ ㉑

او دَ رضامندئ | او دَ باغونو | په کومو کښے چه دَ دوی دَپاره | نعمت دے | همیشه

خپلے رضامندئ او دَ جنتونو زیرے ورکوی چه په دے کښے دَ دوی دَپاره دائمی نعمتونه موجود ی

خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ؕ اِنَّ اللّٰهَ عِنْدَهٗٓ اَجْرٌ عَظِيْمٌ ㉒

همیشه به وی | په هغے کښے | تل دَپاره | بیشکه الله سره دے | اجر | ډیر لوئے

دوی به په دے کښے همیشه وُسیږی، بیشکه الله تعالیٰ سره ډیر لوئے اجر دے.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوْٓا اٰبَآءَكُمْ وَاِخْوَانَكُمْ اَوْلِيَآءَ

اے دَ ایمان خاوندانو | مه نیسئ | خپل پلاران | او خپل ورونړه | دوستان

اے مؤمنانو! تاسو خپل پلاران او خپل ورونړه هم مه ملګری کوئ

اِنِ اسْتَحَبُّوا الْكُفْرَ عَلَى الْاِيْمَانِ ؕ وَمَنْ يَّتَوَلَّهُمْ

کهٔ چرے دوی خوښ کړی | کفر | په ایمان | او څوک چه | دوستان ونیسی دوی لره

کهٔ چرے دوی دَ ایمان په مقابله کښے کفر خوښ کړے وی، او په تاسو کښے چه څوک دوی

مِّنْكُمْ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ㉓ قُلْ اِنْ كَانَ اٰبَآؤُكُمْ

له تاسو نه | نو هم دا خلق دی | ظالمان | وُوایه | کهٔ چرے وی | پلاران ستاسو

سره ملګرتیا کوی نو هم دغه خلق ظالمان دی۔ (اے پیغمبره!) او وایه کهٔ ستاسو پلاران او ستاسو

وَاَبْنَآؤُكُمْ وَاِخْوَانُكُمْ وَاَزْوَاجُكُمْ وَعَشِيْرَتُكُمْ وَاَمْوَالُ ِۨ

او ځامن ستاسو | او ورونړه ستاسو | او ښځے ستاسو | او خپلوان ستاسو | او هغه مالونه

ځامن او ستاسو ورونړه او ستاسو ښځے او ستاسو نور خپلوان او هغه مالونه چه

اقْتَرَفْتُمُوْهَا وَتِجَارَةٌ تَخْشَوْنَ كَسَادَهَا وَمَسٰكِنُ

چه تاسو ګټلی دی | او تجارت | چه تاسو ویریږئ | دَ هغے دَ نقصان نه | او دا وسیلې کورونه

تاسو ګټلی دی، او هغه سوداګری چه تاسو سره ئے دَ بازار دَ سړیدو ویره دی او ستاسو دَ

تَرْضَوْنَهَآ اَحَبَّ اِلَيْكُمْ مِّنَ اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَجِهَادٍ

کوم چه خوښوئ تاسو | زیات خوښ | تاسو ته | دَ الله | او دَ دهٔ دَ رسول | او دَ جهاد نه

خوښے کورونه، تاسو ته دَ الله تعالیٰ او دَ رسول نه او دَ دهٔ په لاره کښے دَ جهاد کولو

فِيْ سَبِيْلِهٖ فَتَرَبَّصُوْا حَتّٰى يَاْتِيَ اللّٰهُ بِاَمْرِهٖ ؕ

دَ دهٔ په لاره کښے | نو انتظار وکړئ | تر دے چه | راوړی | الله | خپل حکم

نه غوره ښکاری نو انتظار وکړئ تر دے چه الله تعالیٰ خپل حکم راولیږی.

وَاللّٰهُ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الْفٰسِقِيْنَ ﴿٢٤﴾ لَقَدْ نَصَرَكُمُ ٣ ع ٨ ٩

او الله | لار نۀ ښائ | هغو خلقوته | چه نافرمان دی | بيشکه | مدد کړے دے ستاسو

او الله تعالیٰ فاسقانو خلقو ته لار نۀ ښائ . الله تعالیٰ په ډيرو موقعو کښے

اللّٰهُ فِىْ مَوَاطِنَ كَثِيْرَةٍ ۙ وَّيَوْمَ حُنَيْنٍ ۙ اِذْ اَعْجَبَتْكُمْ

الله | په ډيرو موقعو کښے | او په ورځ دَ حُنين | هرکله چه | په تعجّب کښے اچولی وٰ تاسو

ستاسو امداد کړے دے . او دَ حنين په ورځ (ئے هم کړے دے)، په دغه ورځ تاسو په خپل

كَثْرَتُكُمْ فَلَمْ تُغْنِ عَنْكُمْ شَيْـًٔا وَّضَاقَتْ عَلَيْكُمُ

ستاسو ډېروالی | پس هغه په کار رانغلو | ستاسو | پوٹے هم | او تنګه شوه | په تاسو باندے

ډېر والی مغرور شوئی نو هغے هيڅ فائده درنۀ کړه ، او زمکه دريانډِ سره دَ ارت والی

الْاَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ ثُمَّ وَلَّيْتُمْ مُّدْبِرِيْنَ ﴿٢٥﴾ ثُمَّ اَنْزَلَ

زمکه | سره دَ فراختیٔ | بيا تاسو بېرته وګرځيدئ | شا کوونکی | بيا | نازل کړو

تنګه شوه ، نو مخ په شا وُتښتيدئ . بيا الله تعالیٰ

اللّٰهُ سَكِيْنَتَهٗ عَلٰى رَسُوْلِهٖ وَعَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ وَاَنْزَلَ

الله | خپل تسکين | په خپل رسول باندِ | او په مومنانو باندِ | او راوے ليږلے

په خپل رسول او په نورو مؤمنانو باندِ خپله تسلی نازله کړه او داسے لښکرے

جُنُوْدًا لَّمْ تَرَوْهَا ۚ وَعَذَّبَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ۗ وَذٰلِكَ

لښکرے | چه هغه تاسو نۀ ليدے | او | عذاب ئے ورکړو | هغو ته چه | کافران دی | او هم داده

راوليږلو کوم چه تاسو وُنۀ ليدلو . او کافرانو له ئے سزا ورکړه ، او دَ منکرانو

جَزَآءُ الْكٰفِرِيْنَ ﴿٢٦﴾ ثُمَّ يَتُوْبُ اللّٰهُ مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ

سزا | دَ کافرانو | بيا | توبه قبلوی | الله | پس له دے نه

هم دا سزا ده . بيا له دے نه پس الله تعالیٰ هغه کسانو له دَ توبے توفيق ورکړو

عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ ۗ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿٢٧﴾ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا

دَ چا چه وغواړی | او الله | ډېر بخښونکے | مهربان دے | اے | دَ ايمان خاوندانو!

چه چا لۀ ئے چه خوښه وی او الله تعالیٰ ډېر بخښونکے مهربان دے . اے مؤمنانو !

اِنَّمَا الْمُشْرِكُوْنَ نَجَسٌ فَلَا يَقْرَبُوا الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ بَعْدَ

بيشکه | مشرکان (خو) | ناپاکه دی | پس دوی دِ نۀ رانږدے کيږی | مسجد حرام ته | پس

خبره داده چه مشرکان پليد دی نو دَ دِے کال نه پس دِ دوی . مسجد حرام

عَامِهِمْ هٰذَا ۚ وَاِنْ خِفْتُمْ عَيْلَةً فَسَوْفَ يُغْنِيْكُمُ

له دے کال نه | او که چرے | تاسو ويريږئ | له محتاجیٔ نه | نو زر به | غنيان کړی تاسو له

ته نۀ نږدے کيږی ، او که چرے تاسو دَ غريبیٔ نه ويريږئ نو که چرے الله تعالیٰ وغواړی

اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖٓ اِنْ شَآءَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ﴿٢٨﴾
الله | په خپل فضل سره | که چرې هغه غوښتل | بيشکه الله | پوهه | دَحکمت خاوند دے
نو هغه به ډير زر تاسو په خپل فضل سره غنيان کړي بيشکه الله تعالیٰ ښهٔ پوهه او دَ حکمت خاوند دے

قَاتِلُوا الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَلَا بِالْيَوْمِ
جنګ وکړئ | دَ هغه خلقو سره | چه ايمان نهٔ راوړي | په الله بانډې | او نهٔ | په ورځ
له اهل کتابو نه هغو خلقو سره جنګ کوئ چه په الله تعالیٰ بانډې ايمان نهٔ راوړي او نهٔ دَ آخرت په ورځ

الْاٰخِرِ وَلَا يُحَرِّمُوْنَ مَا حَرَّمَ اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ وَلَا يَدِيْنُوْنَ
دَ آخرت | او حرام نهٔ ګڼړي | کوم چه حرام کړي دي | الله | او دَ دهٔ رسول | او نهٔ قبلوي
يقين لري او نهٔ هغه څيزونه حرام ګڼړي چه الله تعالیٰ او دَ دهٔ رسول حرام کړي دي ، او

دِيْنَ الْحَقِّ مِنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ حَتّٰى يُعْطُوا
حق دين | له هغو خلقو نه | چه ورکړے شوې دې ورته | کتاب | تر دے چه | دوی ورکړي
نهٔ حق دين قبلوي ، تر دے چه هغوی په خپل

الْجِزْيَةَ عَنْ يَّدٍ وَّهُمْ صٰغِرُوْنَ ﴿٢٩﴾ ع وَقَالَتِ الْيَهُوْدُ ع٥ ١٠
جزيه | په خپل لاس | او دوی | ذليل وی | او وويئيل | يهودو
لاس جزيه ور کړي او ذليل وخوار شي . او يهودو ووئيل

عُزَيْرُ ۨابْنُ اللّٰهِ وَقَالَتِ النَّصٰرَى الْمَسِيْحُ ابْنُ
عزير | دَ الله ځوئے دے | او وُويئيل | نصاراوُ | مسيح | ځوئے دَ
چه عزير دَ الله ځوئے دے او نصرانيانو ووئيل چه مسيح دَ الله ځوئے

اللّٰهِ ؕ ذٰلِكَ قَوْلُهُمْ بِاَفْوَاهِهِمْ ۚ يُضَاهِئُوْنَ قَوْلَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا
دَ الله | دا دهٔ | خبره دَ دوی | دَ خُلو دَ دوی | دوی نقل کوی | خبره | دَ هغه کافرانو
دے ، دا دَ دوی دَ خُلے خبرے دي ، دَ دوی نه وړاندې چه کافرانو څهٔ ووئيلی وو

مِنْ قَبْلُ ؕ قٰتَلَهُمُ اللّٰهُ ۚ اَنّٰى يُؤْفَكُوْنَ ﴿٣٠﴾ اِتَّخَذُوْٓا
(چه) وړاندې تير شوی دی | هلاک دې کړي دوی لره | الله | کوم خوا | بے لارے روان دی | نيولی دی دوی
دَ هغے نقل کوی الله تعالیٰ دِ دوی هلاک کړي کومے خوا ته بے لارے روان دی . دوی الله تعالیٰ

اَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ اَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَالْمَسِيْحَ ابْنَ مَرْيَمَ ۚ
خپل عالمان | او خپل راهبان | خدايان | بے له خدائے نه | او مسيح | ځوئے دَ مريم
پر پرېښے دے او خپل عالمان او درويشان ئے رب جوړ کړے دے او مسيح ابن مريم عليه السلام ئے هم

وَمَآ اُمِرُوْٓا اِلَّا لِيَعْبُدُوْٓا اِلٰهًا وَّاحِدًا ۚ لَآ اِلٰهَ
او حکم نهٔ وو شوې دوی ته | مګر | دَ دے چه عبادت وکړي | دَ يو خدائے | نشته دے معبود
دوی ته صرف دومره فرمائيلے حکم وو چه دوی صرف دَ يو الله عبادت وکړي ، دَ دهٔ نه بغير بل معبود

إِلَّا هُوَ ۚ سُبْحَانَهُ عَمَّا يُشْرِكُونَ ﴿٣١﴾ يُرِيدُونَ أَن يُطْفِئُوا

بې له دغه نه | دے پاک دے | له هغه څه نه | چه دوی شريکان مقرروی | دوی غواړی | چه | مړ کړی

نشته، هغه د دے خلقو د پيدا کړی شرک نه پاک دے. دوی دا غواړی چه د الله تعالیٰ رڼړا د

نُورَ اللَّهِ بِأَفْوَاهِهِمْ وَيَأْبَى اللَّهُ إِلَّا أَن يُتِمَّ نُورَهُ

د الله نور | په خپلو خُلوسره | او نه قبلوی | الله | مګر دا چه | پوره کړی | خپل نور

خُلے په پُوکو مړه کړی، او الله تعالیٰ غواړی چه هغه خپله رڼړا پوره خوره کړی

وَلَوْ كَرِهَ الْكَافِرُونَ ﴿٣٢﴾ هُوَ الَّذِي أَرْسَلَ رَسُولَهُ بِالْهُدَىٰ

اګرچه | خوښ نه کړی | کافران خلق | هم دے دے کوم چه | راولیږلو | خپل رسول | په هدايت

اګرکه د کافرانو پرے خوښی نه راځی. الله تعالیٰ هغه ذات دے چه خپل رسول ئے د هدايت او

وَدِينِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهُ عَلَى الدِّينِ كُلِّهِ وَلَوْ كَرِهَ

او په رښتينی دين سره | چه غالب کړی هغه | په دينونو ټولو باندې | اګرکه | بد ئے ګڼړی

حق دين سره راوليږلو د پاره د دے چه دا په نورو دينونو غالب کړی اګرچه د مشرکانو دا خبره

الْمُشْرِكُونَ ﴿٣٣﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّ كَثِيرًا مِّنَ الْأَحْبَارِ

مشرکان | اے د ايمان خاوندانو | بيشکه | ډير | له عالمانو نه

نا خوښه وے نه وی. اے مؤمنانو! ډير احبار (ملايان) او

وَالرُّهْبَانِ لَيَأْكُلُونَ أَمْوَالَ النَّاسِ بِالْبَاطِلِ وَيَصُدُّونَ

او پيرانو (نه) | خوری | مالونه | د خلقو | په ناجائزه | او منع کوی (خلق)

پيران (زاهدان) د خلقو مالونه په ناحقه خوری، او خلق د الله تعالیٰ

عَن سَبِيلِ اللَّهِ ۗ وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ

د الله د لارے نه | او هغه خلق چه | ذخيره کوی | سره زر | او سپين زر

د لارے نه منع کوی. او څوک چه سره او سپين زر جمع کوی

وَلَا يُنفِقُونَهَا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴿٣٤﴾

او نه خرڅ کوی هغه | د الله په لاره کښے | پس زيرے ورکړه دوی ته | د عذاب | دردناک

او د الله تعالیٰ په لاره کښے ئے نه خرڅ کوی نو (اے نبی!) دوی ته د دردناک عذاب خبر ورکړه.

يَوْمَ يُحْمَىٰ عَلَيْهَا فِي نَارِ جَهَنَّمَ فَتُكْوَىٰ بِهَا

په کومه ورځ | چه ګرم به کړے شی دغه مال | په اور کښے | د دوزخ | بيا به داغ ورکړے شی | په هغے سره

په کومه ورځ چه به دا (خزانے) د دوزخ په اور کښے ښے ګرمے کړے شی، او د دوی تندی

جِبَاهُهُمْ وَجُنُوبُهُمْ وَظُهُورُهُمْ ۖ هَٰذَا مَا كَنَزْتُمْ

د دوی تندونه | او د دوی ډډونه | او د دوی شاګانونه | چه دا دی هغه څه | چه تاسو جمع کول

اړخونه او شاګانے به پرے داغلے شی (او ورته به وئيلے شی چه) دا هغه خزانے دی چه تاسو

لِاَنْفُسِكُمْ فَذُوْقُوْا مَاكُنْتُمْ تَكْنِزُوْنَ ﴿۳۵﴾ اِنَّ عِدَّةَ الشُّهُوْرِ

خپلو ځانونو دَپاره | پس وڅکئ | هغه څهٔ چه تاسو | به جمع کولو | بیشکه | شمیر | دَمیاشتو

ځان له جمع کړے وے پس څهٔ چه تاسو جمع کول دَ هغے مزه وڅکئ. بیشکه چه دَ میاشتو شمیر دَ الله

عِنْدَ اللّٰهِ اثْنَا عَشَرَ شَهْرًا فِیْ كِتٰبِ اللّٰهِ یَوْمَ خَلَقَ

دَ الله په نزد | دولس | میاشتے دی | دَ الله په کتاب کښے | په کومه ورځ چه | هغهٔ پیدا کړل

په کتاب کښے دَ الله تعالیٰ په نزد دولس میاشتے دی ، دَ هغے ورځے نه چه آسمانونه

السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ مِنْهَاۤ اَرْبَعَةٌ حُرُمٌ ؕ ذٰلِكَ الدِّیْنُ

آسمانونه | او زمکه | له دے نه | څلور (میاشتے) | عزتمندے دی | هم دا دے | دین

او زمکه ئے پیدا کړل ، په دے کښے څلور خاص دَ ادب میاشتے دی ، هم دغه سم دین

الْقَیِّمُ ۙ۬ فَلَا تَظْلِمُوْا فِیْهِنَّ اَنْفُسَكُمْ ۫ وَقَاتِلُوا

درست | پس ظلم مهٔ کوئ تاسو | په دے کښے | په خپلو ځانونو | او جنګ کوئ

دے . پس په دے (څلورو) میاشتو کښے په خپل ځان باندے ظلم مهٔ کوئ او مشرکانو

الْمُشْرِكِیْنَ كَآفَّةً كَمَا یُقَاتِلُوْنَكُمْ كَآفَّةً ؕ وَاعْلَمُوْۤا

دَ مشرکانو سره | ټول په یو ځائے | لکه څنګه چه | دوی جنګ کوی تاسو سره | ټول په یو ځائے | او پوهه شئ

سره په یو ځائے جنګیږئ لکه چه هغوی در سره په جمع جنګیږی او یاد ساتئ چه

اَنَّ اللّٰهَ مَعَ الْمُتَّقِیْنَ ﴿۳۶﴾ اِنَّمَا النَّسِیْٓءُ زِیَادَةٌ

چه | الله | سره | دَ پرهیزګارانو دے . | بیشکه | (میاشت) وروستوکول | زیاتے دے

الله تعالیٰ دَ پرهیزګارو مل دے . بیشکه (دَ کفارو) میاشتے مخکښے وروستوکول په (خپل) کفر

فِی الْكُفْرِ یُضَلُّ بِهِ الَّذِیْنَ كَفَرُوْا یُحِلُّوْنَهٗ عَامًا

په کفر کښے | ګمراه کیږی | په دے سره | کافران | دوی حلال کړی دا | یو کال

کښے توره زیاتے کول دی ، کفار دَ دے په وجه په ګمراهئ کښے غورزیږی چه یو کال یوه میاشت حلاله

وَّیُحَرِّمُوْنَهٗ عَامًا لِّیُوَاطِـُٔوْا عِدَّةَ مَا حَرَّمَ اللّٰهُ

او حرام کړی دا | (بل) کال | دَ پاره دَ دے چه پوره کړی | شمیر (دَ میاشتو) | چه حرامے کړی دی | الله

کړی او بل کال ئے حرامه کړی چه دَ الله تعالیٰ دَ حراموکړو میاشتو شمیره پوره کړی نو په

فَیُحِلُّوْا مَا حَرَّمَ اللّٰهُ ؕ زُیِّنَ لَهُمْ سُوْٓءُ اَعْمَالِهِمْ ؕ وَاللّٰهُ

پس حلالوی دوی | هغه څهٔ چه حرام کړی دی الله | ښائسته کړے شوی دی دوی ته | خراب | عملونه دَ دوی | او الله

دے کښے دَ الله تعالیٰ حرامه کړے (میاشت) حلاله کړی ، دوی ته خپل بد عملونه ښائسته ښکاره شوی دی

۸ ع ۱۱ لَا یَهْدِی الْقَوْمَ الْكٰفِرِیْنَ ﴿۳۷﴾ یٰۤاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا مَا لَكُمْ

لاره نهٔ ښائی | قوم | دَ کافرانو ته | اے دَ ایمان خاوندانو! | په تاسو څهٔ شوی دی

او الله تعالیٰ کافرانو ته دَ هدایت لاره نهٔ ښائی . اے مؤمنانو ! دا په تاسو څهٔ شوی دی

إِذَا قِيلَ لَكُمُ انْفِرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ اثَّاقَلْتُمْ إِلَى الْأَرْضِ ط

هركله چه دوېلې شي تاسو ته | ووځئ | دَ الله په لاره کښې | نو درانه شئ تاسو | دَ زمکې طرف ته

چه کوم وخت درته ووېلې شي چه دَ الله تعالیٰ په لاره کښې ووځئ نو تاسو زر په زمکې پورې ونښلئ

أَرَضِيتُمْ بِالْحَيَاةِ الدُّنْيَا مِنَ الْآخِرَةِ ج فَمَا مَتَاعُ

آیا راضي شوئ تاسو | په ژوند دَ دُنيا | دَ آخرت په مقابله کښې | پس نه دے | سامان

آیا تاسو دَ آخرت په مقابله کښې دَ دُنيا ژوند خوښ کړے دے ، نو دَ دُنيا مال متاع

الْحَيَاةِ الدُّنْيَا فِي الْآخِرَةِ إِلَّا قَلِيلٌ ﴿٣٨﴾ إِلَّا تَنْفِرُوا يُعَذِّبْكُمْ

دَ ژوند دَ دُنيا | دَ آخرت په مقابله کښې | مګر لږ | که چرے تاسو ونه ځئ | نو هغه به عذاب درکړي تاسو ته

خو په آخرت کښې ډېر لږ دے ، که تاسو (جنګ له) ونه ځئ نو الله تعالیٰ

عَذَابًا أَلِيمًا لا وَيَسْتَبْدِلْ قَوْمًا غَيْرَكُمْ وَلَا تَضُرُّوهُ

عذاب | دردناک | او به بدل کښې به راولي | بل قوم | بل له تاسو نه | او تاسو به ونه رسوئ شئ | نقصان هغه ته

به مو په دردناک عذاب اخته کړي ، او ستاسو په ځائے به بل قوم راولي او تاسو به هغه ته هیڅ نقصان

شَيْئًا ط وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿٣٩﴾ إِلَّا تَنْصُرُوهُ فَقَدْ نَصَرَهُ

دَ هيڅ څيز | او الله | په هر څيز باندې | قادر دے | که چرے تاسو مدد ونه کړئ دَ هغه | نو مدد کړے دے دَ هغه

ونه رسولے شئ او الله تعالیٰ په هر څيز باندې قدرت لري ۔ که تاسو دَ پیغمبر مدد ونه کړئ نو الله تعالیٰ دَ هغه مدد

اللَّهُ إِذْ أَخْرَجَهُ الَّذِينَ كَفَرُوا ثَانِيَ اثْنَيْنِ إِذْ هُمَا

الله | کله چه | راوویستلو هغه | کافرانو | چه هغه وو دویم | په دوو کښې | کله چه هغه دواړه وو

هغه وخت هم کړے وو کله چه کافرانو (دَ کلي نه) بهر وویستلے وو (په داسې حالت کښې چه) دوه (ملګرو) کښې ، هر کله چه

فِي الْغَارِ إِذْ يَقُولُ لِصَاحِبِهِ لَا تَحْزَنْ إِنَّ اللَّهَ مَعَنَا ج

په غار کښې | کله چه ده وئيل | خپل ملګري ته | غم مه کوه | بیشکه | الله | مونږ سره دے

هغه دواړه غار کښې وو او هغه خپل ملګري ته وئيل چه غم مه کوه يقيناً الله تعالیٰ مونږ سره دے

فَأَنْزَلَ اللَّهُ سَكِينَتَهُ عَلَيْهِ وَأَيَّدَهُ بِجُنُودٍ

پس راوولیږلو | الله | تسکین خپل (طرف نه) | په خپل پیغمبر | او | قوت ئے ورکړو ده ته | په لښکرو

نو الله تعالیٰ دَ خپل طرف نه په خپل پیغمبر باندې اطمینان نازل کړو او په داسې لښکرو ئے دَ هغه امداد وکړو

لَمْ تَرَوْهَا وَجَعَلَ كَلِمَةَ الَّذِينَ كَفَرُوا السُّفْلَىٰ ط

چه نه لیدل تاسو هغه | او کړه هغه | خبره | دَ کافرانو | ښکته

کوم چه تاسو نه وو کتلي ، او دَ کافرانو خبره ئے ښکته کړله ، او

وَكَلِمَةُ اللَّهِ هِيَ الْعُلْيَا ط وَاللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿٤٠﴾ انْفِرُوا خِفَافًا

او خبره دَ الله | هم داده اوچته | او الله | ډېر زبردست | دَ حکمت خاوند دے | ووځئ | سپک باري

دَ الله تعالیٰ خبره خو هسے هم (همیشه) اوچته وي او الله تعالیٰ غالب او دَ حکمت خاوند دے تاسو (غزا له) ووځئ دَ لږ سامان

وَّثِقَالًا وَّجَاهِدُوْا بِاَمْوَالِكُمْ وَاَنْفُسِكُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ

او دروند باری | او جهاد کوئ | په خپلو مالونو | او په خپلو ځانونو سره | د الله په لاره کښے

یا د ډیر سامان سره او په خپل سر و مال سره د الله تعالیٰ په لاره کښے جهاد کوئ

ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿۴۱﴾ لَوْ كَانَ عَرَضًا

هم دا | ډیر ښه دی | تاسو دپاره | که تاسو پوهیږئ ؟ | که چرے وے | (دنیوی) مال

دا د دله بهتره ده که تاسو پرے پوهیږئ ؟ (اے پیغمبره!) که چرے په آسانئ سره

قَرِيْبًا وَّسَفَرًا قَاصِدًا لَّاتَّبَعُوْكَ وَلٰكِنْۢ بَعُدَتْ

زر حاصلیدونکے | او سفر (هم) | آسان | نو پیروی به کرے وه دوئ ستا | او لیکن | لرے ښکاره شوه

حاصلیدونکے غنیمت وے یا آسان سفر وے (اے پیغمبره!) داخلق به یقینًا در پسے درغلی وو، خو دوی ته دا

عَلَيْهِمُ الشُّقَّةُ ۚ وَ سَيَحْلِفُوْنَ بِاللّٰهِ لَوِ اسْتَطَعْنَا لَخَرَجْنَا

دوی ته | لاره | او | ژر به دوی قسمونه خوری | په الله | که چرے زمونږ طاقت وے | نو فرور به وتلی وو

سفر ډیر اوږد ښکاره شو، او اوس به په الله تعالیٰ قسمونه خوری چه که زمونږ وس رسیدے نو در سره

مَعَكُمْ ۚ يُهْلِكُوْنَ اَنْفُسَهُمْ ۚ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ اِنَّهُمْ

تاسو سره | دوی هلاکوی | خپل ځانونه | او الله | پوهیږی | چه بیشکه دوی

به وتلی وو، دوی خپل ځانونه په هلاکت کښے غورزوی او الله تعالیٰ ته ښه معلومه ده چه دوی

لَكٰذِبُوْنَ ﴿۴۲﴾ عَفَا اللّٰهُ عَنْكَ ۚ لِمَ اَذِنْتَ لَهُمْ ع۵ ۱۲

دروغژن دی | معاف ډ وکړی | الله | تا ته | ولے | اجازت ورکړو تا | دوی ته

دروغژن دی۔ (اے نبی!) الله تعالیٰ ډ نا ته عفوه وکړی، تا دوی ته ولے اجازت ورکړو (نو)

حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَكَ الَّذِيْنَ صَدَقُوْا وَتَعْلَمَ

تر دے چه | ښکاره شوے وے | تا ته | هغه خلق چه | رښتینی وو | او تا پیژندلی وے

به ډ وکوله) تر دے چه درته ښه ښرګنده شوے وے چه څوک پکښے رښتینی دی، او دروغژن دے

الْكٰذِبِيْنَ ﴿۴۳﴾ لَا يَسْتَاْذِنُكَ الَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ

دروغ ویونکی | نهٔ | غواړی اجازت له تا نه | هغه خلق چه | ایمان لری | په الله

پکښے هم پیژندلی وے۔ کوم خلق چه الله تعالیٰ او د آخرت په ورځ ایمان لری هغوی له تا نه د جهاد

وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ اَنْ يُّجَاهِدُوْا بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ

او په ورځ | د آخرت | له دے نه چه دوی جهاد وکړی | په خپلو مالونو | او په خپلو ځانونو سره

مال او ځان او د جهاد کولو په باره کښے رخصت نهٔ غواړی (چه دوی د د جهاد د خدمت نه معاف شی)

وَ اللّٰهُ عَلِيْمٌ ۢ بِالْمُتَّقِيْنَ ﴿۴۴﴾ اِنَّمَا يَسْتَاْذِنُكَ الَّذِيْنَ

او | الله | ښه پیژنی | پرهیزګاران | بیشکه | اجازت غواړی له تا نه | هغه خلق چه

شی) او الله تعالیٰ پرهیزګاران ښه پیژنی ۔ دا رخصت خو هغه خلق غواړی چه په الله تعالیٰ

لَا يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَارْتَابَتْ قُلُوْبُهُمْ فَهُمْ

چه ایمان نهٔ راوړی | په الله | او په ورځ | دَ آخرت | او په شک کښے دی | زړونه دَدوی | پس دوی

او په آخرت باندِ ایمان نهٔ لری ، او په زړو کښے ئے شک پروت دے ، نو دوی

فِيْ رَيْبِهِمْ يَتَرَدَّدُوْنَ ﴿٤٥﴾ وَلَوْ اَرَادُوا الْخُرُوْجَ لَاَعَدُّوْا لَهٗ

په خپل شک کښے | سرگردانه کیږی | او کهٔ چرے | دوی اراده کولے | دَ وتلو | نو ضرور به ئے تیار کړے وے | دَ دپاره

په خپل شک کښے سرگردانه دی ، کهٔ چرے دوی ( دَ جنگ میدان ته ) دَ وتلو اراده لرلے نو دِ دے له به ئے څهٔ

عُدَّةً وَّلٰكِنْ كَرِهَ اللّٰهُ انْۢبِعَاثَهُمْ فَثَبَّطَهُمْ وَقِيْلَ اقْعُدُوْا

(څهٔ) سامان | او لیکن | ناخوښه کړل الله | راپورته کیدل دَدوی | پس درانهٔ ئے کړل دوی | او ووئیلے شول | چه کښینئ

تیارے هم کړے وے . لیکن الله تعالٰی دَدوی پاڅیدل خوښ نهٔ کړل نو توفیق ئے ورنهٔ کړو او ورته ووئیلے شو

مَعَ الْقٰعِدِيْنَ ﴿٤٦﴾ لَوْ خَرَجُوْا فِيْكُمْ مَّا زَادُوْكُمْ اِلَّا

سره | دَ کښیناستونکو | کهٔ چرے راوتلے وے دوی | په تاسو کښے | نو نهٔ به ئے زیات کړے وو تاسو ته | مگر

چه دَ نورو ناستو سره تاسو هم کښینئ . کهٔ دوی تاسو سره دَ جنگ میدان ته وتلی هم وے نو په تاسو کښے به

خَبَالًا وَّلَاْاَوْضَعُوْا خِلٰلَكُمْ يَبْغُوْنَكُمُ الْفِتْنَةَ ۚ وَفِيْكُمْ سَمّٰعُوْنَ

فساد | او دوی به ځغلیدل | ستاسو په مینځ کښے | په لټولو تاسو کښے | دَ فساد | او په تاسو کښے | جاسوسان دی

ئے نوره زیاته خرابی پیدا کړے وه او ستاسو په مینځ کښے به ئے دَ فتنے پیدا کولو کوشش کولو او اوس هم ستاسو په

لَهُمْ ۭ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِالظّٰلِمِيْنَ ﴿٤٧﴾ لَقَدِ ابْتَغَوُا الْفِتْنَةَ مِنْ قَبْلُ

دَدوی | او الله | پوهه دے | په ظالمانو | بیشکه | لټولے وُو دوی | فساد | له دے نه وړاندِ

ټولی کښے دَدوی جاسوسان شامل دی او الله دَ ظالمان ښهٔ پیژنی . دوی دَ دے نه وړاندِ هم دَ فتنے پیدا کولو کوشش کولو

وَقَلَّبُوْا لَكَ الْاُمُوْرَ حَتّٰى جَآءَ الْحَقُّ وَظَهَرَ اَمْرُ اللّٰهِ

او اُلټه کړی ئے وو | تاسو دَ پاره | کارونه | ترڅو چه | راورسیده | رښتینے وعده | او غالب شو | حکم | دَ الله

او ستاسو په کارونو کښے ئے ردو بدل کولو ، ترڅو چه حق راورسیدو او دَ الله تعالٰی حکم غالب شو حال دا

وَهُمْ كٰرِهُوْنَ ﴿٤٨﴾ وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّقُوْلُ ائْذَنْ لِّيْ وَلَا تَفْتِنِّيْ ۭ

او دوی | خوښنیتل نه | او ځنے له دوی نه | هغه دے | چه وائی | چه رخصت راکړه | ماته او ما فتنه کښے مهٔ غورزوه

دے چه دوی نهٔ خوښولو . او په دوی کښے څوک داوائی چه ماته اجازت راکړه او په شر کښے م مهٔ

اَلَا فِي الْفِتْنَةِ سَقَطُوْا ۭ وَاِنَّ جَهَنَّمَ لَمُحِيْطَةٌۢ بِالْكٰفِرِيْنَ ﴿٤٩﴾

واورئ | په فتنه کښے | پریوتل دوی | او بیشکه | دوزخ | راگیرونکے دے | کافرانو لره

غورزوه واورئ چه په آزمیښت کښے خودوی هسے هم پریوتی دی او بیشکه دوزخ په دے کافرانو راچاپیر شوے دے

اِنْ تُصِبْكَ حَسَنَةٌ تَسُؤْهُمْ ۚ وَاِنْ تُصِبْكَ مُصِيْبَةٌ

کهٔ چرے ورسیږی تاته | (څهٔ) ښیگړه | نو بدَ لگی په دوی | او کهٔ چرے | ورسیږی تاته | مصیبت

(اے پیغمبره ! ) کهٔ تاته څهٔ ښیگړه دررسی نو دوی پرے خفه کیږی ، او کهٔ تاته څهٔ تکلیف دررسی

يَقُوْلُوْا قَدْ اَخَذْنَآ اَمْرَنَا مِنْ قَبْلُ وَ يَتَوَلَّوْا

نو وائی دوی | مونږ خوسنبال کړے وو | خپل کار | له وړاندې نه | او | واپس لاړ شی

نو دوی وائی چه مونږ خو دَ وړاندې نه دَ ځان په حقله احتیاط کړے وو او (دا وائی او) دوی

وَّهُمْ فَرِحُوْنَ ﴿٥٠﴾ قُلْ لَّنْ يُّصِيْبَنَآ اِلَّا مَا كَتَبَ اللّٰهُ

او دوی | خوشحاله وی | دوایه | هیڅ کله به ونه رسیږی مونږ ته | مګر هغه څهٔ چه لیکلی دی | الله

په خوشحالئی خوشحالئی مخ واړوی او روان شی (اے پیغمبره!) دوایه چه څهٔ الله تعالیٰ مونږ دَ پاره مقرر کړی

لَنَا ۚ هُوَ مَوْلٰىنَا ۚ وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ﴿٥١﴾ قُلْ

مونږ دَ پاره | دے هغه کارساز زمونږ | او په الله باندے | توکل پکار دے | مؤمنانو له | دُوایه

دی مونږ ته به هم هغه ملاویږی هغه زمونږ کارساز دے او مومنان هم په الله تعالیٰ توکل ساتی (اے پیغمبره!) دے

هَلْ تَرَبَّصُوْنَ بِنَآ اِلَّآ اِحْدَى الْحُسْنَيَيْنِ ۖ وَنَحْنُ

آیا | تاسو انتظار کوئی | زمونږ په حق کښے | صرف | یو له دوو ښښیګړو نه ؟ | او مونږ (نو)

(منافقانو) ته واوُروه چه تاسو زمونږ په حق کښے په دوو ښښیګړو کښے دَ یوے ښښیګړے (دَ فتح یا دَ شهادت) انتظار کوئی او مونږ

نَتَرَبَّصُ بِكُمْ اَنْ يُّصِيْبَكُمُ اللّٰهُ بِعَذَابٍ مِّنْ عِنْدِهٖٓ

انتظار کوو | ستاسو په حق کښے | دا چه ورسوی تاسو ته | الله | عذاب | له خپل طرف نه

ستاسو په حق کښے دَ دے خبرے انتظار کوو چه الله تعالیٰ به تاسو دَ خپل طرف نه څهٔ عذاب راولیږی یا زمونږ

اَوْ بِاَيْدِيْنَا ۖ فَتَرَبَّصُوْٓا اِنَّا مَعَكُمْ مُّتَرَبِّصُوْنَ ﴿٥٢﴾ قُلْ اَنْفِقُوْا

یا زمونږ په لاسونو | پس انتظار کوئی تاسو | بیشکه مونږ هم تاسو سره | انتظار کوونکی یو ۔ | دوایه | خرڅ کړئی

په لاسونو عذاب درسوی، پس تاسو هم انتظار کوئی مونږ هم تاسو سره انتظار کوو ۔ ورته دوایه کهٔ تاسو

طَوْعًا اَوْ كَرْهًا لَّنْ يُّتَقَبَّلَ مِنْكُمْ ۖ اِنَّكُمْ كُنْتُمْ قَوْمًا فٰسِقِيْنَ ﴿٥٣﴾

(مال) په خوښئ | یا په ناخوښئ | هیڅ کله به قبول نهٔ کړے شی | له تاسو نه | بیشکه یئ تاسو | نافرمانه خلق

خپل مالونه په رضا خرڅ کوئی او کهٔ په نا رضا، خوستاسو خیرات هیچرے قبلیږے نهٔ شی ځکه چه تاسو فاسقان خلق یئ۔

وَمَا مَنَعَهُمْ اَنْ تُقْبَلَ مِنْهُمْ نَفَقٰتُهُمْ اِلَّآ اَنَّهُمْ

او نهٔ دے دَ منع کړی دوی | له دے نه چه | قبول کړے شی | له دوی نه | صدقے دَ دوی | مګر | دا چه دوی

دَ دوی دَ خیرات دَ نهٔ قبلیدو وجه نور څهٔ نهٔ ده خو دا چه دوی دَ الله تعالیٰ

كَفَرُوْا بِاللّٰهِ وَبِرَسُوْلِهٖ وَلَا يَاْتُوْنَ الصَّلٰوةَ اِلَّا

منکر شول | دَ الله | او دَ دهٔ دَ رسول | او دوی نهٔ راځی | مونځ له | مګر

او دَ رسول نه انکار کړے دے ۔ او مونځ ته نهٔ راځی خو په ماتو

وَهُمْ كُسَالٰى وَلَا يُنْفِقُوْنَ اِلَّا وَهُمْ كٰرِهُوْنَ ﴿٥٤﴾ فَلَا تُعْجِبْكَ

سستی کوونکی | او دوی نهٔ خرڅ کوی | مګر | په ناخوښئ | پس په تعجب کښے دِ وانهٔ چوی

زړونو ، او دَ الله تعالیٰ په لار کښے خرڅ نهٔ کوی خو په ناخوالئی ، نو دَ دوی مالونه

اَمْوَالُهُمْ وَلَآ اَوْلَادُهُمْ ؕ اِنَّمَا يُرِيْدُ اللّٰهُ
مالونه دَدوی | او نهٔ | اولاد دَدوی | بیشکه | چه غواړی | الله
او دَ دوی اولاد دِ تا په تعجب کښے نهٔ اچوی ، الله تعالیٰ ته دا منظوره ده چه

لِيُعَذِّبَهُمْ بِهَا فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَتَزْهَقَ اَنْفُسُهُمْ
چه دوی ته عذاب اورکړی | په هغے سره | په ژوند کښے | دَ دنیا | او وُځی | دَ دوی ساګانے
دَ دِے څیزونو په انجام ئے په دنیا کښے په عذاب اخته کړی ، او هر کله چه دَ دوی ساه وُوځی

وَهُمْ كٰفِرُوْنَ ۞۵۵ وَيَحْلِفُوْنَ بِاللّٰهِ اِنَّهُمْ لَمِنْكُمْ ؕ
او دوی | کافران وی | او دوی قسمونه خوری | په الله | چه دوی خو | له تاسونه دی
نو هم به دوی کافران وی ، او دوی په الله تعالیٰ قسمونه خوری چه مونږ ستاسو ملګری یُو

وَمَا هُمْ مِّنْكُمْ وَلٰكِنَّهُمْ قَوْمٌ يَّفْرَقُوْنَ ۞۵۶ لَوْ يَجِدُوْنَ
او نهٔ دی دوی | له تاسونه | بلکه دوی (خو) | داسے خلق دی | چه ویریږی | که چرے دوی بیاموی
او دوی هیچرے ستاسو ملګری نهٔ دی ، بلکه دوی خو (په ظاهر او باطن کښے) فرق لرونکی دی که دوی دَ

مَلْجَاً اَوْ مَغٰرٰتٍ اَوْ مُدَّخَلًا لَّوَلَّوْا اِلَيْهِ
ځائے دَ پناه ، | یا غارونه | یا ځائے دَ ننوتو | نو خامخا به دوی واپس شی | هغے ته
پناه ځائے ، یا غار یا دَ سر پټولو غوندِ ځائے بیاموندو ، نو په منډه هلته

وَهُمْ يَجْمَحُوْنَ ۞۵۷ وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّلْمِزُكَ فِي الصَّدَقٰتِ ۚ
زغلیدُونکی | او ځنے له دوی نه | هغه څوک دی | چه الزام لګوی په تا | په صدقو کښے
ځان پټ کړی ۔ او ځنے یکښے داسے خلق دی چه په زکوٰة ویشلو کښے په تا اعتراض کوی

فَاِنْ اُعْطُوْا مِنْهَا رَضُوْا وَاِنْ لَّمْ يُعْطَوْا مِنْهَآ
پس که چرے | دوی له ورکړے شی | له هغے نه | نو خوشحاله شی | او که چرے | ورنهٔ کړے شی دوی ته | له هغے نه
نو که دوی له ترے نه ورکړے شی نو خوشحاله شی او که چرے دوی ته یکښے څهٔ ملاؤ نهٔ شی

اِذَا هُمْ يَسْخَطُوْنَ ۞۵۸ وَلَوْ اَنَّهُمْ رَضُوْا مَآ اٰتٰهُمُ اللّٰهُ
نو هغه وخت دوی | ناراضه شی | او څهٔ به ښهٔ وے | که چرے دوی | راضی کیدے | په هغه څهٔ چه ورکړل دوی ته الله
نو فورًا ناراضه شی ۔ او که دوی په هغه برخه راضی شوے وے چه خدائے او رسول ورته

وَرَسُوْلُهٗ ۙ وَقَالُوْا حَسْبُنَا اللّٰهُ سَيُؤْتِيْنَا اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ
او دَ ده رسول | او دوی ویلے | بس دے مونږ دَ پاره | الله | اوس به راکړی مونږ ته | الله | دَ خپل فضل نه
ورکړے ده او دائے ویلے وے چه خدائے راله بس دے هغه به مونږ ته په خپل فضل سره او دَ

وَرَسُوْلُهٗٓ ۙ اِنَّآ اِلَى اللّٰهِ رٰغِبُوْنَ ۞۵۹ ع اِنَّمَا الصَّدَقٰتُ لِلْفُقَرَآءِ
او رسول دَ ده | بیشکه مونږ | دَ الله طرف ته | اُمید لرونکی یُو | بیشکه | چه صدقے | دَ پاره دَ فقیرانو
هغهٔ رسول به څه برخهٔ راکړی بیشکه مونږ الله تعالیٰ طرف ته راغب یُو ۔ په حقیقت کښے دَ زکوٰة مال صرف دَ فقیرانو

ع ۷/۱۷ ۱۳

وَالْمَسٰكِيْنِ وَالْعٰمِلِيْنَ عَلَيْهَا وَالْمُؤَلَّفَةِ قُلُوْبُهُمْ

او د مسکینانو دی | او د کارکنانو دی | چه په دے (صدقو) باندے (مقرر) دی | او (هغه چا د پاره) د کومو زړونو کښے چه الفت پیدا کړے شی

مسکینانو او دا د راټولوونکو کارکنانو حق دے او د هغو خلقو حق دے د کومو د لجوئی چه منظور وی

وَفِي الرِّقَابِ وَالْغٰرِمِيْنَ وَفِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَابْنِ السَّبِيْلِ

او په (آزادولو) د څټونو کښے | او د قرض دارو د پاره | او د الله په لاره کښے | او مسافرو (د پاره)

وی او د غلامانو په آزادولو، د قرض دارو په مدد کولو، د الله تعالیٰ په لاره کښے په ورکولو او د مسافرو په مدد

فَرِيْضَةً مِّنَ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ۝٦٠ وَمِنْهُمُ الَّذِيْنَ

فرض دی | د الله د طرف نه | او الله | پوهه | خاوند د حکمت دے | او ځنے له دوئ نه | هغه (چه)

کولو کښے خرچ کیدے شی، دا د الله تعالیٰ د طرف نه حکم دے او الله تعالیٰ ښه پوهه د حکمت خاوند دے۔ او ځنے خلق له دوی نه

يُؤْذُوْنَ النَّبِيَّ وَيَقُوْلُوْنَ هُوَ اُذُنٌ ؕ قُلْ اُذُنُ

تکلیف ورکوی | نبی ته | او وائی | چه دے (خو) | غوږ دے | ووایه | غوږ

داسے دی چه نبی ته تکلیف ورکوی او وائی چه دا سړے د هر چا هره خبره آوری، ووایه چه دا خو ستاسو د

خَيْرٍ لَّكُمْ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَيُؤْمِنُ لِلْمُؤْمِنِيْنَ وَرَحْمَةٌ

ښه دے تاسو د پاره | یقین لری | په الله | او یقین لری | د مؤمنانو (په خبره) | او رحمت دے

فائدے د پاره داسے دے، دے په الله تعالیٰ یقین ساتی او د مسلمانانو په خبره باور کوی او په تاسو کښے

لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْكُمْ ؕ وَالَّذِيْنَ يُؤْذُوْنَ رَسُوْلَ اللّٰهِ

د هغو د پاره چه | ایمان راوړی | له تاسو نه | او | کوم خلق چه | تکلیف ورکوی | د الله رسول ته

چه څوک ایمان لری د هغوئ د پاره رحمت دے، او څوک چه د الله تعالیٰ رسول له تکلیف ورکوی

لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۝٦١ يَحْلِفُوْنَ بِاللّٰهِ لَكُمْ لِيُرْضُوْكُمْ

هغوی له | عذاب (دے) | دردناک | دوی قسمونه خوری | په الله | تاسو د پاره | چه راضی کړی تاسو

هغوی د پاره دردناک عذاب دے۔ دا خلق ستاسو په وړاندې قسمونه خوری چه تاسو خوشحاله کړی

وَاللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗۤ اَحَقُّ اَنْ يُّرْضُوْهُ اِنْ كَانُوْا مُؤْمِنِيْنَ ۝٦٢

او الله | او د دهٔ رسول | زیات حقدار دی | چه رضامند ئے کړی دوی | که چرے وی دوی | مؤمنان

حالانکه الله تعالیٰ او د دهٔ رسول د دے خبرے زیات حق لری چه دوی ئے رضا کړی که دوی په رښتیا مؤمنان دی

اَلَمْ يَعْلَمُوْۤا اَنَّهٗ مَنْ يُّحَادِدِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ فَاَنَّ لَهٗ

آیا دوی ته معلومه نهٔ ده | چه هغه | کوم چه مخالفت وکړی | د الله | او د دهٔ د رسول | نو بیشکه دهٔ د پاره دی

آیا دوی ته معلومه نهٔ ده چه څوک د الله تعالیٰ او د دهٔ د رسول مخالفت کوی نو هغهٔ د پاره

نَارَ جَهَنَّمَ خٰلِدًا فِيْهَا ؕ ذٰلِكَ الْخِزْيُ الْعَظِيْمُ ۝٦٣

اور | د دوزخ | همیشه به وی | په هغے کښے | هم داده | رسوائی | ډیره لویه

د دوزخ اور مقرر دے چه همیشه به پکښے پراته وی او دا ډیره د رسوائی خبره ده۔

يَحْذَرُ الْمُنٰفِقُوْنَ اَنْ تُنَزَّلَ عَلَيْهِمْ سُوْرَةٌ تُنَبِّئُهُمْ
ویریږی | منافقان | له دے نه چه نازل شی | په دوی باندے | (څه) سورت | چه ښائی دوی ته
منافقان دَدے نه ویریږی چه چرته (په مسلمانانو) داسے سورت را نازل نهٔ شی چه دَدوی (منافقانو) دَ
بِمَا فِیْ قُلُوْبِهِمْ ؕ قُلِ اسْتَهْزِءُوْا ۚ اِنَّ اللّٰهَ مُخْرِجٌ
هغه څهٔ چه | دَدوی په زړونو کښے دی | ووایه | مسخرے کوئ تاسو | بیشکه الله | ښکاره کوونکے دے
زړونو حال ورته څرګند کړی (اے پیغمبره!) ووایه چه (ښه ده) خندا کلنے کوئ، بیشکه الله تعالیٰ هغه څیز
مَّا تَحْذَرُوْنَ ﴿٦٤﴾ وَلَئِنْ سَاَلْتَهُمْ لَيَقُوْلُنَّ اِنَّمَا كُنَّا
دَ هغه خبرے کومے نه چه تاسو ویریږئ | او که چرے | تهٔ له دوی نه تپوس وکړے | نو دوی به ضرور وائی | بیشکه چه مونږه
څرګندونکے دے دکوم نه چه تاسو ویره کوئ۔ اوکهٔ تپوس ترے نه وکړے (چه څهٔ خبرے مو کولے؟) نو جواب به وکړی
نَخُوْضُ وَنَلْعَبُ ؕ قُلْ اَبِاللّٰهِ وَاٰيٰتِهٖ وَرَسُوْلِهٖ
توقے | اولوبے کولے | ووایه | آیا په الله | او دَ دهٔ په آیتونو | او دَ دهٔ په پیغمبر پورے
چه مونږ خو هسے توقے ټقالے کولے، ورته ووایه چه آیا ستاسو توقے په الله دَ هغهٔ په آیتونو او په
كُنْتُمْ تَسْتَهْزِءُوْنَ ﴿٦٥﴾ لَا تَعْتَذِرُوْا قَدْ كَفَرْتُمْ بَعْدَ اِيْمَانِكُمْ ؕ
تاسو توقے کوئ | بهانے مهٔ جوړوئ | تاسو خو کافر شوئ | پس له ایمان راوړونه
پیغمبر پورے کیږی؟ اوس عذرونه مهٔ کوئ تاسو دَ ایمان راوړلو نه پس بیا کفر کړے دے
اِنْ نَّعْفُ عَنْ طَآئِفَةٍ مِّنْكُمْ نُعَذِّبْ طَآئِفَةًۢ
کهٔ چرے مونږ معافی وکړو | یو ډلے ته | له تاسو نه | نو مونږ به عذاب ورکړو | بلے ډلے ته
کهٔ مونږ ستاسو یو ټولے معاف هم کړو، نو بل ټولی له به خامخا سزا ورکوو
بِاَنَّهُمْ كَانُوْا مُجْرِمِيْنَ ﴿٦٦﴾ ؑ اَلْمُنٰفِقُوْنَ وَالْمُنٰفِقٰتُ
ځکه چه دوی | وو | ګناهګار | منافقان سړی | او منافقانے ښځے
ځکه چه دوی مجرمان دی۔ منافقان سړی او منافقانے ښځے
بَعْضُهُمْ مِّنْۢ بَعْضٍ ۘ يَاْمُرُوْنَ بِالْمُنْكَرِ وَيَنْهَوْنَ
دَ یو بل (ملګری) دی | حکم کوی | دَ بدٌ کار | او منع کوی
ټول دَ یو بل پشان دی، دَ بدو خبرو تعلیم ورکوی، او دَ نیکئ نه
عَنِ الْمَعْرُوْفِ وَيَقْبِضُوْنَ اَيْدِيَهُمْ ؕ نَسُوا اللّٰهَ
دَ نیک کار نه | او بند ساتی | لاسونه خپل (دَ خیرات نه) | هیر کړه دوی | الله
خلق منع کوی اوداَ نیکئ په لاره کښے دَ خرڅ کولو نه) خپل لاسونه منع ساتی، دوی الله تعالیٰ هیر کړو
فَنَسِيَهُمْ ؕ اِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ ﴿٦٧﴾ وَعَدَ اللّٰهُ
پس هغهٔ هیر کړل دوی | بیشکه | منافقان | نافرمانه دی | وعده کړے ده | الله
نو الله تعالیٰ هم دوی هیر کړل (یاد ساتی چه) منافقان یقیناً نافرمانه دی۔ الله تعالیٰ دَ منافقانو سړو او دَ منافقانو

ع ٨/١٤
وقف لازم

الْمُنٰفِقِيْنَ وَالْمُنٰفِقٰتِ وَالْكُفَّارَ نَارَ جَهَنَّمَ خٰلِدِيْنَ

منافقانو سړو سره | او دَ منافقانو ښځو سره | او دَ کافرانو سره | دَ اور دَ دوزخ | چه همیشه به وی دوی

ښځو سره او کافرانو سره دَ دوزخ دَ اور وعده کړې ده چه همیشه به پکښې

فِيْهَا ۭ هِيَ حَسْبُهُمْ ۚ وَلَعَنَهُمُ اللّٰهُ ۚ وَلَهُمْ

په دے کښې | هم دا (عذاب) | بس دے دوی له | او | لعنت کړے دے په دوی | الله | او دوی دپاره

پراته وی او دغه (عذاب) دَ دوی دپاره کافی دے او په دوی باندې دَ الله تعالیٰ لعنت دے او دَ دوی دَ

عَذَابٌ مُّقِيْمٌ ۙ ﴿٦٨﴾ كَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ كَانُوْٓا اَشَدَّ

عذاب دے | همیشه | (ستاسو مثال) په شان دَ هغو خلقو دے | چه له تاسو نه وړاندې وو | هغوی وو ډیر زیات

پاره دَ همیشه عذاب مقرر دے۔ (ستاسو کارونه) دَ هغه چا په شان (دی) چه تاسو نه وړاندې تیر شوی دی چه تاسو نه

مِنْكُمْ قُوَّةً وَّاَكْثَرَ اَمْوَالًا وَّاَوْلَادًا ۭ فَاسْتَمْتَعُوْا

له تاسو نه | په قوت کښې | او زیات وو | په مال کښې | او په اولاد کښې | پس هغوی فائده واخستله

زیات زورآور او تاسو نه زیات دَ مال او دَ اولاد خاوندان وو ، پس هغوی دَ خپلې دنیوی

بِخَلَاقِهِمْ فَاسْتَمْتَعْتُمْ بِخَلَاقِكُمْ كَمَا اسْتَمْتَعَ الَّذِيْنَ

له خپلې برخې نه | پس تاسو هم فائده واخستله | له خپلې حصے نه | لکه چه | فائده اخستې وه | هغو خلقو چه

برخې نه فائده اوچته کړه او تاسو دَ خپلې دنیوی برخې نه هم فائده اوچته کړه ، لکه څنګه چه هغه خلقو چه له تاسو نه

مِنْ قَبْلِكُمْ بِخَلَاقِهِمْ وَخُضْتُمْ كَالَّذِيْ خَاضُوْا ۭ

له تاسو نه وړاندې وو | له خپلې برخې نه | او تاسو هم مشغول شوئ (په بد خبرو کښې) | لکه چه هغوی | مشغول وو

وړاندې وو دَ خپلې برخې نه فائده اوچته کړه ، او په هغه ناکاره بحثونو کښې پریوتلئ لکه هغوی چه

اُولٰۗىِٕكَ حَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ ۚ وَاُولٰۗىِٕكَ هُمُ

هم دا خلق دی (چه) | ضائع شول | عملونه دَ دوی | په دنیا کښې | او په آخرت (کښې) | او هم دا خلق دی

پکښې بوخت شوی وو ، دَ دا سے خلقو عملونه په دُنیا او آخرت دواړو کښې ضائع لاړل او هم دغه خلق

الْخٰسِرُوْنَ ﴿٦٩﴾ اَلَمْ يَاْتِهِمْ نَبَاُ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ

نقصان موندونکی | آیا نهٔ دے | رسیدلے دوی ته | خبر | دَ هغو خلقو چه | له دوی نه وړاندې وو

نقصان موندونکی دی

پخپله تاوانیان شول آیا دوی ته دَ پخوانو خلقو حالات نهٔ دی رارسیدلی

قَوْمِ نُوْحٍ وَّعَادٍ وَّثَمُوْدَ ڏ وَقَوْمِ اِبْرٰهِيْمَ

دَ قوم دَ نوح | او دَ عاد | او دَ ثمود | او قوم دَ ابراهیم

دَ قوم دَ نوح ، او دَ عاد ، او دَ ثمود ، او دَ قوم دَ ابراهیم ، او

وَاَصْحٰبِ مَدْيَنَ وَالْمُؤْتَفِكٰتِ ۭ اَتَتْهُمْ رُسُلُهُمْ

او دَ مدین والو | او دَ اپوته شوو کلو | چه راغلل دوی ته | پیغمبران دَ دوی

دَ مدین دَ اوسیدونکو او دَ هغه کلو چه اړولے شوی وو ، هغوی ته خپلو پیغمبرانو څرګند دلیلونه

بِالْبَيِّنٰتِ ج فَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيَظْلِمَهُمْ وَلٰكِنْ كَانُوْٓا اَنْفُسَهُمْ

په ښکاره دلیلونو سره | پس نه وو الله (داسې) | چه ظلم ئې کړې وو په دوی باندې | لیکن دوی پخپله | په خپلو ځانونو

راوړل ، نو الله تعالیٰ په هغوی هیڅکله زیاتے نه کولو خو هغوی پخپله پخپلو

يَظْلِمُوْنَ ﴿٧٠﴾ وَالْمُؤْمِنُوْنَ وَالْمُؤْمِنٰتُ بَعْضُهُمْ اَوْلِيَآءُ بَعْضٍ

ظلم کولو | او مؤمنان سړی | او مؤمنانې ښځې | ځنې له دوی نه ملګری دځنو دی

ځانونو ظلم کولو۔ او مؤمنان سړی او مؤمنانې ښځې د یو بل ملګری دی ،

وقف لازم

يَاْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَيُقِيْمُوْنَ

چه حکم کوی | د نیک کار | او منع کوی | د بدو کارونو نه | او قائموی

د نیکو کارونو تعلیم ورکوی ، او د بدو کارونو نه خلق منع کوی ، او د مونځونو

الصَّلٰوةَ وَيُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ وَيُطِيْعُوْنَ اللّٰهَ

مونځ | او ادا کوی | زکوٰة | او حکم منی | د الله

پابندی ساتی ، او زکوٰة ورکوی ، او د الله تعالیٰ او د ده د رسول

وَرَسُوْلَهٗ ط اُولٰٓئِكَ سَيَرْحَمُهُمُ اللّٰهُ ط اِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ

او د ده د رسول | هم دا خلق دی | چه رحم به وکړی په دوی باندې | الله | بیشکه | الله | ډیر زبردست

حکم منی ، په دغه خلقو به الله تعالیٰ ډیر زر رحم وکړی (یاد ساتئ چه) الله تعالیٰ یقیناً غالب

حَكِيْمٌ ﴿٧١﴾ وَعَدَ اللّٰهُ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ

د حکمت خاوند دے | وعده کړې ده | الله | مؤمنانو سړو | او مؤمنانو ښځو سره

او د حکمت خاوند دے الله تعالیٰ د مؤمنانو سړو او مؤمنانو ښځو سره د داسې باغونو د

جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا

د جنتونو | چه بهیږی به | لاندې د هغې نه | نهرونه | (چه) دوی به همیشه وی | په هغې کښې

ورکولو اراده کړې ده چه د هغې لاندې به نهرونه بهیږی کوم ځائے چه به دوی همیشه

وَمَسٰكِنَ طَيِّبَةً فِيْ جَنّٰتِ عَدْنٍ ط وَرِضْوَانٌ مِّنَ اللّٰهِ

او د پاکیزه مکانونو | دائمی باغونو کښې | او رضامندی | د الله

اوسیږی او د داسې پاک صفا مکانونو چه د همیشه په باغونو کښې به وی او د ټولو نه غټه خبره دا چه د الله

ع ٩ ٢٦ ١٥

اَكْبَرُ ط ذٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ﴿٧٢﴾ ع يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ جَاهِدِ

ډیره لویه ده | هم دا ده | کامیابی | ډیره لویه | اے | نبی! | جهاد وکړه

رضامندی به ورته حاصله شی، هم دا د ټولو نه لویه کامیابی ده۔ اے نبیؐ! کافرانو او منافقانو

الْكُفَّارَ وَالْمُنٰفِقِيْنَ وَاغْلُظْ عَلَيْهِمْ ط وَمَاْوٰىهُمْ

د کفارو | او منافقینو سره | او سختی کوه | په دوی | او ځائے د دوی

سره جهاد کوه ، او په دوی باندې سختی کوه او (یاد ساته چه) د دوی ځائے

جَهَنَّمُ ۖ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ ﴿٧٣﴾ يَحْلِفُونَ بِاللَّهِ مَا قَالُوا

دوزخ دے | او ھغه ډیر بد | ځائے دے د واپس تلو | دوی قسمونه خوري | په الله | چه نه دي ویلي دوی

دوزخ دے او ھغه ډیر خراب ځائے دے. دوی په الله تعالیٰ قسمونه خوری چه مونږ فلانئ خبره نه

وَلَقَدْ قَالُوا كَلِمَةَ الْكُفْرِ وَكَفَرُوا بَعْدَ إِسْلَامِهِمْ

او بیشکه ویلې ده دوی | خبره | د کفر | او دوی کافران شول | پس | د خپل اسلام راوړنه

ده کړے، حال دا دے چه دوی د کفر خبره ضرور کړے ده او د اسلام نه پس ئے کفر غوره کړو

وَهَمُّوا بِمَا لَمْ يَنَالُوا ۚ وَمَا نَقَمُوا إِلَّا أَنْ

او دوی اراده وکړه | د ھغه څه | چه دوی بیا نه موندله | او دوی بدل وانه خستلو | مګر د دے خبرے چه

او ھغه کار ته ئے لاس واچولو چه ترسره ئے نه کړے شو او دوی صرف د دے خبرے بدله واخستله

أَغْنَاهُمُ اللَّهُ وَرَسُولُهُ مِنْ فَضْلِهِ ۚ فَإِنْ يَتُوبُوا

غنیان کړل دوی | الله | او | د ده رسول | په خپل فضل سره | پس که چرے دوی توبه وکړی

چه الله تعالیٰ او د ده رسول په خپله مهربانئ سره دوی غنیان کړی دی، نو که چرے دوی توبه وباسی

يَكُ خَيْرًا لَهُمْ ۖ وَإِنْ يَتَوَلَّوْا يُعَذِّبْهُمُ اللَّهُ

نو وی به | ډیره ښه | د دوی د پاره | او که چرے | دوی ونه منی | نو عذاب به ورکړی دوی له | الله

نو دا به ورله بهتره وی، او که چرے دوی ونه منی، نو الله تعالیٰ به دوی له په

عَذَابًا أَلِيمًا فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ ۚ وَمَا لَهُمْ

عذاب | دردناک | په دنیا کښے | او په آخرت (کښے) | او نه به وی دوی د پاره

دنیا او آخرت کښے دردناک عذاب ورکړی، او په مخ د زمکے

فِي الْأَرْضِ مِنْ وَلِيٍّ وَلَا نَصِيرٍ ﴿٧٤﴾ وَمِنْهُمْ مَنْ

په مخ د زمکے | څوک دوست | او نه څوک مددګار | او ځنے له دوی نه | ھغه څوک دی

به د دوی د پاره نه څوک دوست وی او نه مددګار. او په دوی کښے ځنے ھغه دی کوم چه

عَاهَدَ اللَّهَ لَئِنْ آتَانَا مِنْ فَضْلِهِ لَنَصَّدَّقَنَّ وَلَنَكُونَنَّ

چه وعده ئے کړے وه الله سره | که چرے ھغه راکړی مونږ ته | له خپل فضل نه | نو مونږ به ضرور صدقه ورکړو | او مونږ به ضرور یو

د الله تعالیٰ سره وعده کړے وه چه که الله تعالیٰ مونږ له په خپل فضل سره (مال) راکړو نو مونږ به ئے ضرور خیرات کړو

مِنَ الصَّالِحِينَ ﴿٧٥﴾ فَلَمَّا آتَاهُمْ مِنْ فَضْلِهِ بَخِلُوا

له نیکانو نه | بیا هر کله چه | ورکړو دوی ته ھغه | له خپل فضل نه | نو دوی شومتیا وکړه

او ښه نیکان به شو. بیا هر کله چه الله تعالیٰ په خپل فضل سره دوی له (هرڅه) ورکړل نو په دے کښے

بِهِ وَتَوَلَّوْا وَهُمْ مُعْرِضُونَ ﴿٧٦﴾ فَأَعْقَبَهُمْ

په ھغے کښے | او دوی واوړیدل (وعدے نه) | او دوی | مخ اړونکی دی | پس د دوی انجام کینودو (الله)

ئے شومتیا شروع کړه او (وعدے نه) واوړیدل او انکار ئے وکړو. نتیجه ئے دا شوه چه الله تعالیٰ

نِفَاقًا فِي قُلُوبِهِمْ إِلَىٰ يَوْمِ يَلْقَوْنَهُ بِمَا أَخْلَفُوا

نفاق | دَ دوی په زړونو کښې | تر هغې ورځې پورې | چه دوی به ملاویږي دَ هغهٔ سره | ځکه چه | دوی مخالفت وکړو

دَ دوئ په زړونو کښې دا سے نفاق واچولو چه دَ ملاقات (قیامت) تر ورځې پورے به قائم وی ځکه چه

اللَّهَ مَا وَعَدُوهُ وَبِمَا كَانُوا يَكْذِبُونَ ﴿٧٧﴾ أَلَمْ يَعْلَمُوا

دَ الله سره | دَ هغې وعدې چه دَ دهٔ سره ئې کړے وه | او په سبب دَ دې چه دوی به دروغ وئيل | آیا دوی نهٔ پوهیږی؟

دوی الله تعالیٰ سره بے لوظی وکړه او دروغ وینا کانے ئے وکړے . آیا دوی نهٔ پوهیږی

أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ سِرَّهُمْ وَنَجْوَاهُمْ وَأَنَّ اللَّهَ عَلَّامُ

چه الله | پوهیږی | دَ دوی په رازونو | او دَ دوی په پټو خبرو | او دا چه | الله | ښهٔ پوهیږی

چه الله تعالیٰ دَ دوی په پټو رازونو او دَ دوی په پټو خبرو ښهٔ خبر دے او دا چه الله تعالیٰ دَ غیبو په

الْغُيُوبِ ﴿٧٨﴾ الَّذِينَ يَلْمِزُونَ الْمُطَّوِّعِينَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ

په غیبو | کوم (منافقان) چه | الزام لګوی | په خوشحالئ سره خیرات کوونکو | مؤمنانو باندې

خبرو باندې ښهٔ عالم دے . دا هغه خلق دی چه په خپله مرضئ خیرات کوونکو مؤمنانو ته دَ خیرات

فِي الصَّدَقَاتِ وَالَّذِينَ لَا يَجِدُونَ إِلَّا جُهْدَهُمْ

په صدقو کښې | او کوم (مؤمنان) چه | څهٔ نهٔ بیامومی | سوا دَ خپل محنت نه

په حقله ملامتیا کوی ، او هغه خلق چه نهٔ بیاموی مګر دَ خپل محنت (صله) دا

فَيَسْخَرُونَ مِنْهُمْ ۙ سَخِرَ اللَّهُ مِنْهُمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ

نو دوی ټوقې کوی | هغوئ پورې | ټوقې وکړے الله | دَ دوی سره | او دَ دوی دَ پاره | عذاب دے

منافقان دوی پورے ټوقې کوی ، الله تعالیٰ دَ دوی دَ مذاق (بدله) ورکړه او دَ دوئ دَ پاره

أَلِيمٌ ﴿٧٩﴾ اسْتَغْفِرْ لَهُمْ أَوْ لَا تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ إِنْ تَسْتَغْفِرْ

دردناک | ته بخښنه غواړے | دوئ دَ پاره | یا بخښنه نهٔ غواړے | دوئ دَ پاره | که ته بخښنه غواړے

دردناک عذاب مقرر دے . که ته دَ دوی دَ پاره بخښنه غواړے او که نهٔ غواړے که ته ورله (یو ځل نه)

لَهُمْ سَبْعِينَ مَرَّةً فَلَنْ يَغْفِرَ اللَّهُ لَهُمْ ۚ ذَٰلِكَ

دوی دَ پاره | اویا (٧٠) | ځله (هم) | نو هیڅکله به ونهٔ بخښی | الله | دوی | دا

اویا ځله بخښنه هم غواړے خو الله تعالیٰ به دوی هیچرے ونهٔ بخښی ، دا ځکه چه

بِأَنَّهُمْ كَفَرُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ ۗ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي

په دې وجه چه دوی | انکار وکړو | دَ الله | او دَ دهٔ دَ رسول | او الله | لاره نهٔ ښائی

دوئ دَ الله تعالیٰ او دَ دهٔ دَ رسول نه انکار کړے دے ، او الله تعالیٰ بدعمله قوم په

ع ٨/١٠ ١٦ الْقَوْمَ الْفَاسِقِينَ ﴿٨٠﴾ فَرِحَ الْمُخَلَّفُونَ بِمَقْعَدِهِمْ

نا فرمانو خلقو ته | خوشحاله شول | وروستو پاتے شوی (له جهاده) | په خپله ناسته

سمه لاره نهٔ بوځی . دا وروستو پاتے کیدونکی خلق دَ پیغمبر نه په وروستو

خِلٰفَ رَسُوْلِ اللّٰهِ وَكَرِهُوْٓا اَنْ يُّجَاهِدُوْا بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ

پہ خلاف دَ پیغمبرِ دَ خدائے | او خوښه نهٔ کړله دوی | چه جهاد وکړی دوی | په مالونو خپلو | او په ځانونو خپلو

پاتے کیدو باندِ خوشحاله شول ، او دائے خوښه نهٔ کړه چه په خپل مال او سر باندِ دَ الله تعالیٰ په لار کښے

فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَقَالُوْا لَا تَنْفِرُوْا فِي الْحَرِّ ؕ قُلْ

په لاره کښے | دَ الله | او دوی ووئیل (نورونه) | مه وځئ (جهاد له) | په ګرمئ کښے | ووایه

جهاد وکړی۔ او خلقو ته ئے (هم) ووئیل چه په داسے سخته ګرمئ کښے (جهاد دَ پاره) سفر مه کوئ تهٔ

نَارُ جَهَنَّمَ اَشَدُّ حَرًّا ؕ لَوْ كَانُوْا يَفْقَهُوْنَ ۝٨١ فَلْيَضْحَكُوْا قَلِيْلًا

اور دَ دوزخ | ډیر سخت دے | په ګرموالی کښے | کاش چه دوی پوهیدے | پس وُدِ خاندی دوی | لږ

ووایه چه دَ دوزخ اور خو دَ دے نه زیات ګرم دے کاش چه دوی په دے خبره پوهیدے۔ نو لږ دے ورځے دِ وخاندی

وَّلْيَبْكُوْا كَثِيْرًا ۚ جَزَآءًۢ بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ۝٨٢ فَاِنْ

او وُدِ ژاړی | ډیر | دا سزا | دَ هغه څهٔ ده | چه دوی به کول | پس که چرے

او بیا ډیره موده دِ ژاړی ، دَ دوی دَ کارونو هم دغه سزا ده۔ نو که چرے

رَّجَعَكَ اللّٰهُ اِلٰى طَآئِفَةٍ مِّنْهُمْ فَاسْتَاْذَنُوْكَ

واپس راوستے تهٔ | الله | دَ یوے ډلے طرف ته | له دوی نه | پس اجازت وغواړی دوی له تا نه

تهٔ الله تعالیٰ دَ دوئ (منافقینو) یو تولی طرف ته واپس راوستے او (په بله موقعه) تا نه میدان جنګ طرف

لِلْخُرُوْجِ فَقُلْ لَّنْ تَخْرُجُوْا مَعِيَ اَبَدًا وَّلَنْ تُقَاتِلُوْا

دَ وتلو (جنګ دَ پاره) | نو ووایه | چه هیڅ کله تاسو وتلے نهٔ شئ | ما سره | چرے هم | او هیڅ کله تاسو جنګیدے نهٔ شئ

ته دَ وتلو اجازت وغواړی نو ورته جواب ورکړه چه تاسو ما سره هیچرے وتلے نهٔ شئ او زما په ملګرتیا کښے هیڅ کله دَ

مَعِيَ عَدُوًّا ؕ اِنَّكُمْ رَضِيْتُمْ بِالْقُعُوْدِ اَوَّلَ مَرَّةٍ فَاقْعُدُوْا

زما په ملګرتیا کښے | دښمن سره | بیشکه تاسو | راضی شوئ | په کښیناستلو | په اول | ځل | پس کښینئ تاسو

دَ دښمن مقابله نهٔ شئ کولے۔ بیشکه تاسو په اول ځل (په کورونو کښے) ناستهٔ خوښه کړے وه نو اوس هم تاسو

مَعَ الْخٰلِفِيْنَ ۝٨٣ وَلَا تُصَلِّ عَلٰٓى اَحَدٍ مِّنْهُمْ مَّاتَ اَبَدًا

دَ وروستو پاتے خلقو سره | او مهٔ کوه مونځ (دَ جنازے) | په هیڅ کس باندِ | له دوی نه | چه مړ شی | چرے هم

وروستو پاتے خلقو سره کښینئ۔ او (اے نبیؐ!) آئنده چه په دوی کښے څوک مړ شی نو مهٔ دَ هغهٔ جنازه کوه

وَلَا تَقُمْ عَلٰى قَبْرِهٖ ؕ اِنَّهُمْ كَفَرُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ

او مهٔ وُدریږه ته | په قبر دَ هغهٔ | بیشکه دوی انکار وکړو | دَ الله | او دَ دهٔ دَ رسول

او مهٔ ئے په قبر وُدریږه ، ځکه چه دوی دَ الله تعالیٰ او دَ دهٔ دَ رسول نه انکار کړے دے

وَمَاتُوْا وَهُمْ فٰسِقُوْنَ ۝٨٤ وَلَا تُعْجِبْكَ اَمْوَالُهُمْ وَاَوْلَادُهُمْ

او دوی مړهٔ شول | او دوی نافرمانه وُو | او په تعجب کښے دِ وانهٔ چوی | مالونه دَ دوی | او اولاد دَ دوی

او په داسے حالت کښے مړهٔ شوی دی چه دوی نافرمانه وو۔ دَ دوی مالونه او دَ دوی اولاد تا په تعجب کښے وانهٔ چوی

إِنَّمَا يُرِيدُ اللّٰهُ أَنْ يُعَذِّبَهُمْ بِهَا فِي الدُّنْيَا وَتَزْهَقَ
بیشکه | غواړی الله | چه | عذاب ورکړی دوی ته | دَدے په وجه | په دنیا کښے | او وُځی
الله تعالیٰ خو صرف دا غواړی چه دوی ته په هغه څیزونو سره په دنیا کښے عذاب ورکړی او دَ دوی ساه
أَنْفُسُهُمْ وَهُمْ كٰفِرُونَ ﴿٨٥﴾ وَإِذَآ أُنْزِلَتْ سُورَةٌ أَنْ اٰمِنُوا
روحونه دَ دوی | او دوی کافروی | او هر کله چه نازل کړے شی | یو سورت | چه ایمان راوړئ
وُځی نو په داسے حالت کښے چه دوی کافران وی۔ او کله چه یو سورت په دِے مضمون را نازل شی چه تاسو
بِاللّٰهِ وَجَاهِدُوا مَعَ رَسُولِهِ اسْتَأْذَنَكَ أُولُوا الطَّوْلِ
په الله | او جهاد وکړئ | په ملګرتیا کښے | دَ دهٔ دَ رسول | نو اجازت غواړی له تا نه | مالداره خلق
په الله ایمان راوړئ او دَ رسول په ملګرتیا کښے جهاد وکړئ، نو له دوی نه مالداره خلق درنه
مِنْهُمْ وَقَالُوا ذَرْنَا نَكُنْ مَعَ الْقٰعِدِينَ ﴿٨٦﴾ رَضُوا
له دوی نه | او وائی | پریږده مونږ | چه شو مونږ | دَ کښیناستونکو سره | دوی راضی شول
اجازت غواړی او وائی چه مونږ پریږده چه دَ ناستو خلقو سره (ناست) پاتے شو۔ دوی پخپله
بِأَنْ يَكُونُوا مَعَ الْخَوَالِفِ وَطُبِعَ عَلٰى قُلُوبِهِمْ فَهُمْ
په دے چه وی دِ دوی | سره | دَ وروستو پاتے کیدونکو ښځو | او مهر وو هلے شو | په زړونو دَ دوی | پس دوی
په دے راضی دی چه کور ناستو زنانو سره ملګری پاتے شی او دَ دوی په زړونو مهر لګولے شوے دے پس دوی
لَا يَفْقَهُونَ ﴿٨٧﴾ لٰكِنِ الرَّسُولُ وَالَّذِينَ اٰمَنُوا مَعَهُ
نهٔ پوهیږی | لیکن | رسول | او هغه کسان چه | ایمان ئے راوړو | دَ دهٔ سره
نهٔ پوهیږی، لیکن رسول او هغه خلقو چه دَ دهٔ سره ئے ایمان راوړو په خپلو
جٰهَدُوا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ ۚ وَأُولٰٓئِكَ لَهُمُ
دوی جهاد وکړو | په خپلو مالونو سره | او په خپلو ځانونو سره | او هم دا کسان دی | چه دوی دَ پاره
مالونو او په خپلو ځانونو سره ئے جهاد وکړو، هم دا خلق دی چه دَ دوی دَ
الْخَيْرٰتُ ۖ وَأُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴿٨٨﴾ أَعَدَّ اللّٰهُ لَهُمْ
بښیګړے دی | او هم دا خلق دی | خلاصے موندونکی | تیار کړی دی | الله | دوی دَ پاره
پاره بښیګړے دی او هم دا کسان کامیاب دی۔ الله تعالیٰ دَ دوی دَ پاره داسے باغونه
جَنّٰتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهٰرُ خٰلِدِينَ فِيهَا ۚ
باغونه | چه بهیږی به | دَ هغے لاندِ | نهرونه | همیشه به وی دوی | په هغے کښے
تیار کړی دی چه دَ هغے لاندِ به نهرونه بهیږی، هم په دے کښے به دوی همیشه وی
ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ ﴿٨٩﴾ وَجَآءَ الْمُعَذِّرُونَ مِنَ الْأَعْرَابِ ع ١١ ٩ ١٧
دا ده | کامیابی | ډیره لویه | او راغلل | عذر کوونکی | له کلی والو نه
او دا یوه لویه کامیابی ده۔ او له کلی والو نه ځنے بهانے کر راغلل،

لِيُؤْذَنَ لَهُمْ وَقَعَدَ الَّذِينَ كَذَبُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ
چه رخصت ورکړے شي | دوی ته | او کښیناستل | هغه کسان کوم چه | دروغ وویل | الله | او د هٔ رسول ته
چه (د پاتے کیدو) اجازت ورته ورکړے شي او هغه کسان بالکل کښیناستل چا چه د الله او د رسول سره په دروغو وعده
سَيُصِيبُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٩٠﴾ لَيْسَ
زر به ورسیږی | هغو ته چه | کافران دی | له دوی نه | عذاب | دردناک | نشته دے
کړے وه ، به دوی کښے څوک چه په کفر کښے پاتے شي هغوی له دردناک عذاب مقرر دے . په
عَلَى الضُّعَفَاءِ وَلَا عَلَى الْمَرْضَىٰ وَلَا عَلَى الَّذِينَ لَا يَجِدُونَ
په کمزورو بانډې | او نهٔ په رنځورانو بانډې | او نهٔ په هغه خلقو بانډې کوم چه | نهٔ بیا مومی
ضعیفانو او په ناروغو او په هغه چا چه (د جهاد) خرچه نهٔ بیا مومی
مَا يُنفِقُونَ حَرَجٌ إِذَا نَصَحُوا لِلَّهِ وَرَسُولِهِ ۚ مَا
هغه څیز چه | خرچ کړی | هیڅ ګناه | هر کله چه دوی خیرخواهی کوی | د الله | او د هٔ د رسول | نشته دے
هیڅ ګناه نشته کهٔ دوی د الله تعالیٰ او د هٔ د رسول سره مخلص وی ، په
عَلَى الْمُحْسِنِينَ مِن سَبِيلٍ ۚ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٩١﴾ وَ
په نیکی کوونکو بانډې | (څهٔ) الزام | او الله | بخښونکے | مهربان دے | او
داسے نیکانو هیڅ الزام نشته ، او الله تعالیٰ بخښونکے مهربان دے . او
لَا عَلَى الَّذِينَ إِذَا مَا أَتَوْكَ لِتَحْمِلَهُمْ قُلْتَ لَا أَجِدُ مَا
نهٔ په هغه خلقو چه | هر کله چه دوی راشی تا ته | د پاره د دے چه ته سورلی ورکړے دوی ته | تو تا وویل | چه زهٔ نهٔ بیا مومم هغه څه
په هغه چا هم څهٔ ګناه نشته چه تا له راشی چه (جهاد له) ورله سورلی ورکړے او تهٔ ورته ووائے چه ما سره سورلی
أَحْمِلُكُمْ عَلَيْهِ تَوَلَّوا وَّأَعْيُنُهُمْ تَفِيضُ مِنَ الدَّمْعِ
چه زهٔ سواره کړم تاسو | په هغے بانډې | نو دوی واپس شول | او د دوی سترګے | بهیږی | له اوښکو نه
نشته چه تاسو پرے سواره کړم هغوی واپس شی او د سترګو نه ئے د غم اوښکے
حَزَنًا أَلَّا يَجِدُوا مَا يُنفِقُونَ ﴿٩٢﴾ إِنَّمَا السَّبِيلُ عَلَى الَّذِينَ
(له دے) غم نه | چه دوی نهٔ بیا مومی | هغه څهٔ چه | دوی خرچ کړی | بیشکه | الزام | (خو) په هغو کسانو دے
څاڅی ځکه چه د هغوی سره د خرچ د پاره مال نهٔ وی . (او الزام) صرف په هغو خلقو دے چه له تا
يَسْتَأْذِنُونَكَ وَهُمْ أَغْنِيَاءُ ۚ رَضُوا بِأَن يَكُونُوا
چه اجازت غواړی له تا نه | او دوی | مالداره دی | دوی راضی شول | په دے چه | دوی پاتے شی
نه (د ورستو پاتے کیدو) اجازت غواړی سره د دے چه هغوی مالداره وی ، دوی د ورستو پاتے کیدونکو ښځو سره
مَعَ الْخَوَالِفِ وَطَبَعَ اللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ فَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٩٣﴾
د ورستو پاتے کیدونکو ښځو سره | او مهر لګولے دے | الله | د دوی په زړونو بانډې | پس دوی | نهٔ پوهیږی
پاتے کیدل خوښ کړل او الله تعالیٰ د دوی په زړونو باندې مهر لګولے دے پس دوی (د جهاد په برکتونو) نهٔ پوهیږی

يَعْتَذِرُوْنَ اِلَيْكُمْ اِذَا رَجَعْتُمْ اِلَيْهِمْ ؕ قُلْ لَّا تَعْتَذِرُوْا

عذر به وکړی دوی | تاسو ته | هرکله چه واپس راشئ تاسو | دوی ته | ووایه | عذر مه کوئ

تاسو ته (رنګ رنګ) عذرونه پیش کوی، هرکله چه تاسو واپس ورشئ ورته ووایه چه بهانې مه کوئ

لَنْ نُّؤْمِنَ لَكُمْ قَدْ نَبَّاَنَا اللّٰهُ مِنْ اَخْبَارِكُمْ ؕ وَسَيَرَى اللّٰهُ

مونږ هیڅکله یقین نه کوو | په تاسو | مونږ ته ښودلی دی الله | ستاسو خبرونه (حالات) | او ګوری به | الله

مونږ ستاسو په خبره یقین نه کوو، الله تعالیٰ مونږ ته ستاسو حالات ښودلی دی، او بیا به هم الله تعالیٰ او

عَمَلَكُمْ وَرَسُوْلُهٗ ثُمَّ تُرَدُّوْنَ اِلٰى عٰلِمِ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ

ستاسو عمل ته | او د دهٔ رسول | بیا | به واپس کړے شئ | د هغهٔ طرف ته چه پوهیږی په پټو | او په ښکاره

رسول ستاسو کارونه ووینی ، بیا به الله تعالیٰ ته واپس لاړ شئ چه پټ او ښکاره هر څهٔ ورته معلوم دی

فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿٩٤﴾ سَيَحْلِفُوْنَ بِاللّٰهِ لَكُمْ

پس هغه به وښائی تاسو ته | هغه څهٔ | چه تاسو به کول | ډیر زر به دوی قسمونه خوری | په الله | ستاسو په وړاندې

نو هغه به درته وښائی چه کوم کوم کارونه تاسو کول ، چه تاسو واپس شئ نو دوی به درته په الله تعالیٰ قسمونه

اِذَا انْقَلَبْتُمْ اِلَيْهِمْ لِتُعْرِضُوْا عَنْهُمْ ؕ فَاَعْرِضُوْا عَنْهُمْ ؕ اِنَّهُمْ

هرکله چه راواپس شئ تاسو | د دوی طرف ته | چه تاسو مخ واړوئ | له دوی نه | پس تاسو مخ واړوئ | له دوی نه | بیشکه دوی

خوری ، د پاره د دے چه تاسو ترے نه واوړئ ، نو تاسو ترے نه مخ واړوئ (ځکه چه) دوی

رِجْسٌ ؗ وَّمَاْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ ۚ جَزَآءًۢ بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ﴿٩٥﴾

ناپاک (دی) | او د دوی ځائے | دوزخ دے | بدله (ده) | د هغه کارونو | چه دوی به کول ۔

پلید دی او د دوی تیکاونړه دوزخ دے او دا د دوی د عملونو بدله ده ۔

يَحْلِفُوْنَ لَكُمْ لِتَرْضَوْا عَنْهُمْ ۚ فَاِنْ تَرْضَوْا عَنْهُمْ فَاِنَّ اللّٰهَ

دوی به قسمونه خوری | تاسو ته | چه تاسو راضی شئ | له دوی نه | پس که چرے تاسو راضی شوئ | له دوی نه | پس بیشکه الله

دوئ تاسو ته ځکه قسمونه خوری چه تاسو ترے نه راضی شئ، نو الله تعالیٰ د داسے شرارتی خلقو نه

لَا يَرْضٰى عَنِ الْقَوْمِ الْفٰسِقِيْنَ ﴿٩٦﴾ اَلْاَعْرَابُ اَشَدُّ كُفْرًا وَّنِفَاقًا

به نهٔ راضی کیږی | د هغه خلقو نه | چه نافرمانه دی | دا کلی وال | ډیر سخت دی | په کفر | او نفاق کښے

هیڅرے نهٔ راضی کیږی ۔ دا کلی وال (منافقان) په کفر او نفاق کښے ډیر سخت دی

وَّاَجْدَرُ اَلَّا يَعْلَمُوْا حُدُوْدَ مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ ؕ وَاللّٰهُ

او د دے زیات لائق دی | چه نهٔ دی پوهیږی د دوی | په احکامو | چه نازل کړل | الله | په خپل رسول | او الله

او د نادانئ په وجه) د دے لائق دی چه الله تعالیٰ په خپل رسول باندې څهٔ نازل کړی دی د هغے حدودو نه واقف نهٔ وی

عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ﴿٩٧﴾ وَمِنَ الْاَعْرَابِ مَنْ يَّتَّخِذُ مَا يُنْفِقُ

پوهه | د حکمت خاوند دے | او ځنے کلی وال | هغه دی چه خیال کوی | هغه څهٔ چه دوی خرڅ کوی

الله تعالیٰ په هر څهٔ پوهه او حکمت خاوند دے او په کلی والو کښے ځنے کسان داسے دی چه د الله تعالیٰ په لار کښے

مَغْرَمًا وَّيَتَرَبَّصُ بِكُمُ الدَّوَآئِرَ ۭ عَلَيْهِمْ دَآئِرَةُ السَّوْءِ ۭ

تاوان | او انتظار کوی | په حق ستاسو کښې | (د زمانے) د گردشونو | هم په دوی دے | گردش | بد

خرڅ کول تاوان گڼړی او په تاسو باندې د انقلاباتو انتظار کوی خو خراو خت هم پخپله په دوی راتلونکے دے

وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ (٩٨) وَمِنَ الْاَعْرَابِ مَنْ يُّؤْمِنُ بِاللّٰهِ

او الله | اورېدونکے | پوهه دے | او ځنے کلی وال | هغه دی چه ایمان لری | په الله

او الله تعالیٰ هر څهٔ اورې په هر څهٔ پوهه دے ۔ او ځنے کلی وال داسے هم دی چه په الله تعالیٰ او په

وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَيَتَّخِذُ مَا يُنْفِقُ قُرُبٰتٍ عِنْدَ اللّٰهِ

او په ورځ | د اٰخرت | او گڼړی | هغه څهٔ چه | دوی خرڅ کوی | نزدیکت | په نزد د الله

ورځ د اٰخرت ایمان لری ، او څهٔ چه خرڅ کوی هغه د الله تعالیٰ په دربار کښې د نزدیکت او د پیغمبر

وَصَلَوٰتِ الرَّسُوْلِ ۭ اَلَآ اِنَّهَا قُرْبَةٌ لَّهُمْ ۭ سَيُدْخِلُهُمُ

او د رسول ﷺ د دعاگانو (اخستلو ذریعه) | واورئ | بیشکه دا | نزدیکت دے | دوی د پاره | زر به داخل کړی دوی

د دُعا اخستلو ذریعه گڼړی ، هو! بیشکه دا خرڅ کول د دوی د نزدیکت ذریعه دہ ، الله تعالیٰ به ئے ډیر زر

اللّٰهُ فِيْ رَحْمَتِهٖ ۭ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ (٩٩) وَالسّٰبِقُوْنَ الْاَوَّلُوْنَ

الله | په خپل رحمت کښې | بیشکه الله | بخښونکے | مهربان دے | او وړاندې والے کوونکی | د ټولو نه وړومبی

د خپل رحمت د سیوری لاندې راولی ، بیشکه الله تعالیٰ بخښونکے مهربان دے ۔ او هغه مهاجر او انصار چه د

مِنَ الْمُهٰجِرِيْنَ وَالْاَنْصَارِ وَالَّذِيْنَ اتَّبَعُوْهُمْ بِاِحْسَانٍ ۙ رَّضِيَ

له مهاجرینو | او له انصارو نه | او هغه خلق چه | پیروی ئے کړے ده د دوی | په نیکئ کښې | راضی شو

ټولو نه وړومبے ئے ایمان ته سبقت کړے دے او څوک چه په اخلاص وروسته روان شوی دی ، د هغو

اللّٰهُ عَنْهُمْ وَرَضُوْا عَنْهُ وَاَعَدَّ لَهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ

الله | له دوی نه | او دوی راضی شول | د هغهٔ نه | او تیار کړی ئے دی | دوی له | باغونه | چه بهیږی

ټولو نه الله تعالیٰ راضی شوے دے او هغوی د الله تعالیٰ نه راضی شوی دی او د اسے باغونه ئے ورله تیار کړی دی چه د هغے

تَحْتَهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ۭ ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ (١٠٠)

د هغے لاندې | نهرونه | همیشه به وی | په هغے کښې | همیشه | هم دا دہ | کامیابی | لویه

لاندې نهرونه بهیږی ، تل ترتله به پکښے و سیږی ، دا ډیره لویه کامیابی دہ ۔

وَمِمَّنْ حَوْلَكُمْ مِّنَ الْاَعْرَابِ مُنٰفِقُوْنَ ۭۛ وَمِنْ اَهْلِ الْمَدِيْنَةِ ڀ

او ځنے له هغو نه | چه تاسو گیر چاپیره دی | له کلی والو نه | منافقان دی | او ځنے له مدینے والو نه (هم)

او (اے مسلمانانو!) تاسو نه گیر چاپیره په کلی والو کښې ډیر خلق منافقان دی او څهٔ په مدینے والو کښې دی

مَرَدُوْا عَلَى النِّفَاقِ ۣ لَا تَعْلَمُهُمْ ۭ نَحْنُ نَعْلَمُهُمْ ۭ

چه ټینگ دی | په نفاق باندې | نهٔ پیژنئ تاسو دوی | هم مونږ | دوی پیژنو

چه په نفاق ټینگ ولاړ دی ۔ تهٔ خو دوی نهٔ پیژنے (خو) مونږ دوی ښهٔ پیژنو

سَنُعَذِّبُهُمْ مَّرَّتَيْنِ ثُمَّ يُرَدُّوْنَ اِلٰى عَذَابٍ عَظِيْمٍ ۝۱۰۱ وَاٰخَرُوْنَ

زر به مونږ عذاب ورکړو دوی ته | دوه ځله | بیا به راوګرځولے شي دوی | ذَ لوئے عذاب طرف ته | او نور خلق دی
او ډیر زر به مونږ دوی ته دوه سزا ګانے ورکړو او بیا به په آخرت کښے لوئے عذاب ته وسپارلے شي ۔ او ځنے نور

اعْتَرَفُوْا بِذُنُوْبِهِمْ خَلَطُوْا عَمَلًا صَالِحًا وَّاٰخَرَ سَيِّئًا

چه هغوی اقرار وکړو | ذَ خپلو ګناهونو | ګومو چه ګډ وډ عملونه وکړل | (څه) نیک | او څه بد
کسان داسے دی چه خپله ګناهونه مَنلے ده ، عملونه ئے ګډ وډ دی څه نیک او څه بد ۔

عَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّتُوْبَ عَلَيْهِمْ ۭ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝۱۰۲ خُذْ

نزدے ده چه الله | توبه قبوله کړی | ذَ دوی | بیشکه الله | بخښونکے | مهربان دے | واخله
اُمید دے چه الله تعالیٰ به ذَ دوی توبه قبوله کړی بیشکه الله تعالیٰ بخښونکے مهربان دے ۔ (اے پیغمبره!)

مِنْ اَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيْهِمْ بِهَا

ذَ دوی ذَ مالونو نه | صدقه | چه ته پاک کړے دوی | او صفا کړے دوی | په دے (صدقه)
ذَ دوئ ذَ مالونو نه صدقه وصول کړه چه ذَ دِے په ذریعه ئے پاک او صفا کړے ، او

وَصَلِّ عَلَيْهِمْ ۭ اِنَّ صَلٰوتَكَ سَكَنٌ لَّهُمْ ۭ وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ

او دعا کوه | دوی ته | بیشکه ستا دُعا | تسکین دے | دوی ځ پاره | او الله | آوریدونکے
ذَ دوی په حق کښے دعا کوه ، ستا دُعا ذَ دوی ذَ تسلئ سبب دے ، او الله تعالیٰ هرڅه آوری

عَلِيْمٌ ۝۱۰۳ اَلَمْ يَعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ هُوَ يَقْبَلُ التَّوْبَةَ عَنْ عِبَادِهٖ

پوهه دے | آیا نه پوهیږی دوی | چه بیشکه هم الله | قبلوی | توبه | ذَ خپلو بندګانو
په هرڅه پوهه دے ۔ آیا دوی ته معلومه نه ده چه هم الله تعالیٰ ذَ خپلو بندګانو توبه قبلوی

وَيَاْخُذُ الصَّدَقٰتِ وَاَنَّ اللّٰهَ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ ۝۱۰۴ وَقُلِ

او اخلی | صدقے | او چه هم الله | توبه قبلونکے | مهربان دے | او ووایه
او هم هغه صدقے قبلوی او دا چه هم الله تعالیٰ توبه قبلوی او مهربان دے او ورته ووایه

اعْمَلُوْا فَسَيَرَى اللّٰهُ عَمَلَكُمْ وَرَسُوْلُهٗ وَالْمُؤْمِنُوْنَ ۭ

عمل کوئ تاسو | بیا به ګوری | الله | ستاسو عمل | او رسول ذَ هغه | او مؤمنان هم
چه تاسو (نیک) عملونه کوئ ، الله تعالیٰ او رسول او مومنان ستاسو طرز عمل ته ګوری ۔

وَسَتُرَدُّوْنَ اِلٰى عٰلِمِ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ فَيُنَبِّئُكُمْ

او زر به تاسو واپس کړے شئ | طرف ذَ پوهیدونکی | ذَ پټو | او ښکاره نه | پس هغه به تاسو ته وښائی
او هغه ذات ته به واپس کیږئ چه پټ او ښکاره هرڅه ورته معلوم دی ، نو هغه به مو خبر کړی

بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ۝۱۰۵ وَاٰخَرُوْنَ مُرْجَوْنَ لِاَمْرِ اللّٰهِ اِمَّا يُعَذِّبُهُمْ

هغه څه چه تاسو به کول ۔ | او څه (خلق نور هم) دی | چه پاتے کړے شول | ذَ الله حکم پورے | یا به عذاب ورکړی دوی ته
چه تاسو څه څه کار ونه کول ۔ او ځنے نور خلق دی چه ذَ هغوی معامله ذَ الله تعالیٰ حکم ته پاتے ده یا به سزا ورکړی

وَاِمَّا يَتُوْبُ عَلَيْهِمْ ؕ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ (١٠٦) وَالَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا

او یا به معاف کړی | دوی | او الله | پوهه | دَحکمت خاوند دے | او هغه خلق | کوم چه جوړ کړو

او یا به ئے توبه قبوله کړی او الله تعالیٰ په هر څه پوهه دَحکمت خاوند دے. او هغه نور خلق دی چه یو جومات

مَسْجِدًا ضِرَارًا وَّكُفْرًا وَّتَفْرِيْقًا ۢ بَيْنَ الْمُؤْمِنِيْنَ

یو جومات | دَ ضرر ورکولو | او دَ کفر کولو | او اختلاف پیدا کولو دَ پاره | دَ مؤمنانو په مینځ کښے

ئے دَ ضرر رسولو په غرض او دَ کفر دَ پاره او دَ مسلمانو ترمینځه دَ جدا ئی راوستو په نیت جوړ کړے دے

وَاِرْصَادًا لِّمَنْ حَارَبَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ مِنْ قَبْلُ ؕ وَلَيَحْلِفُنَّ

او دَ مورچل جوړولو | هغه چا دَ پاره | چه جنګ ئے کړے دَ الله | او دَ هغه دَ رسول سره | د وړاندے نه | او دوی به ضرور قسمونه خوری

او دَ هغه چا دَ استوګنے په خاطر چه دَ پخوا راسے دَ الله او دَ رسول مخالفت کوی ، او دوی به درته قسمونه

اِنْ اَرَدْنَآ اِلَّا الْحُسْنٰى ؕ وَاللّٰهُ يَشْهَدُ اِنَّهُمْ لَكٰذِبُوْنَ (١٠٧)

چه نه دے اراده کړے موږ (دَ څه نوره) سیوا دَ ښیګړے نه | او الله | ګواهی ورکوی | چه یقیناً دوی | دروغژن دی .

خوری چه زموږ غرض دَ ښیګړے نه بغیر نور هیڅ نشته او الله تعالیٰ ګواه دے چه دوئی دروغ وائی .

لَا تَقُمْ فِيْهِ اَبَدًا ؕ لَمَسْجِدٌ اُسِّسَ عَلَى التَّقْوٰى

ته مه وَدریږه | په هغے کښے | هیڅ کله | خامخا هغه جومات | چه بنیاد ئے ایښودے شوے دے | په پرهیزګارئ باندے

ته په دغه جومات کښے هیچرے (مونځ ته) مه وَدریږه ، البته دَ کوم جومات بنیاد چه دَ ډیر و مبئ ورځے نه په تقوی

مِنْ اَوَّلِ يَوْمٍ اَحَقُّ اَنْ تَقُوْمَ فِيْهِ ؕ فِيْهِ رِجَالٌ

دَ ډیر و مبئ ورځے نه | هغه زیات حق لری | چه ودریږے ته | په هغے کښے | په هغے کښے داسے خلق دی

ایښودے شوے دے ، هغه دَدے قابل دے چه ته پکښے (مونځ ته) وَدریږے ، په هغے کښے داسے خلق دی

يُّحِبُّوْنَ اَنْ يَّتَطَهَّرُوْا ؕ وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُطَّهِّرِيْنَ (١٠٨) اَفَمَنْ اَسَّسَ

چه خوښوی | چه دوی پاک شی | او الله | دوست لری | پاک او سپیڅلی | پس آیا هغه کس چه بنیاد ئے کیښود

چه پاکه استوګنه خوښوی ، او پاک او سپیڅلی خلق دَ الله تعالیٰ خوښ وی ، آیا چا چه دَ خپل عمارت

بُنْيَانَهٗ عَلٰى تَقْوٰى مِنَ اللّٰهِ وَرِضْوَانٍ خَيْرٌ اَمْ مَّنْ اَسَّسَ

دَ خپلے آبادئ | په ویره | دَ الله نه | او په رضامندئ (دَ هغه) | ډیر ښه دے | یا | هغه کس چه | بنیاد ئے کیښود

بنیاد دَ الله تعالیٰ نه په ویره او دَ هغه دَ رضامندئ په خاطر ایښے دے هغه بهتر دے او که هغه څوک چه دَ

بُنْيَانَهٗ عَلٰى شَفَا جُرُفٍ هَارٍ فَانْهَارَ بِهٖ فِيْ نَارِ جَهَنَّمَ ؕ

دَ خپلے آبادئ | په غاړه | دَ یوے کندے | غورزیدونکے | پس وُغورزیده | په ده سره | په اور کښے | دَ دوزخ

خپل عمارت بنیاد ئے دَ یو زوړند غورزیدونکی کمر په سر ایښے دے او هغے عمارت دَ غه کس خپل ځان سره دَ دوزخ

وَاللّٰهُ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ (١٠٩) لَا يَزَالُ بُنْيَانُهُمُ الَّذِىْ

او الله | لار نه ښائی | قوم | دَ ظالمانو ته | همیشه به وی | آبادئ دَ دوی | کومه چه

په اور کښے وُغورزولو او الله تعالیٰ ظالمانو ته هدایت نه کوی . کوم عمارت چه دوی جوړ کړے دے دا به تل

بَنَوْا رِيْبَةً فِيْ قُلُوْبِهِمْ اِلَّآ اَنْ تَقَطَّعَ قُلُوْبُهُمْ ۗ وَاللّٰهُ
دوی جوړه کړې ده | شک غورزونکی | د دوی په زړونو کښې | مګر دا چه | ټکړې ټکړې شی | زړونه د دوی | او الله
عمر د دوی په زړونو کښې د شک زړې دی ، تر هغې چه د دوی زړونه (د جومات په غورزولو) ټوټې ټوټې شی - او
عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ﴿١١٠﴾ اِنَّ اللّٰهَ اشْتَرٰى مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ اَنْفُسَهُمْ وَاَمْوَالَهُمْ
پوهه | د حکمت خاوند دے | بیشکه الله | اخستلی دی | د مؤمنانو نه | د دوی ځانونه | او د دوی مالونه
الله تعالیٰ ښه پوهه دانا دے - بیشکه الله تعالیٰ د مؤمنانو ځانونه او د دوی مال دولت په دے بدله کښې په بیعه اخستی
بِاَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ ؕ يُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَيَقْتُلُوْنَ وَيُقْتَلُوْنَ
څکه چه دوی له | جنت (دے) | دوی جنګ کوی | د الله په لاره کښې | پس دوی وژنی | او دوی وژلے شی
دی چه دوی ته به جنت ملاویږی ، دوی د الله په لاره کښې جنګ کوی ، پس دوی (دښمنان) وژنی او وژلے کیږی
وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا فِي التَّوْرٰىةِ وَالْاِنْجِيْلِ وَالْقُرْاٰنِ ؕ وَمَنْ اَوْفٰى
وعده ده | د هغه په ذمه | رښتینی | په تورات | او انجیل | او قرآن کښې | او څوک دے زیات پوره کوونکے
د الله تعالیٰ دا وعده د تورات ، انجیل او د قران په رو سره رښتینی ده ، او د الله تعالیٰ نه زیات
بِعَهْدِهٖ مِنَ اللّٰهِ فَاسْتَبْشِرُوْا بِبَيْعِكُمُ الَّذِيْ بَايَعْتُمْ بِهٖ ؕ وَ
خپله وعده | د الله نه | پس خوشحاله اوسئ | په خپله هغه سودا | کومه چه تاسو وکړه (الله سره) | او
د خپل قول پوره کوونکے نور څوک کیدے شی ، پس تاسو نه په خپله دے سودا چه تاسو الله تعالیٰ سره کړے ده خوشخبری وی
ذٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ﴿١١١﴾ اَلتَّآئِبُوْنَ الْعٰبِدُوْنَ الْحٰمِدُوْنَ السَّآئِحُوْنَ
هم دا ده | کامیابی | لویه | دوی توبه کوونکی | عبادت کوونکی | حمد وثنا کوونکی | روژه نیوونکی
او دا ډیره لویه کامیابی ده - دا خلق توبه ویستونکی ، عبادت کوونکی ، حمد وثنا کوونکی روژه نیوونکی
الرّٰكِعُوْنَ السّٰجِدُوْنَ الْاٰمِرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَالنَّاهُوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ
رکوع کوونکی | سجده کوونکی | حکم کوونکی | د نیک کار | او منع کوونکی | د بد کار نه
رکوع کوونکی ، سجده کوونکی ، خلقو ته د نیکئ حکم کوونکی ، او د بدو کارونو نه منع کوونکی
وَالْحٰفِظُوْنَ لِحُدُوْدِ اللّٰهِ ؕ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿١١٢﴾ مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ
او حفاظت کوونکی | د الله د حدودو | او زیرے ورکړه | مسلمانانو ته | روا نه دی | پیغمبر له
او د الله تعالیٰ د (قائم شوو) حدودو حفاظت کوونکی دی او (داسے) مؤمنانو ته زیرے ورکړه - پیغمبر او مؤمنانو
وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنْ يَّسْتَغْفِرُوْا لِلْمُشْرِكِيْنَ وَلَوْ كَانُوْٓا
او هغو خلقو له | چه ایمان ئے راوړے دی | چه دوی بخښنه وغواړی | مشرکانو د پاره | او اګر چه | دوی وی
سره دا نه ښائی چه د مشرکانو په حقله بخښنه غواړی اګر که نزدے خپلوان
اُولِيْ قُرْبٰى مِنْۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمْ اَنَّهُمْ اَصْحٰبُ الْجَحِيْمِ ﴿١١٣﴾
خپلوان | پس له دے نه چه | ښکاره شوه | دوی ته | چه دوی | دوزخیان دی
وی ، د دے نه پس چه دا ورته ښکاره شوه چه دوزخیان دی -

وَمَا كَانَ اسْتِغْفَارُ اِبْرٰهِيْمَ لِاَبِيْهِ اِلَّا عَنْ مَّوْعِدَةٍ وَّعَدَهَا
او نهٔ وه | بخښنه غوښتل | دَ ابراهيم | دَخپل پلار دَ پاره | مگر | په سبب دَ هغه وعدے | چه کړے وه
او دَ ابراهيم عليه السلام دَ خپل پلار دَ پاره دُعا غوښتل صرف دَ يو ے وعدے په وجه وو چه ابراهيم عليه السلام ده سره

اِيَّاهُ ۚ فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهٗۤ اَنَّهٗ عَدُوٌّ لِّلّٰهِ تَبَرَّاَ مِنْهُ ؕ اِنَّ
دَ ده سره | پس هر کله چه ښکاره شوه | ده ته | چه دے دښمن دے | دَ الله | نو بيزار شو له ده نه | بيشکه
کړے وه ، بيا هر کله چه ده ته معلومه شوه چه هغه دَ الله تعالیٰ دُښمن دے نو ترے نه ويزاره شو ، واقعی

اِبْرٰهِيْمَ لَاَوَّاهٌ حَلِيْمٌ ﴿۱۱۴﴾ وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِلَّ قَوْمًا بَعْدَ
ابراهيم | ډير نرم دله | برد باره وو | او نهٔ دے | الله (داسے) | چه بے لارے کړی | يو قوم | پس له دے نه
ابراهيم عليه السلام ډير نرم مزاجه او برد باره وو . او الله تعالیٰ يو قوم نهٔ بے لارے کوی پس له دے نه چه دوی ته

اِذْ هَدٰىهُمْ حَتّٰى يُبَيِّنَ لَهُمْ مَّا يَتَّقُوْنَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ
چه لارے ئے ښودلے وی دوی ته | ترڅو چه | واضح کړی | په دوی | هغه څه چه دوی له هغے نه ځان ژغوری | بيشکه الله
هدايت شوے وی ترڅو چه دوی ته هغه څيزونه صفا صفا ونه ښائی دَ کومو نه چه دوی له بچ کيدل پکاردی بيشکه الله

بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ﴿۱۱۵﴾ اِنَّ اللّٰهَ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ
په هر څيز باندِ | پوهيږی | بيشکه الله دَ پاره ده | بادشاهی | دَ آسمانونو | او دَ زمکے
په هر څهٔ باندِ پوهه دے . بيشکه دَ آسمانونو او دَ زمکے بادشاهی صرف دَ الله تعالیٰ ده هغه

يُحْيٖ وَيُمِيْتُ ؕ وَمَا لَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ ﴿۱۱۶﴾
هغه ژوندے کوی | او مړهٔ کوی | او نشته دے تاسو له | بے له خدائے نه | څوک دوست | او نهٔ څوک مددگار
ژوندے کوی او مړک راولی ، او بے دَ الله تعالیٰ نه ستاسو بل هيڅوک دوست يا مددگار نشته .

لَقَدْ تَّابَ اللّٰهُ عَلَى النَّبِيِّ وَالْمُهٰجِرِيْنَ وَالْاَنْصَارِ الَّذِيْنَ
البته متوجه شو | الله | په خپل نبی | او په مهاجرينو | او په انصارو | کوم چه
بيشکه الله تعالیٰ دَ خپل پيغمبر او دَ هغه مهاجرينو او انصارو په حال توجه وکړه چه په

اتَّبَعُوْهُ فِيْ سَاعَةِ الْعُسْرَةِ مِنْۢ بَعْدِ مَا كَادَ يَزِيْغُ قُلُوْبُ
پيروی وکړه دَ ده | په وخت | دَ تنگسيا کښے | پس له دے نه | نزدے وه چه واوړی | زړونه
داسے تنگسيا کښے ئے دَ پيغمبر سره ملگرتيا وکړه ، پس له دے نه چه دَ څنو خلقو زړونه رغړيدلی

فَرِيْقٍ مِّنْهُمْ ثُمَّ تَابَ عَلَيْهِمْ ؕ اِنَّهٗ بِهِمْ رَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۱۷﴾
دَ يو ډلے | له دوی نه | بيا هغه متوجه شو | په هغوی | بيشکه دے | په دوی | ډير مهربان | نهايت رحم کونکے دے
وو ، هغه په دوی مهربانه شو ، بيشکه الله تعالیٰ په دوی ډير مهربان رحم کونکے دے

وَّعَلَى الثَّلٰثَةِ الَّذِيْنَ خُلِّفُوْا ؕ حَتّٰۤى اِذَا ضَاقَتْ عَلَيْهِمُ الْاَرْضُ
او په هغه دريو کسانو | دَ کومو فيصله چه ملتوی شوے وه | ترڅو چه | هر کله تنگه شوه | په دوی | زمکه
او په هغه دريو کسانو هم هغهٔ مهربانی وکړه دَ کومو معامله چه ملتوی کړے شوے وه . ترڅو چه زمکه پرے سره دَ فراخئ

بِمَا رَحُبَتْ وَضَاقَتْ عَلَيْهِمْ اَنْفُسُهُمْ وَ ظَنُّوْٓا

سره د ارت والی دهغې | او تنګ شول | په دوی | ځانونه د دوی | او دوی ګمان وکړو

نه تنګه شوه ، او خپل ژوندون ورباندې بارشو ، او په دې پوهه شول چه د

اَنْ لَّا مَلْجَاَ مِنَ اللّٰهِ اِلَّآ اِلَيْهِ ثُمَّ تَابَ عَلَيْهِمْ لِيَتُوْبُوْا

چه نشته دے پناه | د الله نه | مګر صرف هم د ده سره | بیا د ده مهربانی وکړه | په دوی باندې | چه دوی توبه وکړی

الله تعالیٰ د قهر نه بل هیڅ ځائے کښې پناه نشته بے د هغه نه، نو الله تعالیٰ پرے مهربانه شو چه دوی آینده هم

ع ٤ اِنَّ اللّٰهَ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ ﴿١١٨﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ

بیشکه هم الله | توبه قبلوونکے | مهربان دے | اے د ایمان خاوندانو! | دویریږئ د الله نه

توبے وُباسی بیشکه الله تعالیٰ توبه قبلوونکے مهربان دے۔ اے مؤمنانو! د الله تعالیٰ نه ویره کوئ

وَكُوْنُوْا مَعَ الصّٰدِقِيْنَ ﴿١١٩﴾ مَا كَانَ لِاَهْلِ الْمَدِيْنَةِ وَمَنْ

او شئ | سره | د رښتیا ویونکو | (جائز) نه وه | مدینے والو له | او هغه چاله

او د رښتینو خلقو سره ملګری وُسیږئ ۔ د مدینے خلقو له او د ګیر چاپیره کلی والو

حَوْلَهُمْ مِّنَ الْاَعْرَابِ اَنْ يَّتَخَلَّفُوْا عَنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ وَ

چه چاپیره د دوی وو | له کلی والو نه | چه دوی وروستو پاتے شی | د رسول الله نه | او

له دا مناسب نه وو ، چه د الله تعالیٰ د رسول نه د وروستو پاتے شی او

لَا يَرْغَبُوْا بِاَنْفُسِهِمْ عَنْ نَّفْسِهٖ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ لَا يُصِيْبُهُمْ

د اُچه زیات خوږ وګڼړی | خپل ځانونه | د ده د ځان نه | دا حُکه چه | نه رسیږی دوی ته

خپل ځان د ورته د پیغمبر نه خوږ ښکاره شی ، دا حُکه چه دوی ته هرکله د الله تعالیٰ

ظَمَاٌ وَّلَا نَصَبٌ وَّلَا مَخْمَصَةٌ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَلَا يَطَـُٔوْنَ

تنده | او نه ستومانی | او نه لوږه | د الله په لاره کښے | او نه دوی پائمال کوی

په لاره کښے لږه ډیره تنده یا ستومانی او لوږه وُرسیږی ، یا په داسے لار

مَوْطِئًا يَّغِيْظُ الْكُفَّارَ وَلَا يَنَالُوْنَ مِنْ عَدُوٍّ نَّيْلًا اِلَّا كُتِبَ

څه ځائے | چه ناراض کوی | کافران | او نه دوی حاصلوی | د دُښمن نه | څه کامیابی | مګر لیکلے شی

لاړ شی چه کافران پرے خفه کیږی ، یا د دښمن نه بدل واخلی ، نو په دے هم

لَهُمْ بِهٖ عَمَلٌ صَالِحٌ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُضِيْعُ اَجْرَ

دوی د پاره | د هغے په بدل کښے | عمل | نیک | بیشکه الله | نه ضائع کوی | اجر

یو کار باندې د دوئ یوه نیکی لیکلے شی ، واقعی الله تعالیٰ د نیکانو اجر نه ضائع

الْمُحْسِنِيْنَ ﴿١٢٠﴾ وَلَا يُنْفِقُوْنَ نَفَقَةً صَغِيْرَةً وَّلَا كَبِيْرَةً وَّلَا يَقْطَعُوْنَ

د نیکوکارو | او دوی نه خرچ کوی | (څه) خرچ | ډېروکے | او نه لوئے | او دوی نه قطع کوی

کوی ۔ او داسے نه کیږی چه دوی د یو خرچ وکړی لږ یا ډیر او یا د د یو میدان

وَادِيًا اِلَّا كُتِبَ لَهُمْ لِيَجْزِيَهُمُ اللّٰهُ اَحْسَنَ

(ځنې) وادی | مګر ليکلے شی | دوی د پاره | د پاره د دے چه جزا ورکړی دوی ته | الله | ډيره ښه

نه تيريږی او هغه د ونه ليکلے شی ، دا ځکه چه الله تعالیٰ دوی له د نيکو کارونو ډيره ښه

مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ (١٢١) وَمَا كَانَ الْمُؤْمِنُوْنَ لِيَنْفِرُوْا كَآفَّةً

د هغه څه چه دوی به کول | او نه دی مناسب | مؤمنانو له | چه ووځی | ټول

بدله ور کړه . او دا خبره مناسبه نه ده چه ټول مومنان د ووځی

فَلَوْلَا نَفَرَ مِنْ كُلِّ فِرْقَةٍ مِّنْهُمْ طَآئِفَةٌ لِّيَتَفَقَّهُوْا فِى الدِّيْنِ

پس ولے ونه وتل | له هرے فرقے | د دوی نه | څه خلق | چه پوهه حاصله کړی | په دين کښے

او دا سے د ولے نه وی چه د هرے بوے ډلے نه څو کسان راووځی چه ددی په دين کښے پوهه حاصله کړی

وَلِيُنْذِرُوْا قَوْمَهُمْ اِذَا رَجَعُوْآ اِلَيْهِمْ لَعَلَّهُمْ يَحْذَرُوْنَ (١٢٢) ع ١٥

او چه وویروی | خپل قوم | هرکله چه واپس ورشی | د دوی طرف ته | چه دوی | وويريږی

او کله چه خپل قوم ته واپس ورشی نو چه دوی (د الله تعالیٰ د نافرمانئ نه) وويريږی چه هغوی د بدو کارونو نه بچ شی

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا قَاتِلُوا الَّذِيْنَ يَلُوْنَكُمْ مِّنَ الْكُفَّارِ وَلْيَجِدُوْا

اے د ايمان خاوندانو ! | جنګ کوئ د هغو خلقو سره | چه نزدے دی تاسو ته | له کافرانو نه | او بيا د مومی دوی

اے مؤمنانو ! هغه کافران چه ستاسو خوا وشا دی هغوی سره جنګ کوئ او (دا سے وجنګيږئ) چه

فِيْكُمْ غِلْظَةً ؕ وَاعْلَمُوْآ اَنَّ اللّٰهَ مَعَ الْمُتَّقِيْنَ (١٢٣) وَاِذَا مَآ اُنْزِلَتْ الربع

په تاسو کښے | سختی | او پوهه شئ | چه الله | د پرهيزګارو سره دے | او هرکله چه نازلولے شی

دوی په تاسو کښے سختی بيا مومی او پوهه شئ چه الله تعالیٰ د پرهيزګارو ملګرے دے او هرکله چه يو سورت

سُوْرَةٌ فَمِنْهُمْ مَّنْ يَّقُوْلُ اَيُّكُمْ زَادَتْهُ هٰذِهٖۤ

يو سورت | نو ځنے له دوی نه | هغه څوک دی | چه وائی | په تاسو کښے د چا | زيات کړو | دے (سورت)

نازل کړے شی نو په دوی کښے ځنے (منافقان) وائی چه دے سورت په تاسو کښے د چا ايمان

اِيْمَانًا ۚ فَاَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا فَزَادَتْهُمْ اِيْمَانًا وَّهُمْ

ايمان | پس کومو خلقو چه | ايمان راوړے دے | پس هغے زيات کړو د دوی | ايمان | او دوی

زيات کړو . پس کومو خلقو چه ايمان راوړے دے هغے د دوی ايمان له ترقی ورکړے ده او دوی

يَسْتَبْشِرُوْنَ (١٢٤) وَاَمَّا الَّذِيْنَ فِىْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ فَزَادَتْهُمْ

خوشحاليږی . | او هغه خلق چه | په زړونو د دوی کښے | مرض (دے) | پس زيات کړه هغے دوی له

خوشحاليږی . او هغه خلق د کومو په زړونو کښے چه (د نفاق) مرض دے هغے سورت د دوی د

رِجْسًا اِلٰى رِجْسِهِمْ وَمَاتُوْا وَهُمْ كٰفِرُوْنَ (١٢٥) اَوَلَا يَرَوْنَ اَنَّهُمْ

پليتئ | د پاسه پليتی | او مړه شول دوی | او دوی وو کافران | آيا دوی نه ګوری | چه دوی

منافقت په ګندګئ کښے نور زياتے وکړی او دوی هم د کفر په حالت کښے مړه شول . آيا دوی دے ته نه ګوری چه دوی

يُفْتَنُوْنَ فِیْ كُلِّ عَامٍ مَّرَّةً اَوْ مَرَّتَیْنِ ثُمَّ لَا یَتُوْبُوْنَ

ازمېښت کېږي غورزول شي | په هر کال کښې | يو ځل | يا | دوه ځله | بيا | دوي توبه نۀ کوي

هر کال يو ځل يا دوه ځله په يو آفت کښې غورځولے شي ، خو بيا هم توبے نه ويباسي

وَلَا هُمْ یَذَّكَّرُوْنَ ﴿١٢٦﴾ وَاِذَا مَاۤ اُنْزِلَتْ سُوْرَةٌ نَّظَرَ بَعْضُهُمْ

اونۀ دوي | نصيحت اخلي | او هر کله چه | نازلولے شي | يو سورت | (نو) ګوري | ځنې له دوي نه

او نۀ ترے نه عبرت اخلي ، او هر کله چه يو توے سورت را نازل شي ، نو دوي يو بل ته

اِلٰى بَعْضٍ ؕ هَلْ یَرٰىكُمْ مِّنْ اَحَدٍ ثُمَّ انْصَرَفُوْا ؕ صَرَفَ اللّٰهُ

ځنو ته | چه آيا ګوري تاسو ته | څوک سړے ؟ | بيا | دوي واپس شي | واړول | الله

ګوري ، چه آيا تاسو ته څوک (مسلمان) خو ګوري نه ؟ بيا دوي (رغلي غونډې) وځي ، الله تعالیٰ د دوي زړونه

قُلُوْبَهُمْ بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا یَفْقَهُوْنَ ﴿١٢٧﴾ لَقَدْ جَآءَكُمْ رَسُوْلٌ

زړونه د دوي | ځکه چه دوي | (داسې) خلق دي | چه پوهه نۀ لري | راغلے دے تاسو ته | يو پېغمبر

(د ايمان نه) واړول ولے چه دوي داسې خلق دي چه نۀ پوهېږي. (اے خلقو!) تاسو ته هم له تاسو نه يو رسول

مِّنْ اَنْفُسِكُمْ عَزِیْزٌ عَلَیْهِ مَا عَنِتُّمْ حَرِیْصٌ عَلَیْكُمْ بِالْمُؤْمِنِیْنَ

له تاسو نه | ګران دے | په هغه | ستاسو تکليف | حد نه زيات خواهشمند دے ستاسو | په مومنانو

راغلے دے ، ستاسو تاوان په هغۀ بد لګی ، ستاسو د ښېګړے ډېر خواهشمند دے ، د مؤمنانو په

رَءُوْفٌ رَّحِیْمٌ ﴿١٢٨﴾ فَاِنْ تَوَلَّوْا فَقُلْ حَسْبِیَ اللّٰهُ ۖ لَاۤ اِلٰهَ

زيات مهربان | رحم کوونکے دے | بيا (هم) که چرے | دوي مخ واړوي | نو ووايه | کافي دے ماله الله | نشته څوک معبود

حقله ډېر زړه سواندے او مهربان دے. نو که اوس هم دوي مخ ونه ګرځوي نو ورته ووايه چه ماله يوازے الله بس دے ، بے د هغۀ نه

اِلَّا هُوَ ؕ عَلَیْهِ تَوَكَّلْتُ وَهُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِیْمِ ﴿١٢٩﴾ ع

بے له هغۀ نه | هم په هغۀ | ما توکل وکړو | او هم هغه دے | مالک | د عرش | لوئے

بل معبود نشته ، په هغۀ م توکل دے او هغه د لوئے عرش مالک دے.

٥ ع ٧ ٦

سُوْرَةُ یُوْنُسَ مَكِّیَّةٌ وَّهِیَ مِائَةٌ وَّ تِسْعُ اٰیٰتٍ وَّاَحَدَ عَشَرَ رُكُوْعًا

سورۃ يونس مکی دے او په دے کښې يو سل نهه آيتونه او يوولس رکوعګانې دي

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

(شروع) د الله په نوم چه لوئے مهربان ډېر زيات رحم کوونکے دے

شروع کوم د الله په نوم سره چه لوئے مهربان د ډېر زيات رحم خاوند دے

الٓرٰ قف تِلْكَ اٰیٰتُ الْكِتٰبِ الْحَكِیْمِ ﴿١﴾ اَكَانَ لِلنَّاسِ عَجَبًا

الٓرٰ | دا آيتونه دي | د کتاب | خاوند د حکمت | آيا خلقو ته وشو | تعجب

الف. لام. را دا د داسے کتاب آيتونه دي چه په حکمت پوره دے. آيا دے خلقو ته دا خبره عجيبه ښکاره

اَنْ اَوْحَیْنَاۤ اِلٰى رَجُلٍ مِّنْهُمْ اَنْ اَنْذِرِ النَّاسَ وَ

(دا خبره) چه موږ حکم ولېږلو | يو سړي ته | له دوي نه | چه | ډو يروه | خلق | او

شوه چه موږ په دوي کښې يو سړي (نبي علیه السلام) ته دا وحي راولېږله چه خلق (د الله د نيولو نه) ويروه ، او

المنزل الثالث ٣